بسم الله الرحمن الرحیم




* **د افغانستان لنډ تاریخ**
* لیکوال: **علامه عبدالحی حبیبي**
* مترجم: **استاد عبدالرؤف بېنوا**

* خپروونکی: **علامه رشاد خپرندویه ټولنه**
* کندهار – افغانستان
* تلیفون: ۰۷۰۰۳۲۶۰۱۱
* ایمیل: mrohyal@yahoo.com





* مالي لګښت: **علامه حبیبي د څېړنو مرکز**
* کمپوز او ډیزاین: **روهیال کمپیوټر اداره**
* چاپکال: ۱۳۹۱ ش – ۲۰۱۲ع
* کچه: ۱۳/۵۰ × ۲۱ سانتي متره
* چاپ شمېر: زر ټوکه
* د مخونو شمېر: ۴۸۸
* د خپرونو لړ: ۷۰

د افغانستان د لنډ تاریخ داستان:

# یو کتاب درې ژباړونکي

علامه حبیبي رحمة الله علیه د افغانستان د تاریخ په باب خورا مفصل او مشرح آثار لیکلي دي. خو "تاریخ مختصر افغانستان" ئې هغه اثر دئ چي په لنډ ډول د افغانستان پر تاریخ رڼا اچوي. علامه صاحب دغه دوه ټوکیز اثر د څو سوو ټوکو آثارو تر مطالعې او ویلو وروسته لیکلی دئ. د دې اثر اهمیت په دې کي دئ چي لوستونکی په خورا لږ وخت کي د افغانستان د تاریخ او په دې سیمه کي د لویو پېښو سوو حوادثو سره آشنا کوي.

د "تاریخ مختصر افغانستان" لومړی ټوک په ۱۳۴۶ش کال په کابل کي د کتاب چاپولو مؤسسې خپور کړ. دوهم ټوک ئې تر درې کلن ځنډ وروسته په ۱۳۴۹ش کال د افغانستان د تاریخ ټولني له خوا چاپ سو.

د دغه اثر پښتو ترجمه د ارواښاد استاد عبدالرؤف بېنوا له خوا په ۱۳۵۶ش کال تر سره سوه او په دوو وروستیو پېړیو کي د پښتو د چاپ سوو آثارو د سیمینار په مناسبت خپره سوه. په پښتو ترجمه کې د محمدزیو څپرکی ترجمه سوی نه دئ، دغسي مسایلو ته نه توجه د هغه مهال د حاکم دولت د دولتي پالیسۍ ښکارندويي کوي.

د افغانستان لنډ تاریخ (پښتو ترجمه) د ۱۳۵۷ش کال د ثور تر اولي پاچاګښتۍ څو میاشتي مخکي چاپ سو او تر ۱۳۷۸ش کال پوري ئې پر چاپ تقریباً دوه ویشت کاله اوښتي ول. په دغه دوه ویشت کلن زماني واټن کي د کتاب چاپي نسخې کمیابه سوي وې او په بازار کي ئې د پیدا کېدو چانس خورا کم وو. دا چي له یوې خوا کتاب خورا ارزښتمن وو او له بلي خوا په بازار کي نه پیدا کېدی، نو د دې ضرورت احساس سو چي کتاب دوباره چاپ سي. خو د دې پر ځای چي د کتاب هماغه پخوانۍ ترجمه یو وار بیا چاپ سوې وای، په یوه کال (۱۳۷۸ش) کي دوو ښاغلو مترجمينو (!) کتاب له سره ترجمه کړ او په همدغه کال چاپ سو.

له دغو ښاغلو څخه يو هم الحاج عبدالودود کرزی دئ او دوهم هغه ئې داود وفا دئ. دا چې د دغو دوو له جملې څخه به کوم يوه لومړی په دې اړه خواري کښلې وي، د کتاب له چاپکاله معلومېږي، د ښاغلي کرزي صاحب په ترجمه کي د "خپلې خبري" تر عنوان لاندي د (۱۳۷۶ش) کال نېټه ليکل سوې ده. د دې مطلب دا دئ چي ښاغلي کرزي دغه ترجمه تر ښاغلي وفا دوه کاله وړاندي کړېده، خو چاپ ئې په تصادفي(!) ډول د ښاغلي وفا له هغې سره په يوه کال تر سره سوی دئ. تر دې په ها خوا يوه بله د يادوني وړ خبره دا ده چي د ښاغلي کرزي ترجمه د ۱۳۷۸ش کال په غبرګولي کي چاپ سوې ده.

د ښاغلي عبدالودود کرزي د کتاب سموونکی او کتونکی هم ښاغلی داود وفا دئ. د چاپ کار ئې په سپين زر پرنټرز (پرائيويټ) لميټډ کوئټه کي تر سره سوی دئ.

خو ښاغلي وفا دا اثر په ۱۳۷۸ش کال ترجمه کړ او د همدې کال د (اسد) په مياشت کي د دانش خپرندويي ټولني له خوا چاپ سو. د کتاب د وقايې پر دوهم او دريم مخ باندي د استاد محمدآصف صميم په قلم يو لنډکی يادښت د "همدا سلف او همدا خلف" تر عنوان لاندي ليکل سوی دئ. په دې يادښت کي ئې خپل شاګرد ښاغلي وفا ته شاباسی ورکړی دئ چي په کم سن ئې د ارواښاد استاد بېنوا غوندي درون بار ته اوږه ورکړېده او په پوره کاميابي ئې دغه بار سرمنزل ته رسولی دئ.

د بدمرغه پښتنو بدنصيبۍ خورا ډېري دي، له دغو بدمرغيو څخه ئې يوه د دغه کتاب دوباره ترجمه ده. دغه کتاب چي دوې لسيزي وړاندي ئې فاضل استاد بېنوا د ترجمې له پاره خوارۍ ګاللي وې او زحمت ئې په کښلی وو، د دې پر ځای چي هغه ترجمه پيدا سوې او يوازي د محمدزيو څپرکی پر اضافه سوی او چاپ سوی وای، په عوض کي ئې د هغه مرحوم ټولې خوارۍ عبث او پورته يادو دوو ښاغلو په جلا جلا ډول ترجمه او چاپ کړ.

په ۱۳۸۲ش کال دانش خپرندويي ټولني د افغانستان لنډ تاريخ دوباره چاپ کړ. خو دا ځل ئې د پخواني ژباړن داود وفا پر ځای د استاد عبدالرؤف بېنوا نوم ليکلی وو. د خپرندويي ټولني په يادښت کي ئې دې پېښې ته اشاره کړې ده او خپله دغه لويه سهوه ئې په يوه کوچنۍ جمله په دې ډول جبران کړېده: "ښه به دا وي، چې خبره رالنډه کړو او هغه دا چې (د افغانستان لنډ تاريخ) کتاب د داود وفا په نامه چاپ شوی و. حال دا چې

ارواښاد ښېنوا صیب په ۱۳۵۶کې ژباړلی داود وفا یوازې پکې د پښتو د نوي لیکدود زیاتونې او کمونې کړي او یوازې (۲۶) مخه یې ژباړلي، چې بیا یې کتاب په خپل نامه کړ".

تر دې لنډې یادښت وروسته "د افغانستان لنډ تاریخ او یو مخرونی" تر عنوان لاندې د استاد محمدآصف صمیم لنډه لیکنه چاپ سوې ده، ښاغلي صمیم صاحب هم د داود وفا سهوې ته اشاره کړې او د خپل پخواني یادښت د لیکلو په باب ئې د خپلو استادانو علامه حبیبي او استاد ښېنوا له اروا بخښنه غوښتې ده.

تر دې وروسته نو د دانش خپرندویې ټولنې (د افغانستان لنډ تاریخ) د ارواښاد ښېنوا صاحب ترجمه ده نه د ښاغلي داود وفا. خو د تعجب وړ خبره دا ده چې د ښاغلي داود وفا لیکدودي ځانګړتیاوې او سمونې د معیار(!) په نامه په اوسنیو چاپونو کې هم را رواني دي، د دغو لیکدودي زیاتونو او سمونو په لرلو سره هیڅ وخت داسې فکر نه سي کېدای چې دغه ترجمه دې د ارواښاد استاد ښېنوا وي. ځکه د هغه په ترجمه کې لاسوهنه سوې ده او په هیڅ وجه داسې دلایل وجود نه لري چې د یوه مرحوم استاد په ترجمه کې دې په دغه کمیت او کیفیت ګوک لاسوهنه وکړي او یوه بله خپرندویه ټولنه، په داسې حال کې چې د دغو ټولو اصولو څخه باخبره او آګاه وي دغسې یو کتاب چاپ کړي.

په هر صورت پورته ټولې خبرې فقط او فقط د فاضل استاد ارواښاد ښېنوا په حق کې جفا ده، خدای دې داسې نه پېښنوي چې زموږ د نورو حقدارو استادانو آثار هم په دغه شکل په یوه او بل نامه لومړی چاپ او وروسته ئې اصلي ترجمه مسخه سي. زموږ د اسلافو له آثارو سره دغه ډول بازۍ موږ د تاریخ کندي ته اچوي، چې بیا به مو نه مرحومو استادانو ته د ښهاني ورځ پاته وي او نه د هغوی څخه راپاته میراث ته.

حاضر متن د ارواښاد استاد عبدالرؤف ښېنوا ترجمه ده، خو د محمدزیو ګېرکی د ښاغلي عبدالودود کرزي له ترجمه کړي نسخې څخه پر اضافه سوی دئ.

په دې متن کې تر خپله وسه کوښښ سوی چې د استاد ترجمه کړی امانت تر لوستونکو پوري ورسوو. دا چې په دې کتاب کې خورا زیاتې نسبي شجرې، جدولونه او عکسونه راغلي دي، موږ کوښښ کړی دئ، چې دغه نسبي شجرې او جدولونه تر خپله وسه کمپیوټري کړو، تر څو ئې لوستنه لوستونکو ته آسانه سي. د عکسو په باب

باید یادونه وکړو چې د امکان تر حده مو نوي او د ښه کیفیت لرونکي عکسونه ورته پیدا کړي دي، کوم عکسونه چې بالکل نه پیدا کېدل هغه مو د اصل متن (پارسي نسخې) څخه سکین کړي او د دې متن سره مل کړي دي.

علامه رشاد خپرندویه ټولنه دغه ترجمه په دې نیامت ټولني ته وړاندي کوي، چې زموږ نوي څېړونکي او د تاریخ مینان د دغي ترجمې له اصلي کیفیت څخه خوند واخلي، خدای دي ټولو هغو ښاغلو ته انصاف ورکړي چې د معیار(!) په نامه زموږ د اسلافو په لیکنو او آثارو کي ګوتي وهي. دغه ډول ګوتوهني نه دیني جواز لري او نه هم قانوني، خدای ته خواست کوو چې زموږ د نورو بې شمېرو مصیبتو په څنګ کي د پخوانیو آثارو د مسخه کولو له مصیبت څخه هم د نجات یوه لاره راوښیي. په همدې هیله، دا ئې تاسي او دا ئې د اروا ښاد بېنوا امانت.

مطیع الله روهیال
د علامه رشاد خپرندویه ټولني مشر
د روږي ۱۷مه – ۱۳۹۱ش

# فهرست

## دوهمه برخه



## دریمه برخه

## څلرمه برخه



## پنځمه برخه



## شپږمه برخه



## اوومه برخه

# د لوی خدای په نامه

زموږ ګران هیواد افغانستان هغه خاوره ده چې تر تاریخ دمخه له لرغونو دورو څخه بیا تر اوسه د مدنیتو چینه، د فرهنګو د تېرېدو لاره او د انساني فکر او تهذیب زانګو وه او د تاریخ په لمنه کې له دې فرهنګ زېږوونکې خاورې څخه ښه غښتلي دولتونه راپاڅېدلي دي او هم د دې خاورې خلکو په تاریخي کشمکشو کې تل خپله آزادي او ملي ښه ساتلې ده. له ډېره وخته زموږ په محیط کې دې ته خورا زیاته اړتیا حس کېدله چې د افغانستان د تاریخ لنډیز په یوه دوو ټوکو کې له لرغوني زمانې څخه بیا تر اوسني عصره په داسې توګه ولیکل سي چې هم بشپړ وي او هم لنډ او هم پر تاریخي پېښو سربېره لازم تاریخي تصویرونه، نقشې، جدولونه او رسمونه ولري. چې زموږ د ښوونځیو زده کوونکي او عام خلک په آساني سره وکولای سي چې په هغه کې د خپل هیواد تېري تاریخي پېښې ولولي. څو کاله دمخه نو ما هم دستي د افغانستان دغه لنډ تاریخ په دوو ټوکو کې ولیکه.

د دې کتاب په لیکلو کې مي څو سوه ټوکه تاریخي کتابونه په شرقي او غربي ژبو وکتل او د ټولو مطالبو حواله مي د کتاب د پاڼو په پای کې ورکړه، خو د چاپ پر وخت یو مشکل راپېښ سو، چې ناچاره سوم هغه پاورقۍ مي ایسته کړې او د لازمه مراجعو نومونه مي د څو بابو په آخر کې ولیکل او هم د دې ټوک په پای کې به د ټولو مراجعو نومونه راوړه سي. په دې یادونه کې زما مطلب دا دئ چې د دې کتاب ټول مطالب مستند دي او موثوق منابع لري.

پر دې کتاب مي یو شمېر تصویرونه او رسمونه او توضیحي جدولونه له خارجي او داخلي موثوقو کتابو څخه هم زیات کړه، هیله لرم چې ګرانو وطنوالو او هغو کسانو ته ګټور سي چې غواړي د افغانستان تاریخ په لنډه توګه ولولي.

د دې کتاب د مطالبو په تدوين کې زيار ايستل سوی دئ چې بشپړ وي خو لنډ او
گټور چې په راتلونکي وخت کې د مفصل تاريخ ليکلو لاره سمه سي او نمونه ئې (تر
اسلام وروسته د افغانستان تاريخ) په لومړي ټوک کې چې پښخوا خپور سوی دئ ليده
کېږي. په هغه کې مې د افغانستان د اسلامي دورې د لومړيو دوو سوو کالو مفصل
تاريخ په زرو مخو کې ليکلی دئ.

پوهاند عبدالحی حبيبي
کابل – جمال مېنه

لومړۍ برخه:

# د افغانستان تر تاریخ دمخه دورې ته یوه کتنه

د مؤرخانو په اصطلاح هغه دوره چې انسان د (لیک) په کشف بریالی سوی نه وو، تر تاریخ دمخه دوره Pre Historic نومېږي او تر هغه وروسته چې رسم الخط منځته راغلی (تاریخي عصر) دئ، خو په دې شرط چې د لرغونیو قومو پاته لیکلي سوي آثار لوستلي سوي وي او ځکه چې تر اوسه لا داسي لیکني سته چې نه دي لوستلي سوي، نو ځکه پوهان هغه تر تاریخ په دمخه دورو پوري تړلي بولي او که یو وخت ولوستلي سي نو بیا به په تاریخي مرحله کي داخلي سي.

د شرقي هیوادو تاریخي دورې ئې عموماً تر میلاد دمخه د (۲۵۰۰) کالو په شاوخوا کي ګڼلي دي، دا ځکه چې د مصر او بین النهرین لیکني چې لوستلي سوي دي هم دوني عمر لري، خو په سند او هړپه کي د موهن جودیرو کشفي سوي لیکني لا تر اوسه نه دي لوستلي سوي، او په تاریخي مرحله کي داخلي نه دي.

په افغانستان کي تر تاریخ دمخه آثارو لټوني له ۱۹۳۶م کال څخه د اروپایي علمي هیئتو له خوا شروع سوي او په نتیجه کي تر تاریخ دمخه د ډبري (حجر) د دورې آثار لاس ته راغله چې د ډبري د استعمال په دریمي دورې یعني د توږلي سوي ډبري او د خاورینو لوښو او فلز د استعمال په دورې اړه لري، چې هغې ته د کلکولي تیک دوره وایي.

له دې علمي لټوونو څخه دا نتیجه لاس ته راځي، چې: د افغانستان او د افغانستان د ګاونډیو هیوادو په خاورو کي د (۶۰۰۰) کالو په شاوخوا کي دمخه انسانانو مدنیت درلود، ځکه چې همهغه وخت مرو ته نژدې د (انو) په سیمه کي د مس د استعمال آثار کشف سوي دي.

تر تاریخي دورو دمخه آثار ئې د افغانستان د ګاونډ په دې ځایو کي موندلي

دي:

### ۱- د پنجاب په هړپه کي:

يعني د افغانستان د غرو په لمر ختيځو ډاګو کي، چي هلته د ودانۍ او ښار آثار ليده کېږي.

### ۲- موهن جوډيرو:

د افغانستان لمر ختيځي جنوبي خوا ته په سند کي، د ښار کوڅې او د بازار نخشې او حتی پاخه ابروونه او په هره کوڅه کي د فضله موادو له پاره د پخو خښتو کوچني خاکدانونه هم ليدل کېږي.

په دې لرغوني ښار کي د مور د ربة النوع مجسمې، پاخه خاورين لوښي، د سرو او سپينو زرو راز راز ګېڼې او د هغه عصر د نورو فلزاتو صنعتي نمونې او فلزي بتان لاس ته راغلي دي، چي د هغه لرغوني ښار په مربوطه موزه کي خوندي پراته دي، او په هغو ښکلو آثارو کي له عاجو څخه د پيل کوچنۍ مجسمې او د غټو غښتلو غويو انځورونه سته چي پر ځينو انځورو توري او ليکني هم ليدلي کېږي، خو تر اوسه ئې لا ثوک په لوستلو بريالي سوي نه دي. د سند د ناوې تر تاريخ دمخه مدنيت چي د افغانستان په لمر ختيځه خوا کي د هړپه او موهن جوډيرو تر منځ يو زر ميله (د بابل د تمدن د ساحې څلور برابره او د مصر د تمدن د پراختيا دوه برابره) په يوه شکل او يوه ډول خپور سوی وو، د ودانيو د تعمير طرز او د خاورينو لوښو او د کار د سامان او وسايلو په جوړښت کي ښېخي سره ورته دي او پوهانو دا نتيجه ځني اخيستې ده چي:

دا مدنيت د افغانستان د خاوري په لمر ختيځه خوا کي د سند د ناوې له سره بيا تر پايه خپور سوی، شمالي او جنوبي پايتختونه ئې (هړپه) او (موهن جوډيرو) دوه ښارونه وه او تر بابل پوري ئې د لمر لوېديځو خاورو د تمدن سره روابط درلودل او حتی تر ميلاد دمخه د (۲۰۰۰) کالو په شاوخوا کي د هندي تاجرانو په بابل کي يوه محله موجوده وه.

له هغو آثارو څخه چي د بين النهرين په کيندونو کي ئې موندلي دي څرګندېږي چي د سند د ناوې خلکو اعشاري ارقام او اوزان او پيمانې پېژندل. د هغه ښار له آثارو څخه چي په هړپه کي ښکاره سوي دي څرګنده ده چي معتبرو خلکو په دوه پوړيزو کورو کي ژوند کاوه او د استوګي د زياتو ځايو د اوبو ثاهان، حمامونه او تر مځکي لاندي

گدامونه درلودل، حال دا چي عامه طبقه کارگران او کسبگران په دوه اطاقي کوچنيو کورو کي اوسېدل، هر کور د يوه کوچني غولي په واسطه له بله کوره بېلېده او تر تاريخ دمخه د دې خلکو ښارو ته نژدې ځيني کلاوي وې، چي غالباً د غلې گدامونه ول.

هغه کنډوالې چي د هړپه د تمدن له وروستيو مرحلو څخه نمايندگي کوي، د هغه ځای د اوسېدونکو بېوزلي او انحطاط راښيي، چي زياترو کورو د سمڅو بڼه پيدا کړې ده او د ښارو جوړښت چي پخوا ئې نظم او ترتيب درلود بېخي گډوډ سوی دئ او پوهانو له دې څخه داسي نتيجه اخيستې ده، چي:

۱ – د دې ودانيو پر خلکو د غربي آريائيانو يرغلونه شروع سوي او د دوی مدنيت ئې راټيټ کړی وو.

که څه هم د هړپه د ليکنو الفبا لوستلې سوې نه ده، خو دا ثابته ده چي دا رسم الخط تر آريائي مهاجرت په دمخه دوره پوري اړه لري.

هغو ارابو چي اسانو کشولې په هغو خلکو پوري اړه درلودله، چي په هندواروپايي ژبو ئې خبري کولې، مگر د موهن جوډيرو او هړپه د خلکو گاډی غټو غښتلو غويو کشولې چي پلن اوږده ښکران به ئې درلودل او د دې ښکلو غټو غويو شکلونه د موهن جوډيرو پر کشف سوي مهرو او آثارو نقش سوي دي (لومړی او دوهم نمبر عکس دي وکتل سي).

۲ – دې مدنيت ته ورته دا سلسله د افغانستان په جنوب کي د بلوچستان په نال او جاله وان او لورلايي او همداراز د سيستان په نادعلي او د ايران په ځينو جنوبي برخو کي ليدل کېږي چي ځيني کړی ئې تر بين النهرين پوري هم رسېدلي او په هغو خلکو اړه لري چي د آرائيانو تر هجرت دمخه په هغو سيمو کي اوسېدل او څنگه چي د دوی په لرغونيو آثارو کي د مور د ربة النوع په څېر مجسمې پيدا کېږي، ځکه نو ممکنه ده چي دين، عقايد او فرهنگ ئې هم سره ورته وي.

هغه آثار چي د بلوچستان د کوټي د لمر لوېديځ شمال په څو ميلي کي ئې د گل محمد په کلا کي موندلي دي پر دې دلالت کوي چي د هغې سيمي پخواني اوسېدونکي لا تر هغه وخته د خاورينو لوښو په جوړولو نه پوهېدل او د ډبرو له چړو او د هډوکو له ستنو او د تېرو څوکو لرونکو نېزو په څېر آلاتو څخه ئې کار اخيست او د ودانيو او کورو جوړول هم رواج نه ول او خلک څاروي روزونکي کوچيان ول او په راوروسته وختو کي



د موهن جوديرو د آثارو يوه منظره، ۱ –لمبر عکس











د موهن جوديرو ځيني ليکونه او نخښي، ۲ – لمبر عکس

ئې خاورین لوښي او ودانۍ جوړې کړي دي چې لرغون پېژندونکي ئې (د ړوب د ناوې لوښي) بولي او پر هغو باندي ځیني توري او هندسي شکلونه او د هوسۍ او بوک لرونکي غوایي تصویرونه او په کورو کي ئې د بزو ډېر هډوکي لیدل کېږي چې د دوی پر ډېرو غوښو خوړلو دلالت کوي او د غلې د کوټلو له پاره ئې ډبرین اونګونه درلودل، حال دا چې د هغه عصر په کشف سوو آثارو کي د اوسپني اوزار نه لیده کېږي او پر ځینو خاورینو لوښو T – A – W.V ته ورته شکلونه سته، چې د هغو په څېر بل ځای نه دي لیدل سوي، ځکه نو لرغون پېژندونکي د هغو په پېژندنه کي پټه خوله دي او د دې لرغوني مدنیت عمر د شپږو زرو کالو په حدودو کي اټکل سوی دئ.

همدارنګه د هړپه د سیمي دا تر تاریخ دمخه مدنیت د هندوستان د کچهه تر جزیره نما پوري هم غځېدلی دئ او په ۱۹۵۴ – ۱۹۶۵م کي د هغه ځای له زیاتو غونډیو څخه داسي آثار مونده سوي دي، چې د هړپه د مدنیت آثارو ته ښخي ورته دي او د کشفیاتو دا ساحه د راجکوټ د ښار جنوبي خوا ته پرته ده.

مګر د افغانستان په خاوره کي تر اوسه تر تاریخ دمخه څو مهم ځایونه کشف سوي او کتل سوي دي:

۱ – په ۱۹۳۶م کال سراورل ستین او موسیو ګیرشمن او هاکن د سیستان د نادعلي او زرنج د سروتار او کنګ په کلا کي کیندني وکړې، چې په هغه کي ډبرین لوښي او راز راز وسلې او غشي او رنګه ښایسته سوي کودري او د سپینو زرو غوږوالي او د هډوکو څخه جوړ سوي شیان کشف سوي او پوهانو هغه په مرو کي د (انو) او په غرب کي د کاشان او په لمر ختیځ جنوب کي د سند کشف سوي آثارو ته ورته بللي دي او له هغو څخه دا نتیجه اخلي چې د انساني مدنیت د دې دورې لویه صحنه د سند له ناوې څخه نیولې بیا د نیل تر سیمي پوري د افغانستان په شمول غوړېدلې وه.

موسیو ګیرشمن د (سرخ داغ) غونډۍ چې دېرش متره لوړه ده ۱۲ متره ژوره وکیندله او یو زر کاله تر میلاد دمخه ئې د مدنیت نخښي وموندلې، دی وایي:

که یوویشت متره نور هم وکیني، ممکنه ده تر میلاد د څلور زرو کالو دمخه آثار وموندل سي، چې د سند، بین النهرین او مصر پخوانیو مدنیتو ته نژدې دي او په دې خاوره کي داسي پخوانۍ غونډۍ ډېري دي.

۲ – تر تاریخ دمخه آثار چې تر اوسه په افغانستان کي لټول سوي دي، د کندهار

لمر لوېديځې خوا ته د پنجوايي او ارغنداو په ناوه کې د بدوان د غره له سمڅو او د ديمراسي له غونډۍ څخه هم تر تاريخ دمخه آثار کشف سوي دي، چې د سند او پنجاب او د بلوڅانو د خاوري تر تاريخ دمخه په مدنيتو پوري اړه لري او د مور د ربة النوع مجسمې موندلې سوي دي.

په ۱۳۴۴هـ ش کال د کندهار لمر لوېديځې شمالي خوا ته ٦٦ کيلومتره ليري د مونډيګک په غونډۍ کې علمي پلټنې وسوې، چې د ارغنداو په ناوه کې تر تاريخ دمخه د پنځو زرو کالو پخوا د مدنيت د آثارو نمايندګي کوي او پوهان وايي چې د کندهار لمر لوېديځې خوا ته د کشکنخود ناوه چې اوس ئې زياته برخه وچه ده، درې زره کاله پخوا د کشکنخود له روده چې اوس وچ سوی دئ اوبېدله او شينډنه وو.

دا غونډۍ چې درې زره کاله پخوا د وروستۍ پلا له پاره د اوسېدو ځای وو او اوس د جوي پېښو په اثر يو مخروط شکل لري، د هغې لاري پر سر پرته وه چې د رخد (ارغنداو) او پښين او سند د ناوې خوا ته د هرات او فراه او هلمند د ها خوا خلکو د تېرېدو لاره وه او همدا راز دا لار د ترنک او غزني او د هندوکش جنوبي سيمو ته رسېدله، يعني د هلمند ناوه ئې د ارغنداو او ترنک د ناوې سره مښلوله.

د مونډيګک غونډۍ تر ميلاد دمخه د څلور زرم کال له او اخرو څخه د لومړي زرم کال تر شروع پوري د ودانۍ پنځلس مرحلې تېري کړي دي او په آخره او پورتنۍ مرحله کې ئې د غلې ګدامونه ول چې په دای وهلي دېوالونه ئې درلودل او د غلې د ګدامو ځايونه د يوه اوږده غولي په شکل ول، چې د هرېپه د کشف سوو آثارو ګدامو ته بېخي ورته ول، خو د هړپه تر ګدامو کوچني ول او په کښته پوړ کي ئې د څارويو د ساتني له پاره خوني وې.

څنګه چې د ګدامو ودانۍ د نوموړي غونډۍ له درو مختلفو طبقو څخه راوتلي دي، ځکه نو وايي چې دا ګدامونه د هغه وخت د انسانانو د استعمال له پاره په مختلفو زمانو کې جوړ سوي ول.

په لوړ پوړ کې يوه کوچنۍ خونه د ګدامو د ساتندوی له پاره ليده کېږي، چې په هغه کې يو څه خاورين لوښي، ډبرين او د مفرغ توبرې (پکانونه) او مچلوغزي او د مچلوغزو د خټو ګولۍ کشف سوي دي او دا ځني څرګندېږي چې د ګدامو ساتونکو دا وسايل د ګدامو د ساتني له پاره استعمالول او د دې دفاعي آلاتو عمر له اوس څخه د

درو زرو کالو په شاوخوا کې ټاکل سوی دئ.

د غلې د ګدامو تر ودانیو پخوا له معکبو ډبرو څخه چت لرونکې خوني جوړې سوي وې چې د ودانیو په شمالي برخه کې د خښتو ودانۍ هم سته.

د ودانیو مخ ته یو ارت غولی دئ چې شاوخوا ئې یو څه کوچنۍ خوني سته او د لویې ماڼۍ نخښې هم ښکاره دي چې له اومو خښتو څخه په نیم مخروطي شکل ودانه سوې ده او د خښتو لویې ستنې لري چې په سپینه رنګ آمیزي انځور سوي او اوس هم د دې ستنو دباندنۍ منظره له برمه ډکه ښکاري، په دې ستره ودانې کې یو د مفرغ چاقو او د هډوکي لاستی او د ښکلو کودرو ټوټې او د ادیتا (ادي – مور) د خیر او برکت د ربة النوع یوه ماته مجسمه چې د بلوچستان او سند کشف سوو مجسمو ته بېخي ورته دي د رازراز وسلو سره کشف سوي دي.

په نورو غونډیو کې د هغو خلکو د استوګې د ځایو نخښې سته، چې پورتنۍ غونډۍ ئې د عبادت ځای وو او په دې ودانیو کې د نغري نخښې د نغري د اسبابو سره او یو څو اونګونه او د اونګو دستې لاس ته راغلي دي، چې په غالب اټکل د دوا خرڅولو دکان بلل کېدای سي. په نورو خونو کې د پخو خښتو تنور او نیم کاره توبرې (پیکانونه) لیدل کېږي.

د زیاتو خونو د بام شاوي شېوه ګې لري او په دباندنیو دېوالو کې مستعمل توبرې (پیکانونه) او مسي سرنېزې ایښودل سوي او په هغه هدیره کې چې په دې ودانیو اړه لري په یوه قبر کې اووه کالبوتونه (اسکلټه) پیدا سوي دي.

د مونډیګک د غونډۍ مختلفي طبقې له کښتي څخه لوړې خوا ته داسي دي: له مځکې څخه لوړې خوا ته تر نهم پوړ پورې د نیم کوچیتوب د ژوندانه نخښې لیدلې کېږي او د هغو له مخې ویل کېدای سي چې د هغه ځای لومړني اوسېدونکي تر څه وخته نیم کوچي مالداران ول او د کورو ودانۍ ئې هم په دایو وې، تر هغه وروسته تر درو پوړو پورې ودانۍ له اومو خښتو څخه جوړې سوي دي، چې خاورین لوښي ئې په کښتو طبقاتو کې ساده او ابتدایي دي او وروسته تر هغه د لوښو کودرې ښه او ښکلې کېږي، څو چې د ختو انځور سوي لوښي منځ ته راځي او پر هغو کټوریو (جامو) چې پر پایو ولاړ دي د ځارویو، مرغانو، ګلانو او د جګو ښکرو لرونکي مږه او تنځري (کبک زري) او پیل مرغ او د پیروتي (عشق پیچان) د پاڼو شکلونه لیدل کېږي. د ختو دا انځور سوي

لوښي تر اتم پوړ وروسته زيات دي چي د (کوټي) د شاوخوا کشف سوو لوښو ته ورته دي. مفرغي فلزات او مس له شپږم پوړ څخه شروع کېږي او هغه وخت چي د پنځم پوړ سکاره ئې د ۱۴ کاربون له لاري وازمويل نو د دې پوړ نېټه ئې د ۲۶۲۵ق م په شاوخوا کي وټاکله او د موسيوکزال د قبل التاريخ د دورو د متخصص په قول دا غونډۍ تر پنځو زرو کالو ډېر عمر لري نو ځکه د سند تر موهن جوډيرو پخوانۍ او لرغونې ده. (۳ - ۴ نمبر عکس دي وکتل سي).

۳ - د افغانستان په شمالي برخو کي هم تر تاريخ دمخه د مدنيت آثار کشف سوي دي، په دې معنا چي په شمالي لمر لوېديز گوټ کي د مرو په انو کي تر تاريخ دمخه د مدنيت نخښي لاس ته راغلي دي او همدا راز د افغانستان په شمال لمر ختيځ گوټ کي د تاريخي آثارو بقايا سته چي د ۱۹۶۲م کال په اکتوبر کي د ايټالوي لرغون پېژندونکو له خوا کشف سول.

د هزارسُم دښت د هندوکش په شمالي لمنو کي د (۳۳۰۰) فټو په لوړوالي او د شپاړسو کيلومترو په اوږدوالي د سمنگان لمر لوېديځي شمالي خوا ته پروت دئ، چي په پخوانۍ زمانه کي هم د هند، کابل، بغلان، کندوز، بدخشان او چين لاره له همدې ناوې څخه تېرېدله او همدلته د غره په گارو کي هغه طبيعي سمڅي سته، چي پخواني انسانان پکښې اوسېدل، او هلته د ډبرين اورټک سامان او ډېري توږلي سوي ډبري کشف سوي دي او ځيني ودانۍ ئې هم په هغه زمانه اړه لري، چي انسان تر سمڅو او گارو دباندي ژوند تېراوه او بې ډوله ابتدايي دېوالونه ئې په ۱/۲۰ متره لوړوالي جوړ کړي دي، چي د هغو په منځ کي له ۲۰ څخه تر ۳۷ متره د ودانۍ بلاکونه ليده کېږي او دې ټولو ودانيو (۳۳۵) هکتاره مځکه نيولې ده او د هزارسم له سينده د اوبو د کانال د غاړي د (۱۲۵) متره دېوال سره د اوبو رسولو نخښي هم څرگندي دي.

د دې ځای د گارو په سمڅو کي مثلث ډوله خوني ليدلي کېږي، چي لويي تاخچې لري او دننه ئې له ډبرو څخه درې گُنجه چوکۍ توږلي سوي دي او د دېوالو په جوړولو کي ئې د ډبرو له شاڅو څخه کار اخيستی دئ او د نغريو نخښي هم پکښې ښکاره دي.

د هزارسم په سمڅو کي کيندل سوي (منقوره) شکلونه او رسمونه ليده کېږي چي د ايټالوي لرغون پېژندونکي هيئت د راپور ليکونکي په قول داسي شکلونه د غربي اروپا تر تاريخ په دمخه آثارو کي هم ليده سوي، خو د هزارسم د آثارو شکلونه څلور ډوله




له منډيګک څخه پر ترلاسه سوو لوښو کښل سوي انځورونه

۴ –لمبر عکس

دي: لومړي انساني شکلونه، دوهم رسم سوي لاسونه، دريم د څارويو شکلونه، څلرم د راز راز شکلو ګډون (اختلاط) چي معناوي ئې هم څرګندي سوي نه دي. (۵ – ٦ لمبر عکسونه دي و کتل سي).

تر تاريخ د دمخه زمانو پوهان د هزارسم د سمڅو دا شکلونه هغو شکلو ته ورته او نژدې ګڼي چي په هسپانيا، ايټاليا، سويس او ايرلينډ کي ئې موندلي دي او داسي نتيجه اخلي چي تر تاريخ دمخه د دې راز شکلو رسمول د انسانانو په منځ کي رواج درلود د مثال په توګه:

د هزارسم د سمڅو له شکلو څخه د پوڅکې يو شکل دئ چي نيمه دايره ئې تشکيل کړې او هغه دايره بيا يوه عمودي خط پرې کړې ده او له هغه څخه د انسان بدن مراد دئ، چي بازوګان او شمزۍ (ستون فقرات) ئې ښوولي سوي دي او هغو شکلو ته ورته دي چي تر تاريخ دمخه د هسپانيا، ايټاليا او ايرلينډ په آثارو کي هم ليدلي سوي دي (۷ نمبر عکس دي و کتل سي).

د هزارسم په آثارو کي دا ډول مشابه شکلونه ډېر دي، چي د اروپا تر تاريخ دمخه له لرغونيو آثارو څخه په پاته شکلو کي ښوول کېداى سي.

تر تاريخ دمخه په کلکولي تيک او د توړلو ډبرو د استعمال په دوره کي د بدخشان لاجورد هم د يادوني وړ دي، ځکه چي د کاشان د سيالک په غونډۍ او د سومر او بين النهرين په مځکو او د مصر د فرعون توتن خامن په هديره او هم په عيلام کي د لاجورد د ډبري راز راز نمونې موندلي سوي دي او دا څرګندوي چي د بدخشان د لاجوردو ډبري شپږ زره کاله پخوا شهرت درلود او استعمال ئې تر مصر پوري هم رسېدلی وو او د دې هيواد خلکو د نورو شرقي او غربي هيوادو سره لرغونې مدني رابطه درلوده. (۸ نمبر عکس دي و کتل سي).




**عکس لمبر–۵**




عکس نمبر–٦




تر تاريخ دمخه د سمنګان په هزا رسُم پوښکۍ غوندي شکلونه چي د يوه سړي مړوندونه او شمزۍ ښيي، داسي شکلونه په اسپانيا او ايټاليا کي هم پيدا سوي دي.

۷–لمبر عکس

# د منځنۍ آسیا د کلتوري دورو مقایسه له افغانستانه سره

| د میلاد نه مخکې | د ترکمنستان جنوب: آلتو | د ترکمنستان جنوب: نمازگاه | د ترکمنستان جنوب: گیوکسور | خوارزم | سفلي زرافشان | فرغانه | لوېدیځ تاجکستان | افغانستان او د هغه څنګ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۰۰۰ ق-م | خلورم الف | لومړی یازتیه | | امیرآباد | | چوست | کتاکومبه | په آق کمپروک کې د اژدها (ښامار) او آس - په دیمراسي غونډۍ - مندي‌گگ، نادعلي او سیستان کښې د اوسپنې مفرغ اخیره دوره. |
| | درېیم | شپږم | | د د ښتي خلکو کلتور، د زېړو (فلز) دوره کې | | | بېشکند | |
| ۲۰۰۰ | | پنځم | | | | | | |
| | | څلورم | خاورپونا | | زمان بابا | | د حصار کلتور | ړنده دره (دره کور) |
| | | درېیم | گوگ سور / گیوکسور | کلت مینار | تزرکان | | | |
| | دوهم | دوهم | یلنگاچ دېپه | | | | | آق کمپروک، دیمراسي، مندیگگ، سیستان |
| ۴۰۰۰ | لومړی الف | لومړی | بېگي داست | | | | | |
| | لومړی ب | | | | | | | آق کمپروک ۱-۲ په کوټه کښې د گل محمد کلا نال - جاله وان - هړپه موهنجودیږو - قره کمر - کچو. |
| ۵۰۰۰ | جلیتون | | | | | | | ۷ لاجوردو د ښځ. |

د ډبرې او زېړو دورې له کتاب نخه (د شوروي - مسکو ۱۹۶۶ کال د علومو د اکاډمۍ خپرونه. په پورتني جدول د افغانستان تر ستون لاندې. (د دې کتاب د مؤلف لخوا.

۳۲ زره ق-م. آق کمپروک
۵۰ 〃 〃 〃 دره یاول
هزارسم او درهٔ کور

۸ -لمبر جدول




د ډبرو او ژړو د دورې د آثارو مقايسه چي په
افغانستان او ترکمنستان کي کشف سوي دي
۸ –لمبر عکس



قصبه های تخلیه و تجدید شده
قصبه های متروک
۴۵۰
۰
۴۵۰
۹۰۰
کیلومتر
سقوطِ مواضع بود و باش
دورهٔ برنج در آسیای میانه
(از کتاب کشور هزار شهر تالیف و-م
ماسون چاپ ماسکو ۱۹۶۶م)
(ص ۷ - نمبر ۸)
آلتین
نمازگاه
ز ره ج کهن
بمپور
موهنجو دارو
چانهو دارو
هرپه
روپر




ص ۷ نمبر ۸
افغانستان و آسیای وسطی
در دورهٔ قبل تاریخ سنگ
و برنج. (از کتاب دورهٔ
سنگ و برنج نشریهٔ
اکادمی علوم شوروی.

## د افغانستان لرغوني کلتوري دوري

۸–لمبر جدول

| تر تاریخ د مخه کلتوري دورې | ۱–آق کپرو ک (اژدها) | ۲–آق کپرو ک (اسپ) | ۳–آق کپرو ک (خلاء) | ۴–آق کپرو ک (جمجمه) | دیمراسي غونډۍ | منډیګک | نادعلي | د سیستان نور ځایونه | دره دادل – دره چخماخ | قره کمر | هزارسم | دره کور |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د لرغوني مفرغ او اوسپني عصر ۱۰۰ کاله (ق–م) | × | × | × | × | × | × | × | × | | | | |
| د ډبري نوی عصر او بزپرستي[1] ۳۷۸۰ + ۱۳۰ کاله تر اوسه د مخه[2] (کولیچن) ۳۴۲۵ + ۱۲۵ کاله " " " (کاربونیت) | | | | | | | | | | | | × |
| د مفرغ عصر ۵۰۰۰ – ۲۵۰۰ کاله د مخه | × | × | | × | × | × | | × | | | | |
| کلکوتتیک عصر ښویه ډبره، خاورین لوښي او فلز ۷۲۷۰ + ۱۰۰ د مخه[3] | × | | | | × | × | | × ؟ | | | | |
| د ډبري نوی عصر او خاورین لوښي ۷۲۲۰ + ۱۰۰ کاله د مخه[4] | × | × | | | | | | | | | | |
| د ډبري نوی عصر بې له خاورینو لوښو ۸۶۰۰ + ۱۰۰ کاله د مخه[5] | × | × | | | | | | | | | | |
| د ډبري منځنی عصر ۱۰۵۸۰ + ۷۲۰ کاله د مخه[6] | | | | | | | | | | × | | |
| د لوړي طبقې د ډبري لرغونی عصر (تېره کوچنۍ ډبره) ۳۴۰۰۰ کاله د مخه[7] | | | | | | | | | | | | |
| د منځنۍ طبقې د ډبري لرغونی عصر بکرۍ –ماوستیرین (د فرانس جنوبي لي ماو ستیر ته منسوب) ۵۰۰۰۰ کاله د مخه | | | | | | | | | × | | × | × |

---

(۱) C /۱۴ د امریکا جیو کرون لیبارټري ئې عمر ټاکلی دئ. (۲) تر ۱۹۵۰م د مخه کلونه مراد دي. (۳) C /۱۴ د جرمني د مځکپېژندني مؤسسې ئې عمر ټاکلی دئ. نمبر HV ۴۲۹. (۴) C /۱۴ د جرمني د مځکپېژندني مؤسسې ئې عمر ټاکلی دئ. نمبر HV ۴۲۸. (۵) C /۱۴ د جرمني د مځکپېژندني مؤسسې ئې عمر ټاکلی دئ. نمبر HV ۴۲۵. (۶) C /۱۴ د پنسلوانیا پوهنتون ئې عمر ټاکلی دئ. (۷) C /۱۴ د پنسلوانیا پوهنتون ئې عمر ټاکلی دئ. (د امریکایي انتروپولوجي پروفیسر لوئي دوپري له مقالې څخه اخیستنه)

# تر اسلام دمخه تاريخي افغانستان

کم وخت چي تاريخي افغانستان ياد ېږي، موږ ټولي هغه مځکي په نظر کي نيسو چي د افغانستان سره ئې په تاريخي پېښو او د سياسي او مدني او فرهنگي حوادثو په جريان کي گډون درلود او د تاريخي گډو عواملو تر اغېزې لاندي ئې اوضاع يو بل ته سره ورته وه.

په دې جغرافي سيمه کي د ايران د فلات لمر ختيځه برخه، د سند له سينده بيا د خراسان تر پايه (دامغان) پوري شرقاً او غرباً شامله ده او په شمال کي هم د آمو شمالي برخي تر سمرقنده او د پامير د غرو لمني پکښې راځي او په جنوب کي پر بحيره عرب تمامېږي. دا سيمي عموماً گډ تاريخ لري.

## آريائيان:

د (۲۵۰۰ق م) په شاوخوا کي د آريائي سپين پوستو انسانانو يو لوی جمعيت په آريانا ويجه نومي هيواد او د آمو په شمالي غاړو کي د کوچيتوب او مالدارۍ ژوند تېراوه او چي شمېر ئې زيات سو، نو د آمو جنوبي سيمو او د باختر ورشو ته راوختل او د هندوکش په شمالي او جنوبي لمنو کي مېشته سول.

دې خلکو د نفوسو او قبيلو د زياتوالي په سبب لمر ختيځي خوا ته هجرت وکی او د سند له سينده د هند شمالي ارتو سيمو ته تېر سول او په هغه مځکه کي ئې يو مدنيت جوړ کی چي د (ويدا) په پخوانيو څلورو کتابو کي ئې انعکاس ليده کېږي او له همدې جهته ئې (ويدي مدنيت) بولو چي د (۱۴۰۰ ق م) په شاوخوا کي موجود وو او په همدې کتابو کي د افغاني لويو قبيلو يوه برخه نومونه لکه پکت (پښتون)، الينا (د لغمان او نورستان د شمالي خلک[1]) او نور راغلي دي او موږ له دې کتابو څخه د لرغوني

---

[1] دا نوم د اليشنگ او الينگار د درو په نومو کي څرگند دئ.

افغانستان د خلکو ژوند او ژبه او مدني او فرهنګي وضع معلوموولای سو. څلور ویده دا دي:

ریګ وید – سام وید – اتهرواوید – یجور وید. چي تر ټولو پخوانی وید (ریګ وید) دئ او په هغه کي د افغاني قبیلو، پاچهانو، نومیالیو خلکو، غرو او جغرافي ځایو ډېر نومونه راغلي دي.

## ارینه ویجه:

ارینه ویجه چي په پښتو کي تر اوسه (اوېجه) د ټاټوبي او د استوګني د ځمکي په معنا مستعمله ده، د تاریخ د پوهانو په قول د پامیر سیمي او یا د خوارزم شاوخوا او د خزر د دریاچې غاړو ته ویل کېده، چي د هغه جغرافي سیمي سره نښتې ده چي اوس موږ پکښې څېړنه کوو.

څنګه چي د آرین خلکو[1] د ژوندون د دې دورې آثار لا تر اوسه کشف سوي نه دي او تر تاریخ د دمخي زمانې برخه ده، ځکه نو د دوی د ژبې، د ژوندون د ډول، د دین او هنر په باره کي معلومات نسته او دکتر ګوستاولوبون هغه آریائي لرغونی ژبه چي په ارینه ویجه کي ویله کېدله د (آریک) په نامه یاده کړې ده.

## ویدي مدنیت:

د آرین خلکو تاریخي دوره د ویدي سرودو سره شروع کېږي او له همدې تاریخي منبع څخه د آرین خلکو افکار، عقاید، د ژوندون طرز او د افغانستان له خاوري څخه د دوی مهاجرت څرګندوو او د ژبپوهني له مقایسو څخه هم دا ښکارېږي چي د افغانستان د ژبو او د ویدي او سنسکریت د ژبو تر منځ ډېر ژبني مشترکات سته.

ویدي سرودونه په مختلفو زمانو کي ترتیب سوي دي او په شفاهي توګه له یوې خولې بلې خولې ته او له یوه نسله بل نسل ته رانقل سوي دي او لکه چي اوسني وید پېژندونکي پوهان وایي: د پورتنیو ذکر سوو کتابو پر سرودو سربېره یوه برخه نور لرغوني سرودونه ورک سوي دي چي د وید په خپل تعبیر (پخوانیو ریشیانو) یعني پخوانیو پوهانو به ویل او یا دا چي ځیني لرغوني سرودونه چي نوې بڼه ورکړه سوې ده

---

[1] آرین: د نجیب او کښتګر او زارع په معنا دئ.

هم موجود ول، چي غالباً ئې د افغانستان په ورشو او د آرین خلکو په هغه ژبه اړه درلودله، چي دوی لا د هند د شمال د اوو سیندو ها خوا ته مهاجرت نه وو کړی.

ځنګه چي ويدي کتابونه، ويدي ژبه او مضامين، اوستايي سرودو ته چي د سند په لمر لوېديځه ارته ورشو کي پيدا سوي، ښخي ورته دي او بشپړه نژدېوالی ورسره لري، ځکه نو ويل کېدای سي چي د ويدي د لرغونيو ورکو سوو سرودو زانګو همدا د افغانستان او د باختر ورشو ده، چي د دې اوسنيو موجوده سرودو يوه برخه به د هغو ورکو سوو سرودو نوې بڼه وي.

د لرغوني افغانستان د خاوري سره د ويدي مدنيت ډېره ټينګه رابطه له دې ځخه ځرګندېږي چي د ويدي او سنسکريت پخوانۍ ډېري کلمې په پښتو او دري ژبو کي ريښې لري او بايد چي دا ژبني ميراثونه د لرغوني آريايي اسلافو ځخه دې آريايي ژبو ته پاته سوي وي.

مثلاً د (آريا) کلمه دوه علمي توجيه لري:

ځينو د دې کلمې معنا په (اصيل) او (نجيب) کړې ده او ځينو په (زارع) او (کرونده ګر). ځنګه چي په پښتو کي د (آره) کلمه د (اصيل) په معنا راغلې ده او هم کله کله د (کرهڼي) او (بزګرۍ) مفهوم لري نو ځکه ويل کېدای سي چي د نسبتي (ن) په زياتېدو (آرين) (لکه پلن = پياده، تورن = شمشيري او نور) د کرونده ګر په معنا وي او ځنګه چي کرهڼه د خلکو په منځ کي يو شريف کار او کسب وو نو ښايي چي تر هغه وروسته د (نجيب) او (شريف) مفهوم مجازاً ورکړه سوی وي.

ارين خلک چي هند ته ولاړه هغې ورشو ته ئې (آريه ورته) يا (آريه ورشه) وويل او دا کلمه تر اوسه په پښتو کي د (ورشو) په شکل د ټاټوبي او د استوګني د ځکي او مرتع په معنا سته.

په پښتو کي تر اوسه (سند) ته سيند وايي، او دا کلمه په ويدي ژبه کي (سندهو) ده.

د ريګ ويد په سرودو کي د افغاني خاوري د ډېرو سيندو يادونه سوې ده، لکه سندهو (سند) او د کوبها (کابل) او ګوماني (ګومل) او کرومو (کورم) او سويتي (سوات) او ورکه (کونړ) رودونه، او ګندهاره (د کابل مجرا) او هره ويتي = سره سوتي (ارغنداو يا اراکوزي چي اوس ئې د پخواني نامه ريښه په دهراوت کي ساتلې سوې

ده) او بهالانه (د بولان دره).

په اتهرواوید کي د بلخ نوم د (بهلیکه) په شکل یاد سوی دئ، چي وروسته د مهابهارته په کتاب او د سنسکریت په ادبیاتو کي (بهلیکه) سو او ریښه ئې له بهلي – بخدي څخه راوتلې ده.

همدا شان په اتهرواوید کي د گنداریس (د گندهارا اوسېدونکي) تر څنگه د منجوان غره ذکر سوی چي همدا د منجان اوسنی غر دئ، چي د نورستان او بدخشان تر منځ پروت دئ.

په ویدي سرودو کي د لسو آریایي قبیلو جگړه یاده سوې ده، چي د ویدا د کتاب تر لیکلو (۱۴۰۰ ق م) دمخه د راوي (پنجاب) پر غاړه سوې وه او په دې قبیلو کي د افغانستان او د افغانستان د شاوخوا خلکو هم ډېر نومونه سته. لکه الینا (د الیشنگ او الینگار خلک) او بهالانه (د بولان د درې خلک)، او شیوا (د سند د غاړي خلک) او پکتهه (پښتون).

له دې جملې څخه د ریگ وید په دوهم ټوک کي د پکتهه د قبیلو او د هغو نومیالیو کسانو او پاچهانو څو څو واره یادونه سوې ده چي یو له هغو څخه پکتهه نامتو پاچا تورونه (تورو هونی = شمشېربار) نومېده او د ارغنداو او دهراوت (هره ویتي) په ناوه کي د پني، ډسه، پراوټه، او بریسه یادونه راغلې ده، چي اوس په افغاني قبیلو کي برېڅ او پني د کندهار په جنوب او د سیوی په ناوه کي سته او همدا راز پخوانیو نومو ته د ډاسو (سلیمانخېل) او پروټ (الکوزي) د قبیلو نسبت لا پاته دئ.

هغه آریائي نژاده خلک چي له آریانه ویجه څخه د هندوکش شمالي او جنوبي سیمو ته راغلل کوچیان ول او د چوپانۍ ژوند ئې درلود.

په ۱۹۳۹م کي سمرقند ته نژدې په (تل برزو) کي پر خاورین لوښي یو تصویر موندل سوی دئ چي هغه د کیومرث (گومرد – یا گوپت شاه) د یو پخواني آریائي پاچا تصویر بولي، چي نیمی سړی او نیمی نر غویی دئ او په گویشت د اوستا په یوه برخه کي ئې چوپان پاچا بللی دئ او له دې څخه څرگندېږي چي دې خلکو د کوچیتوب او چوپانۍ په وخت کي هم پاچهان درلودل او کولا (کهول) او کورنۍ د دوی د ژوند اساس وو، چي له هغو څخه بیا طایفې پیدا کېدلې او د (پتي) په نامه ئې مشر درلود او بیا چي څو کولا (کهوله) سره یو ځای کېدل (گرامه) یا (ویسه) ځني جوړېده او شاهي ټاټوبي

ته ئې (پور) وايه او دا درې سره کلمې تر اوسه د سړو او ځايو په نومو کي ستـه لکه: بګرام، ميرويس، شېرپور.

لومړنيو آريائي نژادو خلکو دمخه تر هغه چي هند ته هجرت وکي، کاسټ يعني اجتماعي طبقه بندي ئې نه پېژندله، خو هغه وخت چي په هند کي د هغه هيواد د پخوانيو تور نژادو اوسېدونکو سره مخامخ سول، نو پر څلورو طبقو برهمن (روحاني)، کشتريه (جګړن)، ويسيه (ښاريان او کسبه) او سودرا (نامملموس) ووېشل سوه، چي دې اجتماعي طبقه بندۍ د دوی په وروستنيو تاريخي او اجتماعي اوضاعو کي څرګنده اغېزه درلودله.

په ويدي کتابو او د آريائي نژاد په نورو آثارو کي داسي ليده کېږي چي: پاچهي د مهاجرت له لومړنيو وختو څخه د دوی په منځ کي وه او راز راز ارباب انواع ئې پرستل او د (سبها) او (سميتي) په نومو ئې جرګې او د (سامانه) په نامه ئې مېلې درلودلې. پېغلو د زلميانو سره او ښځو د نارينه وو سره مينه کوله او د واده دودونه ئې هم درلودل او د کورنيو افرادو د ډېرښت له پاره ئې تل دعاوي کولې او د ښځو په طبقه کي شاعراني هم وې، چي ځيني سرودونه ئې د ريګ ويد په لومړي کتاب کي ساتل سوي دي. دې خلکو ورزشي لوبې، د آس سپرلو، اتڼ، نڅا او موزيک هم درلود او په کرهڼه او مالدارۍ بوخت ول او کالي ئې له وړيو او يا د څارويو له پوټکو جوړول، د پسو او بزو رمې او د غويو ګلې ئې درلودلې او د کورنيو شتمني (دارايي) ئې د څارويو رمې او په تېره بيا د شيدو لرونکو غواوو درلودل وو.

او کله چي به د افغانستان غرو ته د (سوما) د بوټي د رانيولو (پېرودلو) له پاره راتله، خپل غوايي به ئې د خريدارۍ د واحد په توګه راوستل چي هغه ته به ئې پاسو Pasu ويل چي د پيسې (پولي واحد) کلمه له هغه څخه راوتلې ده.

له صنايعو څخه ئې د لرګو تراشنه، فلز کاري او د ټوکرانو او پوزي (بوريا) اودنه او د خاورينو لوښو جوړونه، فلزي تزئينات او د اربو جوړول ئې زده ول.

خوراک او څښاک ئې د غلو دانې، شيدې او نور لبنيات، د ښکار غوښې او د سوما او سوريا شيره وه.

د طبيعي عناصرو پرستش ئې کاوه لکه ارونا (د آسمان رب النوع)، اندرا (د جګړې رب النوع)، سوريا (لمر)، اګني (اور)، سوما (غرني وابښه چي له هغه څخه ئې

مشروب جوړول)، ماروت (باد) او نور ... او د هر یوه په نامه ئې قربانۍ درلوولې، خپلو پوهانو ته ئې (ریشي) ویل، چي په پښتو کي اوس د دې کلمې له ریښې څخه د (رشه) کلمه د خوی، خلق او پوهي په معنا لرو.

## اوستائي مدنیت:

د افغانستان د آریائي خلکو دوهم مدنیت په بخدي (بلخ) او د هندوکش په شمالي او جنوبي سیمو او د هلمند په ناوه کي وو، چي د (۱۲۰۰ ق م) په شاوخوا کي شروع سوی او له هغې دورې څخه یو کتاب د اوستا په نامه پاته دئ چي پنځه بابه لري.

څنګه چي په دې باره کي زموږ د معلوماتو منبع د اوستا د کتاب پاته برخه ده، نو ځکه دې مدنیت او فرهنګ ته اوستایي وایو او ځکه چي دا فرهنګ په بخدي او افغانستان کي زیږېدلی دئ ځکه نو د دې هیواد په تاریخ کي خورا زیات اهمیت لري او د اوستا کتاب د افغانستان د لرغونیو خلکو مدني، فکري او فرهنګي اوضاع په ښه توګه څرګندوي.

د اوستا له کتابه څرګندیږي چي آریایي خلک د کوچي توب، مالدارۍ او له کډي په شا ژونده مدنیت ته رسېدلي، په کلیو او ښارو کي میشته سوي دي او د اقتصادي او اجتماعي ژوند په مراحلو کي ئې یوه نوې دوره شروع کړې ده.

په دې دوره کي لومړی ځل په بلخ کي پاچهي منځته راغله او د (یمه) (جم) په نامه یو پاچا د بلخ ښار ودان کړی دئ او هم په دې خلکو کي یو ټاکلی آیین د مزده یسنه = مزدیسنا (د خدای ستاینه) په نامه منځته راغی، چي مدني او روحي قوانین او هدایتونه ئې درلودل او مؤسس ئې زره توشتره = زردشت وو، چي د کورنۍ په نامه (سپنتمه) یا (سپینتمان) یادېده (چي دا نوم په پښتو کي دوې کلمې [سپین] او [تمه] یا [تمان] د نژاد په معنا دئ).

د زردشت د تبلیغ او منځته راتلو ځای بخدي (بلخ) او سیستان دئ (۹ نمبر عکس).

د زردشت پلار پورو شاسپه (د زاړه آس خاوند) او مور ئې (دوغدو) او د پلار له خوا نیکه ئې (پتیرګتراسپه) نومېده. د څلورو وروڼو نومونه ئې دا ول:

رتوشتر، رنګوشتر، نوتریکا، نی وتیش.

د ده لومړۍ ماندينه چي نوم ئې معلوم نه دئ د (ايست واستره) مور وه او درې لوڼې ئې درلودلې. د زردشت دوهمه ماندينه د دوو زامنو (هوره چيتره) او (اوروتت نره) مور وه، دريمه ماندينه ئې چي په لمرختيځه ورشو او د بخدي په سيمو کې کړې وه، د جاماسپ (د گشتاسپ د وزير) د ورور (فره شه وشتره) لور وه او (هووي) نومېدله. د ده له زامنو څخه (ايست واتسره) د روحانيانو مشر وو او (اوروتت نره) د بزگرانو لارښوونکی او (هوره چيتره) د جنگياليو افسر باله کېده او د پيروانو درې گوني طبقې د زردشت د دې درو زامنو له خوا منځته راغلي دي. ده درې لوڼې هم درلودلې چي فريني، ثريتي، پئورو چيستي نومېدلې.

د زردشت د ژوندون زمانه په يقيني توگه معلومه نه ده، خو د زردشتي کتابو د روايتو له مخي د (٦٦٠ ق م) په شاوخوا کي زېږېدلی او په شل کلني يعني په (۶۴۰ق م) کي منزوي سوي او په دېرش کلني يعني په (٦٣٠ق م) کي ئې د لارښووني ادعا کړې ده او په ۴۲ کلني يعني په (٦١٨ق م ) کي (کيگشتاسپ) په ده وگروهېد او د ده په عقيده سو او په (۵۸۳ق م) په اووه اويا کلني د توراني (ارجاسپ) د يرغل پر وخت د بلخ په دوهه (آتشکده) کي د توراني (براترکرش) له لاسه ووژل سو، مگر څېړونکي پوهان دا کلونه صحيح نه بولي او د ده زېږېدنه ئې د (۵۵۸ق م) په شاوخوا کي گڼلې ده.

زردشت له هغو لرغونيو کسانو څخه دئ چي په لرغوني افغانستان کي ئې پر نوي اقتصادي بنياد باندي د يو اساسي او زوږ رفرم بنسټ ايښی دئ او د (ژ. دومزيل) په قول:

"ده خپل اقتصادي سيستم په داسي وخت کي منځته راوړی دئ، چي د آريانانو يوه ډله د کوچيتوب له حاله راوتل او کليوالي ژوند ئې غوره کاوه".

په دې ترتيب چي د ځارويو د څړ نامعلومه ځايونه ئې د هر ټبر او قوم له پاره د څړ په ټاکلو ځايو اليش کړه او په همدې دليل ئې غويي او غوا ته چي د خوراک او کرهڼي يوازنۍ وسيله وه په درنه سترگه کتل او حيواني سري په کليوالي تشکيلاتو او کرهڼه کي خاص اهميت موندلی وو.

زردشت د يوه خدای (اهوره مزده – يوه بادار) په وحدت او بې ساري عظمت قايل سو او له پخوانيو خدايانو څخه ئې چي اريائيانو ورته عقيده درلودله مخ وگرزاوه. دی وايي چي:

"تر یوه خدای وروسته د نړۍ له ابتدا څخه دوه روحه سته، چي یو پر ښه لار او بل پر بده لار ځي، او ټول ژوند یوه باطني جګړه ده چي د شر د قوتو پر ضد ادامه لري او په دې دایمي جګړه کي رښا او تیاره عقل او اهریمن یو د بل سره مقابل دي".

زردشت پخپل آئین کي د څارویو قرباني او د سوما نشه راوستونکي شراب چي لرغونیو آریائیانو درلوده له منځه وړي دي.

دی وایي: "د (سوما) کثیف نشه کوونکي شراب څنګه د نېکۍ سره کومک کولای سي، د بزګر سړي غوییي تر دې چي قرباني سي، ښه او ګټوره دا ده چي د خپل خاوند په لاس کي وي".

د زردشت په آئین کي د آخرت پر ورځ، د اعمالو پر محاسبې او د رشتیا پر بري او د دروا غو پر ماته او د جنت او دوږخ او د چنوات (صراط) د پله او ملائکو پر وجود عقیده سته او آذر (اور) ئې هم مقدس ګڼلی دئ. چي د ټولو موجوداتو په کمون او د طبیعت په موالیدو کي په ودیعت ایښود سوی او د ژویو (جانورانو) د ژوندون جوهر او د باطني او غریزي تودښت نغری دئ، نو ځکه د زردشت پیروانو د آذر د نمانځني له پاره دوهې (آتشکدې) درلودلې.

د زردشت په آئین کي د نېکۍ قوتونه د امیشه سپینه (یعني همېشه سپین او مقدس) او ایزدان (د ستایني وړ) په نامه سته، چي له هغې جملې څخه شپږ عامل قوتونه (موکلي ملکي) دي، چي هر یو قوت د خپل صلاحیت په دائره کي د نړۍ د چارو د ادارې له پاره د بل قوت سره همکاري کوي او هر یو قوت د اهوره مزده (هرمزد) د یوه صفت مظهر او جاویدان بلل سوی دئ:

۱/ وهو منه = بهمن (ښه انګېرنه - نېکه مننه) یا د ګلو او رمو او نورو ژویو (ژوندویو موجوداتو) ساتندویه پریښته.

۲/ اشه وهیشه = اردي بهشت (ښه نظم) د اور پریښته.

۳/ خشتره وئیریه = شهریور (تسلط د فلزاتو او ښکلو ډبرو ساتندویه پریښته.

۴/ سپینته ارمئیتي = سپیدار مذ (د روح سپېلتوب او تواضع) د مځکي ساتندویه پریښته.

۵/ هئوروتات = خرداد (روغتیا) د غښتلتوب او کورو او اوبو موکله پریښته.

۶/ امیریتات = امرداد (ابدي ژوند او بقا) د کرهڼو، وښو او د څڼ د ځایو

پرېښته.

د مزده يسنا د پيدا ايښت په سر کي د دې شپږو ملائکو پر سر يوه ملکه د سپينته مينيو (سپين عقل) په نامه ولاړه وه، چي تر هغې وروسته ئې پر ځای (اهوره مزده) او کله هم (سره اوشه) [سروش = د خير هاتف] درېدله.

د خير او نېکۍ او رڼا د قوتو په مقابل کي د شر او بدۍ او تاريکۍ قوتونه هم موجود ول، چي د ټولو مفاسدو او شرارتو مشر (انگره مينيو) [اهريمن] وو او په اوستا کي ئې د شر او تاريکۍ دا ټول قوتونه د (ديوه) په نامه ياد کړي او د خير د ملائکو په مقابل کي ئې د شر او بدۍ شپږ مؤکلان د کاريکان په نامه داسي تصوير کړي دي:

۱/ اکه منه: د هومنه په مقابل کي د ناپاکي انگېرني (يا منني) په معنا د شرارت او نفاق او بدۍ ښکارندوی.

۲/ ايندره: د اردي بهشت په مقابل کي د بدعت، دروه او د خلکو گمراه کوونکی روح.

۳/ سئوروه: د شهريور په مقابل کي د بې نظمۍ ښکارندوی او د گړبړديو.

۴/ نااونک هئي ثيا: د سپيندارمذ په مقابل کي د تور او نافرمانۍ ښکارندوی.

۵/ تئوروی: د خرداد په مقابل کي د ورانۍ، فساد، لوږي او تندي ديو.

٦/ زيي ريش: د امرداد په مقابل کي چي د تئوروی شريک دئ.

کله هم ايشمه د (خشم) ديو د سروش په مقابل کي د هغو دېبانو اووم عدد بشپړوي، چي د ناشکرۍ او عصيان ښکارندوی دئ.

زردشت خپل آئين پر درو اخلاقي او حياتي بنسټو بنا کړی دئ او هغه دا دي:

هومته (ښه منل)، هوخته (ښه ويل)، هوورشته (ښه کول) او په دې ډول د زردشت پيروانو ښه منل، ښه ويل او ښه کول د خپل عمل اساس گرزاوه او خپله انگېرنه، خپله ژبه او خپل عمر ئې په يو شان له معنوي او مادي ککړتيا څخه خوندي ساتل. د بدني او روحي پاکوالي، د رشتيا، سموالي، مړاني، سخاوت او ټولو ښو اخلاقو مراعات ئې کاوه. درواغ او تور منع ول او د مزديسنا هر پيرو په دې مامور گڼل کېده چي اور، اوبه او مځکه د ناپاکيو له ککړتيا څخه وساتي، ځکه نو دوی مځکه د مړو د جسدو د ککړتيا څخه ساتله او خپل مړي ئې نه ښخول. بلکي په آزاده هوا کي ئې پر لوړو ځايو باندي ايښوول چي د هوا مرغان ئې وخوري او له منځه ولاړ سي.

د زردشت آئین چي د پیدا کېدو او روزني ځای ئې د دنیا ډېر لرغونی پایتخت بخدي = بلخ وو، د اوستا د کتاب په وسیله تبلیغ سو، چي تفسیر ئې په پهلوي (زند) ژبه راغلی دئ او هغه ژبه چي اوستا په لیکلې سوې د ویدي ژبي سره ډېر نژدېوالی لري او د اوستا کتاب د سکندر تر یرغل دمخه (۸۱۵) فصله او (۲۱) نسکه یا کتابه درلوده خو سکندر د غوایي (۱۲۰۰) پوستونه چي پر هغو د اوستا کتاب لیکلی وو وسوځل او تر سکندر وروسته چي ئې بیا هغه کتاب راټول کی (۳۴۸) فصله لاس ته ورغله، چي پر همهغو (۲۱) نسکو ووېشل سوه او د (ویسټ) نومي انګریزي عالم په حساب دې ټولو (۲۱) نسکو (۳۴۵۷۰۰۰) کلمې درلودلې، چي اوس له هغو څخه یوازي (۸۳۰۰۰) کلمې سته او له هغې شرحي څخه چي انګرېزي مستشرق براون کړې ده داسي څرګندېږي چي د اوستا باختري اصل له منځه تللی او هغه څه چي اوس پاته دي یوازي څلرمه برخه ئې ده په دې تفصیل:

۱/ یسنا (پرسته او جشن): چي دیني سرودونه دي او (۷۲) فصله لري.

۲/ ویسپرید (سروران): د دعا او اورادو مجموعه ده، چي له (۲۳) څخه تر (۲۷) پوري فصلونه لري.

۳/ وندیداد (د شیطانانو دفع کوونکی): د اودس، استغفار، توبې او نور دیني احکام لري او (۲۲) فرګرد (بابونه) دي.

۴/ یشت (نمونځ او ستاینه): د خدای او ملائکو ستاینه ده او (۲۱) بابه لري.

۵/ خورده اوستا (کوچنۍ اوستا): چي د (۳۵۰م) په شاوخوا کي آذربد مهراسپند تالیف کړې ده او دعاوي، نمنځونه او مناجاتونه پکښې دي.

د اوستایي مدنیت په دوره کي چي له (۱۲۰۰ق م) څخه شروع سوې ده، لومړی وار په بخدي کي شاهي نظام منځته راغی او اوستا وایي چي: "یمه" د اهوره مزده په امر یوه "واره" ودانه کړه، چي اوږده او پسور ئې د یوه اسپریس (آس ځغلولو د میدان) په اندازه وو، او په هغه کي ئې راز راز څناوران لکه پسونه، غوایان، سپي، مرغان او نور وساتل او د اوبو له پاره ئې هم یوه واله د یوه هاتره (میل) په اندازه وکینده، او هم ئې په هغه واره کي په مخصوص ترتیب بازارونه، کوڅې او کورونه جوړ کړه، خو په هغه ښار کي ئې ناروغانو، دوراغجنانو، بد خویو، پیسانو او لېونیانو ته ځای ورنه کړه".

په دې ترتیب د بخدي په واره کي د آریایي مدنیت لومړی ښار ودان او لومړی

مرکز تاسیس سو او همدا د (واره) اوستایي کلمه ده چې په سنسکریت کې (وهاره) سوې ده او په دري کې (بهار) ځنې جوړ سوی دئ، چې پر هغه ځای تر اسلامي لومړۍ پیړۍ پورې (د بلخ نوبهار) ودان وو.

د اوستایي مدنیت په زمانه کې چې آریایي خلکو د هندوکش په شمالي لمنو کې کلیوالي ژوند ته لاس ورته کی، کلي او ښارونه ئې ودان کړه او د کوچیتوب له دورې ځخه په کورو کې د تل اوسېدو حال ته راواوښتل. دا هغه ګام وو چې د مدني مراحلو د لوړتیا او اقتصادي تحول په لار کې واخیست سو او په دې وخت کې وو چې شاهي نظام هم منځته راغلی او د بخدي پاچهانو چې د اوستا په پشتو کې د (پره ذاته) په نامه یاد سوي دي (یعني پېشدادیانو) په خپل سلطنتي نظام کې نظم، داد او نیاو (عدل) منځته راوستل، او د اوستا په تعبیر د بخدي دې پاچهانو د رب النوعی مقام هم درلود او څنګه چې په ویدي سرودو کې هم د دې پاچهانو یادونه سوې ده، ځکه نو د دې شاهي کورنیو زمانه تر تاریخ دمخه عصر ته چې آرین خلکو د هندوکش له شمالي سیمو هجرت نه وو کړی رسېدای سي.

مګر په اوستا کې یو لوی پهلوان (د ګیومرث له اولاد ځخه) چې هئوشینګه نومېده په (پره ذاته = پیشداد) ملقب وو، یعني لومړی قانون ګذار او دا د دري ادبیاتو همهغه هوشنګ دئ چې د البزر په غره کې ئې د ناهید (اناهیتا) د ربة النوع له پاره قرباني کولې او د دیبانو سره جنګېده او پر اوو هیوادو ئې پاچهي کوله.

د دینکرد په دریم کتاب کې داسي راغلي دي چې: "د کرهڼې او دهکانیه = دهقانیِ دود او د مالکیت اصل همدې پېشدادیانو منځته راوړی دئ او بیا وروسته هوشنګ دیهوپتیه (د البیروني په قول دهوفذیه) یعني د حکومت او پاچهۍ او د خلکو د ساتني اصل ایجاد کړی دئ" او له دې روایت ځخه پوهېدای سو، چې د اوستایي دورې مدنیت د ویدي د اوایلو او کوچیتوب سره توپیر درلود. په دې معنا چې دا وخت د ښکلي بخدي خلکو په کرهڼه او آبادۍ او د کلیو او ښارو په ودانۍ لاس پورې کړی وو او د کوچیتوب او بدویت د ژوند له اقتصادي مرحلې ځخه دهکانیه او د مځکې مالکیت ته او حتی تر هغه یوې لوړې مرتبې (دهیوپتیه) [د حکومت او سلطنت ایجاد] ته رسېدلی وو او هوشنګ پر یوې خورا ارتې ورشو او مځکې حکم کاوه او د دېبانو او کوړګرو او بدذاتو سره چې د مدنیت ورانوونکي او د کلیوالو کروندګرو دښمنان ول

جنګېده.

تر هوشنګ وروسته بل پیشدادي پاچا (تهمورث) دئ چي په اوستا کي د (تخمه او روپه) په نامه یاد سوی او په ازینه ونت (وسله وال) ملقب وو او دی ئې د اوو هیوادو پاچا د (ویونګهان) زوی د (اینګهت) لمسی او د هوشنګ کړوسی ګڼلی دئ، چي دېرش کاله ئې د خپل وزیر (شیدسپ) په کومک په نیاو (عدل) او انصاف حکومت وکی او ده ته (دیوبند) هم وایي، دا ځکه چي دیبان او اهریمن ئې بند کړي ول او هم ئې ځیني داسي مدني کارونه وکړه، چي په نوي اقتصادي مرحله کي ورته اړتیا وه، لکه د وړیو وریښل، د کالو سکښتل او ګنډل، د ځارویو اهلي کول او له آس، غاتري، اوښ، غوایي او خره څخه ګټه اخیستل او لیک او لوست منځته راوړل.

د کریستن سین په قول: "تر تهمورث وروسته ئې ورور جمشید پاچا سو او لومړی ځل ئې د نوروز جشن جوړ کی او دی د اوستا په تعبیر (د ښو ګلو خاوند) وو، چي دا لقب په اوستا کي هوثوه (په پهلوي کي هورمګ) راغلی دئ.

ده درې خوندي د (یمګ) او (اري نوک) او (سنګهوک) په نومو درلودلې (په شهنامه کي: ارنواز، او شهرناز).

د اوستایي مدنیت دورې او د آریایي نژادو شاهي کورنیو او نومیالیو کسانو او پهلوانانو په باب تر اسلام دمخه او وروسته د پخوانیو کتابونو روایتو د زمانې په تېرېدو یوه داستاني بڼه پیدا کړې ده او په دغو کتابو کي دا اساطیر په مختلفو ډولو راوړه سوي دي، خو موږ دلته زیار باسو چي تر خپله وسه د نوموړو داستانو تاریخي اړخونه ولټوو.

په ویدا کي د پیشدادي ستر پاچا نوم (یمه) Yama او په اوستا کي (ییمه) Yima او په پهلوي کي (یم) Yam او په دري کي (جم) دئ، چي صفت ئې په اوستا کي خشیته Xshaeta او په پهلوي کي شیت Shet او په دري کي (شید) راغلی او (جمشید) ئې بولي، یعني ځلېدونکی جم. د جم پلار په اوستا کي ویوهونت Vivavant دئ، چي وروسته بیا ویونګهونت = ویونګهان په ویونجهان معرب سو او زوی ئې یمه = جم د اهوره مزده له خوا د خلکو ساتندوی او پاچا وټاکل سو چي د خلکو د ودانۍ او هوسائۍ له پاره زیار وباسي او ده ته یوه لکړه، یو غمی، یوه توره، یو کټوری (جام) او د یوي زرین نېش (غاښور) ورکړ سو، چي د ده د شاهۍ لومړی نښان وي او له نیش څخه د

مځکې په کرلو او کرهڼه کې کار واخلي او د خلکو او څارویو د نسل په ډېرولو کې زيار وباسي او د بخدي (واره) ودانه کړي او هغه ځای چې په اوستا کې "د لوړو بيرغو لرونکې ښکلې بخدي" بلل سوی د خپل ځان او نورو ښاري خلکو ټاټوبی وټاکي.

د بخدي پاچا (يمه) لومړی پاچا دئ چې د مدنيت او ښاري توب بنسټ ئې ايښی او اجتماعي ژوند ئې ترتيب کړی دئ.

کرهڼه، خاوري روزنه، کسب، د اوسپني ويلول، د کالو اودل، د وسلو او جواهرو استعمال، د لښکري طبقې ټاکل، ختګري (معماري) او د فلزاتو او دواوو استعمال ئې رواج کړه او په خپل شاهي لومړي پايتخت ښکلي بخدي کي ئې مدنيت جوړ او خپور کی او د فرانسوي محقق بنونيست په قول: دی هغه آريايي شخصيت دئ چې د اسلام تر منلو دمخه د نورستان د خلکو په منځ کي د (ايمرا) Imra په نامه تر ټولو ارباب انواعو لوړ او ستر رب النوع ګڼل کېدی او د هغې سيمي په مرکزي معبد کي چې هلته ئې د قربانيو دودونه پر ځای کول د ده مجسمې ئې درولي وې.

په ۹ يسنا کي له ۳ تر ۵ فقرې پوري وايي: "د جم د پاچهۍ په وخت کي تودوالی، سړوالی، زوړوالی، مړينه او رخه (رشک) په دنيا کي نه ول".

او د ۱۹ يشت په ۳۱ – ۳۸ فقرو کي داسي راغلي دي چې: "د جم په سلطنت کي د نړۍ ژوندون په خوښي او خوشحالي تېرېده، د رنځ او ناورين (آسيب) اثر نه وو". په اوستا او د عرب او عجم په نورو تاريخي کتابو کي د جم او پېشدادي پاچهانو کيسه (داستان) د ډېر پخوانيتوب په سبب افسانوي بڼه غوره کړې ده او څنګه چې ئې د جم پاچهي د هر راز هوسايۍ او آرامۍ، نياو (داد) او ښېګڼي سرچينه بللې ده ځکه ئې نو هغه څوک چې د خير، خوښۍ او ښېګڼي، د دې سرچينې د ورانولو وسيله سوی اژي دهاکه (اژدها – ښامار) بللی دئ او دا سړی (بيوراسپ) د (اروند اسپ) زوی د کيومرث (ګرشاه = غرشاه) له اولادې څخه وو، چې مور ئې ذاک (ودک) د جم خور وه او بيوراسپ د لسو زرو اسانو د خاوند په معنا دئ او څنګه چې ئې آسان تېز ځغلول او تازنده سړی وو او هم ئې تازنده اسان درلودل نو ځکه ئې ورته (تازي) ويلي دي، چې په همدې سبب ځينو مؤرخانو دی تازي او له عربي نژاده ګڼلی دئ.

وايي چې دی د (بوري) له مځکي راولاړ سوی دئ او په دې نامه تر اوسه يو ځای د افغانستان شرقي جنوب ته په ږوب کي سته.

ځنګه چي عربو دا نوم معرب کړی او ضحاک ئې ورته ویلي دي ځکه ئې نو دی عربي نژاده بللی دئ او هم ځنګه چي سامي نژادو د آریائیانو سره رقابت درلود ځکه نو هر عنصر چي دې نوي تشکیل سوي مدنیت او د بخدي پاچهۍ ته خطر پېښاوه هغه ئې له پردي نژاده باله او لکه آریایي نژاده تورانیان، ضحاک بیوراسپ ئې عربي نژاده ګڼلی دئ. حال دا چي ځیني دقیق مؤرخان لکه طبري او البیروني وایي: عربانو ضحاک عربي نژاده او عجمیانو عجمي انګېرلی دئ.

ځنګه چي د افغاني تاریخي ښار، ځایو او سړیو په نومو کي (لکه د غوري شاهانو د کورنۍ ستر نیکه ضحاک او په بامیان کي د ضحاک ښار) د دې نامه ریښه سته او مؤرخان هم د ده د نسب سلسله آریایي نژاده ګیومرث ته رسوي او دی د جم خوریی بولي نو دا خبره چي دی عربي نژاده وو له منلو څخه لیري ښکاري.

په هر صورت د اوستا د اشارو له مخي بیوراسپ اژي دهاکه د ښکلي بخدي پر مدنیت یرغل وکی او ځنګه چي ایزدي فر (د سلطنت پرتم یا ځلا) د بریالیتوب د مرغه په شکل له جم څخه بېله سوې وه اژي دهاکه پر ده بری وموند او د ده هیواد ئې ونیو او دی ئې په اره دوه ځایه کی.

دې تازي (تازنده) ضحاک د رام یشت د ۱۹ فقرې له مخي د کوی رینتا په نامه یوه ټینګه ماڼۍ او شاهي تخت او زرتنه چترۍ درلوده او د اسلامي دورې په دري ادبیاتو کي ده ته (ضحاک ماران = مار دوش = اژدها) ویلي سوي دي.

د اوستا له مخي تر (جم) وروسته ایزدي فر (د سلطنت ځلا) پر (ترایتنه) [په پهلوي کي فریتون = فریدون) د پورتورا (پورګاو) پر زوی چي د جم له اولادې څخه وو وځلېده چي پلار ئې د اثویه (اثفیان = اتبین) په نامه هم یاد سوی دئ او د دې کورنۍ خلک کرونده ګران وه چي د زیاترو د نومو سره د ګاو کلمه (په اوستا کي ګئو) راغلې ده.

فریدون د اوبو د ربة النوع (اناهیتا) له پاره سل اسان او زر غوایي او لس زره پسونه قرباني کړل څو چي پر شریر اژي دهاکه بریالی سو او هغه ئې وواژه او د جمشید دوې خوندي (اري نوک) او (سنګهوک) چي ضحاک بندیاني کړي وې لاس ته ئې راوستلې.

د اژي دهاکه په مقابل کي د خلکو د غاو داستان چي د فردوسي په شهنامه کي د

هغو خدای نامو له روایته څخه را اخیسته سوی چي تر اسلامي دورې دمخه وې داسي دئ چي: یوه پښ (آهنگر) چي کاوک (کاوه) نومېده، د خپلي آهنګرۍ څرمن د نېزې پر څوکه د بیرغ په شان وتړله او خلک ئې پر ځان راغوند کړه او د اژي دهاکه په مقابل کي وپارېدل او د هغه د تېریو پر ضد پورته سوه او دا همغه د کاویان بیرغ دئ چي وروسته تر ډېري مودې پوري د آریایي خلکو د بري سمبول وو.

فریدون په دې هڅه او جنبش کي د پارېدلو خلکو مشر وو او ده پر ضحاک باندي د خپل بري په یاد د نوروز د جشن په څېر د (مهرګان د جشن) اساس کښېښود، دېبان ئې پر سر وتکول او جهان ئې ونیو.

د آریایي اولسو په داستانو کي یو بل ته ورته روایات سته، چي وایي: فریدون د ایرینه – توئیرینه او سئیریم ینه هیوادونه پر خپلو درو زامنو ارج (ایرج) او توچ (تور) او سرم (سلم) ووېشل، خو سلم او تور د ایرج سره رخه (رشک) درلوده او دی ئې په نامردانه توګه وواژه، څو چي د منوش چیثره (منوچهر) په نامه د ایرج زوی پیدا سو او د ایرج کسات ئې وکیښ.

دې داستان ته ورته د دوو زامنو کیسې نوري هم سته لکه د زردشت د درو زامنو او د تارژي تائوس سګایي د دوو زامنو او د درو پښتني ورو‌نو (غرغښت، بېټني، سړه بن) کیسې چي د ګلزدو فرانس د استاد ژرژدومزیل په قول پخوانۍ آریایي ټولنه له درو ډلو: روحانیونو، جګړنو او ثروت پیدا کوونکو څخه جوړېده او د پخواني هند اساسي کاستهونه هم برهمنان، جګړن نجیبان او څاروي پالونکي کرونده ګران ول، او د زردشت له درو زامنو څخه هم مشر زوی روحاني، دوهم زوی جګړن، او دریم چوپان (پونده) وو او دا ګرده کیسې په آریایي قدیمو قومونو کي سره ورته دي.

په هر صورت منوچهر د ایرج کسات واخیست، سرم او تور ئې ووژل او د آریایي نژادو صحرانشینو توراني یرغل کوونکو خلکو مخه ئې ونیوله او د ده په وخت کي لوی پهلوانان لکه قارن د ګاوه زوی او نریمان او زال و رستم منځته راغله چي د آرینه مځکه ئې د دښمنانو له شره ساتله.

تر ده وروسته د اوستا په قول نئوتره (نوذر) د ده زوی پاچا سو، چي توراني افراسیاب تر درو جګړو وروسته هغه ونیو او وئې واژه، خو له هغه څخه د نئوتریان = نوذربان په نامه لوی کهول پاته سو، چي داستانونه ئې په اوستا کي راغلي دي.

د نوذر تر وژني وروسته (اوزوه) د توماسپه زوی (زو = زاب = د توهماسي زوی = تهماسپ) د فريدون له اولادې څخه تر پنځو کالو حکومت وکی چي هوښيار او عادل سړی وو (د دې نامه ريښه په [زابل او ږوب] کي ستـه) ده د پهلوانانو په مرسته د تورانيانو سره جنگونه وکړه، څو په پای کي ئې د آمو سيند تر خپل منځ وېش (سرحد) وټاکه.

د زاب تر مړيني وروسته د هغه زوی گرشاسپه Kershaspa (يعني د ډنگر آس خاوند) پر تخت کښېنوست، چي لسم پېشدادي پاچا وو او نه کاله ئې حکومت وکی او د ده تر مړيني وروسته افراسياب د توراني پشنگ په فرمان د هغه پر هيواد يرغل وکی او د کرشاسپه د داستان د ختمه سره د پېشداديانو داستاني تاريخ هم پای ته ورسېد.

خو دلته بايد وويل سي چي دا کرشاسپه د زاب زوی له اوستايي نامتو پهلوان کرشاسپه نريمان څخه جلا دئ. ځکه چي کرشاسپه نريمان د ثريته (ثريت = اثرط) زوی د سيستاني سام له کهول څخه وو چي د فريدون د پاچهۍ په پای او د منوچهر د کار په شروع کي زوړ او بوډا وو، او هم اصلاً يو له پهلوانانو څخه دئ، نه له پېشدادي شاهانو څخه.

## د کاوي = کيان کهول:

(کوي) يا (کاوي) په ويدي ژبه او هم اوستا کي د (پوه – پاچا – امير) په معنا دئ چي د اوستا له مخي (کوي) د پهلوي (کي) د بلخ د اوسني افغانستان د شاوخوا د پخوانيو پاچهانو د لقب سره يو ځای وو، خو د دې هيواد لمر لوېديځي خوا ته نه استعمالېده.

د کوي = کي کلمه د بلخ د هغو پاچهانو د نومو په سر کي وينو، چي د پېشداديانو تر کهول وروسته پاچهۍ ته رسېدلي دي او د دې مځکي شاهي پرتم (شاهي فر) د کوئنم خورنو Kavaenem-xvreno په نامه په دوی اړه درلودلې ده.

په دري ژبه کي ئې (کي) په (کيان) جمعه کړی دئ او دا کهول ئې په شاهنامه او نورو کتابو کي (کيان = کيانيان او کياني) ياد کړی دئ.

د اوستا له مخي د دې کهول لومړی پاچا کواته Kavata نومېد او ده ته ئې کوی کواته (کی قباد) وايه، چي د سيستاني پهلوان رستم د پلار په غوښتنه د البرز په غره

کي (د بلخ جنوب ته) پر تخت کښېنوست او دی د خلکو د هوسایۍ، آرامۍ او نېکمرغۍ سبب او عادل پاچا وو او پنځلس کاله ئې پاچهي وکړه او فردوسي دی د فریدون له توکم څخه ګڼلی دئ.

تر کیقباد وروسته ئې زوی (کوي Kavi-usan اوسن) [کیکاوس] د بخدي پر تخت کښېنوست، چي د (اوسن) معنا هیله یا خوښي ده.

ده د غیر آریایي پردیو عناصرو سره چي د حماسي روایاتو له مخي د اوسني ایران په شمال کي د مازندران په ځنګلو کي اوسېدل جنګونه وکړه او پر هغو ئې برید وموند. په اوستا کي هغو خلکو ته (دیبان) ویل سوي دي.

اوستا وایي چي غښتلي او زورور کوی اوسن (کیکاوس) د ارزیفیه Erexifya د غره پر سر د اناهیتا (د اوبو د ربة النوع) له پاره سل اسان او زر غوایي او لس زره پسونه د دې له پاره خیرات کړه چي د پاچهانو ستر پاچا سي.

څنګه چي دا غر د پوهانو د څېړني له مخي د خراسان د لمر ختو شمالي خوا ته په بلخ کي وو او کیکاوس پر هغه اووه هسکي ماڼۍ وداني کړي وې، ځکه نو د ده داستان هم سر تر پایه د افغانستان په تاریخ او خاوره پوري اړه لري.

دی له سترو پاچهانو څخه سو، چي (د هغه وخت د کشف سوي دنیا) پر اوو هیوادو ئې حکومت کاوه او د اوشنر Oshnar په نامه ئې یو پوه وزیر درلود، چي په اوستا کي ئې د پورو جیره Pura-jira په صفت یاد کړی دئ یعني ډېر پوه او هوښیار (په پښتو کي: پوره + ځیر = کامل دقیق).

په اوستا کي کیکاوس ته ځیني خطاوي هم نسبت سوي دي، لکه د همدې پوره وزیر وژل او د مځکي د ساتندوی غوایي له منځه وړل او آسمان ته د ختو هڅه او په همدې سبب کیاني پرتم (کیاني فر) له ده څخه وګرزېد او توراني افراسیاب ورباندي غالب سو او د ده هیواد ئې وران کی، څو چي روت ستخمک Rot-staxmak (رستم) سیستاني پهلوان لښکر جوړ کی او افراسیاب ئې وشاړه.

د بلخ له کیاني پاچهانو څخه یو بل (کوی سیاورشن) Syavarshan (سیاه نر) وو، چي تر کیکاوس وروسته پاچا سو، او د بلخ واکمن پاچا وو او د آمو له ها خوا (توران) د آریایي یرغلګرو قبیلو سره په یوه جګړه کي وژلی سوی دئ او دی د کیکاوس زوی بولي، چي په پهلوي او دري ادبیاتو کي د سیاوخش = سیاوش په نامه شهرت لري.

سیاوش ایرینه ویجه ته نژدې یوه لویه کلا د (کنگ دژ) = د اوستا Kangha په نامه ودانه کړه چې د جمکرد د واره په څېر دوهم آریایي مرکز وو او ده په توران کې د توراني پاچا افراسیاب لور چې فرنگیس نومېدله ماندینه کړه او له هغې څخه هئوسره وه Hausravah (= کیخسرو) وزېږېد، چې تر پلار وروسته ئې د پاچهۍ تخت ونیو او د پلار د خون اخیستلو په غرض د تورانیانو سره او د خپل ننگیالي سپه سالار هئومه Haoma په ملگرتیا ئې افراسیاب او د هغه وروس کیریسه وزده (چې په شاهنامه کې: کرسیوز راغلی) په ځنیځرو کې وپېچل او وئې وژل.

اوستا وایي: کله چې کیاني پرتم (کیاني فر) په خسرو پورې اړه وموندله نو د هغه په مرسته ئې لوی کارونه وکړه، زور او قوت، مینه، ښکلا، برم او پرتم د ده په برخه وو او د کیاني شاهنشاهۍ هیوادونه ئې بیرته سره ومښلول چې په همدې سبب په اوستا کې د خشثري هن کریمو Xshathrai-Hankeremo یعني د هیوادو سره مښلوونکي او یو کوونکي او د شاهنشاهۍ د منځته راوستونکي په صفت یاد سوی دئ.

تر کیخسرو وروسته په بخدي کې یوه ډله پاچهان منځته راغلي دي، چې د نومو په پای کې ئې د (اسپه) کلمه راځي او دا ښځي باختري نسبت دئ. ځکه چې د بلخ ورشو د آس لرغونی روزنتون وو او د دې مځکي آریایي نژادو سپرو په جنگو، په یرغلو او د دښمنانو په مخ نیوي کې تل له دې اهلي ځاروي څخه کار اخیست او د دې سیمي د خلکو په منځ کې له پخوانیو زمانو څخه بیا تر اوسه د آسانو د کلو روزنه او د سپرلو ورزش رواج لري او حتی ځینو پوهو مؤرخانو لکه دینکر په خپل پخواني تاریخ کې د بلخ د پاچهانو یو کهول د (اسپه پاچهانو) په نامه یاد کړی دئ، خو په حقیقت کې دا پاچهان د همهغو کیانیانو پایځوړ دي.

له همدې ډلي پاچهانو څخه هغه څوک چې تر کیخسرو وروسته د بلخ د پاچهۍ پر تخت کښېنستلی په اوستا کې ائوروث اسپه Aurvat-Aspa (= کی لهراسپ) یاد سوی دئ چې د گړندي آس په معنا دئ او نسبت ئې کیقباد او منوچهر ته رسېږي او د فردوسي په قول د مهر د میاشتي د مهر په ورځ (د مېزان په ۱٦) ئې د پاچهۍ خول پر سر کښېښود او په بلخ کې ئې د (آذر برزین) په نامه یوه دوهه (آتشکده) جوړه کړه او د ساساني وختو په نورو روایتو کې وایي چې: ده د خپل یو سپه سالار بوخت نرسیه (معرب ئې: بخت النصر) په ملگرتیا پر اورشلیم ویرغل او هغه ئې وران کی او جهودان ئې تیت کړه او د

ژوند په پای کي ئې پاچهي خپل زوی ویشتاسپه Vishtaspa (=گشتاسپ[1]) ته پرېښووله او پخپله د بلخ په نوبهار ننووت، ورېښتان ئې پرېښوول او د خدای په ستاینه بوخت سو او د زردشت دین ئې ومانه، خو په پای کي د توراني ارجاسپ په یوه حمله کي ووژل سو، ویشتاسپه (گشتاسپ) لوړ همته پاچا د گړندیو آسانو خاوند، د زردشت مؤید او پیرو او مزدا پرست او کیاني فر لرونکی راست کاره او پاک تومنه سړی وو او پر خپلو توراني دښمنانو ئې بری وموند او هم ئې وزیر جاماسپه د اوستا له مخي شریف، بډای او هیوادوال او پوه بریالی او د زردشت د لور مېړه وو، چي د زردشتي آیین تر منلو وروسته ئې د هغه په خپرولو کي زیار ایستلی وو او د ده زوی سپینتوداته Spento-Data (= اسفندیار) چي تخمه Taxma (= تهم = زړه ور) ئې صفت وو او د ویشتاسپه ورور چي زئیري وئیري Zairi-Vairi (زریر) نومېد، هم هغه کسان دي چي د زردشتي آیین په خپرولو کي ئې زیار ایستلی دئ او د اوستا په هغه نسخه کي چي په اتمه میلادي پېړۍ کي په پهلوي ژبه لیکلې سوې او په سمرقند کي لاس ته راغلې ده داسي وایي چي: زردشت د گشتاسپ په امر د خپل کتاب دوولس زره نسخې د سرو زرو پر ځپرکو ولیکلې او د (ورهران) په آتشکده کي ئې کښېښوولې، چي دا معبد اسفندیار د بلخ بامیک په نوازک کي ودان کړی وو او همدارنگه په آذر فربغ (د موبدانو آتشکده) او آذربرزین مهر (د کرونده گرو آتشکده) هم گشتاسپه ته منسوبي دي، چي دا دوهمه آتشکده ئې د ده په وخت کي له خوارزم څخه د کابلستان د روشن Roshn غره ته راوړه او د عربو تر فتوحاتو (۱۷۱هـ) پوري لا هم پاته وه.

د زریر زوی بستوئیري Bastawairi د بست ښار ودان کی او هلته ئې ډېر خیراتونه وکړه او هم ئې د سلطنت مخالفان چي هلته وه له منځه یووړه.

تر اسفندیار وروسته له دې کهول څخه د ځینو نورو پاچهانو نومونه اخیسته سوي دي لکه (وهومن سپینداتان) [بهمن اسفندیاري] او لور ئې (همای) او (داراب) د همای زوی او دا پاچهان د سیستان او هلمند په ناوه کي داستانونه لري او ځینو مؤرخانو دا پاچهان د هخامنشي پاچهانو سره گډ کړي دي.

## اوستایي پهلوانان:

د اوستایي فرهنگ په دوره کي سربېره پر دغو شاهي کورنیو چي دمخه یادي

---

[1] گشتاسپ د تورېدلي آس په معنا دئ.

سوې د ځینو لویو پهلوانانو کهولونه هم په دې تاریخي زمانه کي راغلي دي، چې د دوی په نامه آریایي حماسي روایتو کي خاص کتابونه ول او دا کهولونه زیاتره په اوسني افغانستان او یا د خراسان په خاوره اړه لري، خو د زمانو او نسلو په تېرېدو د دوی تاریخي پېښو داستاني بڼه موندلې ده او په دې پهلوانانو پوري ئې فوق العاده کارونه تړلي دي، چې د دې افسانوي روایتو له منځه یوه برخه تاریخي واقعیتونه لکه د پاچهانو د کورنیو تاریخي پېښي لاس ته راتلای سي.

ډېر نامتو او ستر پهلوانان د سیستان له خاوري ځخه پورته سوي دي چې د اوستا د روایتو او پهلوي د نورو کتابو له مخي د دوی نژاد دبخدي همهغه (یمه = جم = جمشید) پاچا ته رسېده او ده د زابلستان د پاچا کورنگ لور ماندینه کړه او له همدې نژاد ځخه سام نریمان پیدا سو، چې زوی ئې د وربښتو د سپین والي په سبب د (زال زر) په نامه یاد سو او د پلار له خوا د سیستان پاچهي ورکړه سوه او دی د کابل د مهراب شاه پر لور رودابه (چې د ضحاک له نسله وه) مین سو او هغه ئې ماندینه کړه او له هغې ځخه رستم وزېږېد، چې د خپل وخت تر ټولو پهلوانانو غښتلی او زورور وو او کک کوهزاد (غرزی = غلجی) ئې چې له زال ځخه ئې خراج اخیست وواژه خو په پای کي د بهمن په وختو کي د خپل ورور شغاد په دروه او چم ځا ته ولوېد او د خپل آس رخش سره په همغه ځا کي مړ سو.

زال سربېره پر رستم او شغاد یو بل زوی د (زواره) په نامه هم درلود، چې لوی پهلوان وو او د هغه دوه زامن فرهاد او تخار (تخوار) مشهور دي.

له رستم ځخه فرامرز او سهراب او جهانگیر او گشسپ بانو او زربانو پیدا سول او له سهراب ځخه چې د پلار د لاسه وژل سوی وو د (برزو) په نامه یو زوی پاته سو، تر برزو وروسته شهریار وزېږېد چې د دې پهلوانانو په نامه بېل بېل کتابونه سته، لکه فرامرزنامه، برزونامه، شهریارنامه، بانو گشسپ نامه، جهانگیر نامه او سام نامه. همدا راز د فردوسي په شهنامه کي هم د دوی داستانونه راغلي دي.

د رستم زال او تخوار داستان په افغانستان کي تر اسلام دمخه له پخوا زمانو ځخه شهرت درلود او تر اوسه یو ځو ځایونه د تخت رستم په نامه (په سمنگان کي) د رستم غونډۍ، د زال کلا (تخارستان)، د کک کوهزاد کلا د رستم آخور (په فراه کي) سته چې ځیني دا نومونه تر اسلامي فتوحاتو وروسته د عربو په تاریخ کي هم راغلي دي او حتی

د نورو ملتو په تاریخو کې لکه د موسی خورني ارمني په تاریخ کې (له ۵ تر ۸ م پېړۍ پورې) هم د رستم نوم راوړه سوی دئ.

د دې دورې بل کهول چې په زړه ورتوب او پهلواني ئې شهرت درلود د (کاوه) کهول دئ چې د مخه ئې یادونه سوې ده او د ضحاک د ظلمو او ستمو په مقابل کې ئې د خلکو یو تولنی غورځنگ منځته راوستلی وو او له هغه څخه یو زوی د (قارن گاوگان) په نامه پاته سو چې د فریدون او ایرج او موچر په وختو کې ئې د افراسیاب سره د کیقباد په جنگو کې ډېرې مړانې ښکاره کړې دي او دا کهول د اشکانیانو او ساسانیانو تر عصره پورې د (کارن) په نامه پاته وو او حتی تر دریمې هجري پېړۍ پورې ئې خپل برم او قوت ساتلی وو.

د پهلوانانو بل کهول د (نوذریانو) کهول دئ چې نوذریان د منوچهر د زوی (نوتر) له اولادې څخه ول. دې کهول ته په اوستا کې نئوتئیریانه Naotairyana ویل سوي دي او توسه (طوس) د نوتر زوی چې نوم ئې د خراسان د (طون) د ښار په نامه کې پاته دئ د کیاني وخت له لویو پهلوانانو څخه وو چې د وایسه که Vaesaka پر زامنو ئې بری وموند. (ویسه) د توراني افراسیاب اکا وو.

د نوتر بل زوی چې په اوستا کې د ویسته یؤور Vistauru (او په پهلوي کې ویستخم = په دري کې گستهم) یاد سوی دئ د مزد یسنا آیین ډېر دښمنان ئې وژلي دي او زراسپ هم د طوس د زوی له دې کهاله څخه گڼل سوی دئ.

همدارنگه د کاوس زوی فریبرز (په پهلوي کې برزي فره) او د لهراسپ زوی زریر او د زریر زوی بستور (په اوستا کې: بسته وئیره) او د گشتاسپ زوی اسفندیار او د وزیر جاماسپ زوی گرامي (په پهلوي کې: گرامیک کرت) د دې دورې هغه شهزادگان او نجیب زادگان دي چې په داستانو کې د پهلوانانو په ډول یاد سوي دي او د روایتي افسانو له ترڅه د دوی تاریخي وجود پېژندل کېدای سي، او هر یو د بخدي او خراسان په لرغونو تاریخي داستانو کې نوم او نښان لري.

## افغانستان او اوستایي سیمې:

د اوستا په دریم کتاب وندیداد کې د هغه وخت د معلومې مځکې شپاړس سیمې یادې سوې چې ځینې ئې په اوسني افغانستان یا پخواني خراسان کې دي. همدا شان د

اوستا په پشتو کي د هغو غرو او سیندو نومونه راغلي چي ټول په دې هیواد کي دي، مثلاً :

۱. ایرینه ویجو (د مځکي هغه سیمه چي په پامیر یا آمو ته نژدې په خوارزم کي).
۲. سغده (د آمو په شمال کي سغد)
۳. مورو (د مرغاب مجرا مرو)
۴. بخدي (بلخ)
۵. نیسایا (په شمالي خراسان کي نسا)
۶. هرای وه (هرات)
۷. وایکرته (کابل)
۸. اوروه (روه –پختیا ولایت او د سلیمان غر)
۹. هري ویتي (ارنداو او ده هراوت)
۱۰. ای تومنه (هلمند)
۱۱. ره گه (د بدخشان راغ = د پښتو : رغه)
۱۲. هپته هندو (سند)

چي دا ټولي سیمي په افغانستان او یا د افغانستان په گاونډ کي پرتې دي.

همدارنگه په اوستا کي سیامگه (سیاه کوه = تورغر) یو پاري سینه (د گوربت د عقاب) تر الوتني هسک غر – هندوکش سپیته گونه گیري (سپین غر) او نور غرونه او سندونه یاد سوي دي چي د دې هیواد سره د اوستا کتاب د ترتیبوونکو آشنایي ثرگندوي.

## ایزدان او ارباب انواع :

سره له دې چي زردشت یو نوی سم سوی آیین منځته راوړ او لکه چي دمخه وویل سوه د شریرو قوتو د مقابل له پاره ئې د خیر او ښېگڼي شپږ ملکي وټاکلې، خو بیا هم د هغو ارباب انواعو اغېزه چي د ویدي د وخت لرغونیو آریائیانو درلوده ښېخي له منځه نه ولاړه، یوازي د ویدي د لوی رب النوع (وارونه) پر ځای (اهوره مزده) ودرېد چي معنا ئې پوه بادار (سرور) وو او دا نوم زردشت د (یوه خدای) له پاره وټاکه او هغه آریایي

خدايان (ديوان) چي تر هغه وخته ئې لا په هندوستان کي د خدايۍ مقام درلود د زردشت په آيين کي متروک او پرېښوول سوه او په همدې سبب د (ديو) کلمه چي تر زردشت دمخه د (خداى) په معنا وه د (بلا – غول – او گمراه کوونکي) معنى پيدا کړه او له هغه وخته خداى پرست ته (مزديسنا) او مشرک او د باطل دين پيرو ته (ديويسنا) وويل سوه، خو سره له هغه هم د (ديو) کلمې په ټولو آريايي اولسو کي (بې له زردشتيانو) خپله اصلي معنا ساتلې ده او د هندوانو په نزد تر اوسه هم (ديوه) د خداى په معنا ده.

(زيوس) د يوناني لوى پروردگار نوم وو، چي لاتيني (ډيوس) او فرانسوي (ډيو) او د پښتو (ډېوه) (د څراغ او روڼا په معنا) له دې ريښې څخه دي.

د ويدي دورې په آريائيانو کي (کنى) د اور رب النوع او خدايي ځرى (قاصد) وو، چي په اوستا کي (اترو) او (اترش) او په پهلوي (اتور = اتر) او په دري کي (اذر = آتش) او په پښتو کي (اور) دئ او په زردشتي آيين کي يو عنصري ايزد او د اهوره مزده زوى گڼل کېږي، چي لمبه ئې د خدايي روڼا ښکارندويه (نماينده) گڼلې کېده او د پرستني په ځايو کي ئې د محراب پر ځاى ځلانده اورغالى (آتش دانونه) جوړ کړي ول.

اوستايي بله ربة النوع اوبه دي چي په ويدي دوره کي هم (اپام نپات) (د اوبو زوى) ياد سوى دئ او څنگه چي د بخدي آريايي نژادانو د خپل هيواد په زړه کي د لوى سيند څخه ډېري گټې اخيستي وې، نو ځکه د اوبو له پاره د (اناهيتا) په نامه ربة النوع پېژندله او پخپله دې سيند ته ئې اردوى – سوره Ardvi-Sura ويل، چي د اوستا آبان يشت د همدې ربة النوع ستاينه ده او څېړونکي دا ربة النوع د مور – اديتا په ربة النوع پوري تړي، چي د هغې مجسمې مو تر تاريخ په دمخه آثارو کي وليدلې او په راوروستو زمانو کي د دې نامه وروستۍ برخه اناهيته = ناهيد په مجرد صورت پاته سوى چي د اوستا په آبان يشت کي د يوې ښکلي نجلۍ په بڼه راغلې ده، چي طلايي خول او زرين کميس لري او په باختر نومي کتاب کي د راولنسن په قول د باختر په ښار کي د اناهيتا مشهور معبد وو، چي د اوستا په پنځم يشت کي دا ښکلې ښځنۍ ربة النوع د نارينه وو د نطفې او د ښځو د رحمو د تصفيه کوونکو او د زېږېدني د روزونکي او مندو ته د ښو شيدو د بخښونکي په صفت ستايلې سوې ده (۱۰ عکس دې وکتل سي).



په کندهار او کوټه کي د قبل التاریخ د رب النوع مختلفي مجسمې

۱۰ –لمبر عکس



د اوبو او حاصلاتو رب النوع

په ګریکو باختري صنعت پوري مربوط (دوهمه پیړی ق م)

۱۰ –لمبر عکس

د اوستا يو بل عنصر ايزد (واته) ملقب په غښتلي او ګړندي وو او دا کلمه په دري او پښتو کي (باد) او په ويدي دوره کي (وايو) Vayu وه، چي د دښمن د سپايانو سره د جګړې په اړودوړ کي او يا پر تهذيب او دين باندي د پرديو خوني ستمګرانو او يرغلګرو د تېري په وخت کي او يا د يوه سړي د ګرفتارۍ په وخت کي چي په دروه او خيانت د دښمن په لاس کښېوتی له دې عنصري رب النوع څخه مرسته غوښتله کېده، او دی غښتلی او جګړن او ټينګ پر ځای ولاړ، د ارت ټټر خاوند او د سم او رسا نظر څښتن وو او دا رب النوع د کنيشکا تر عصره (د ۱۲۵م په شاوخوا کي) د دغه کوشاني پاچا پر سکو د ځغستا په حال کي د يوه ږيرور سړي په بڼه کيندل کېده، چي هغه ئې په کوشاني دري ژبه (واد) بللی دئ. الماني څېړونکی ګيګر يوه ډله اوستايي ارباب انواع د ستور و ديزتو په نامه ياد کړي دي چي يو له هغو څخه ميثره Mithra د نور او روڼا ښکارندوی وو او د (وارونه) رب النوع د سترګي حيثيت ئې درلود او په اتفاق ئې د نړۍ نظام او د راستۍ قانون ساته او د دومزيل په قول: "دا مثيره = مهر = مير [په پخوانۍ دري او پښتو کي] د تړون (پيمان) خدای او د څړ د ارتو ورشوګانو خاوند او د رشتينو ساتندوی بلل سوی دئ، چي پر شريرانو او تړون ماتوونکو بې رحمه او پر ستايونکو مهربان دئ. د څارويو او د کرهڼي د محصول او د باران او برکت زياتوالی له ده دئ".

لمر = مهر چي روڼا زېږوي. د اهريمنانو سخت رقيب او د آسمان ډېوه او د اهوره مزده سترګه ده، چي د اوستا له مخي: "اهوره مزده د هره بزرتي (البرز يا پامير) د غره پر څوکه هغه ته ټاټوبی جوړ کړی، چي هره ورځ پر ځلانده او روڼه بګۍ چي څلور سپين جنتي آسان ئې کشوي، له مشرقه راخېژي او د مهر د رب النوع دا اوستايي تصوير، د سپينو آسانو او بګۍ سره کټ مټ د باميان د پنځه درش متري بت د طاق پر چت انځور سوی او تر اوسه ستنه او د دې لرغونو آريايي عقيدو اغېزې په را وروسته زمانو کي د لمر لوېديځي آسيا تر پايه خپرې سوې او د لمر (مهر) او ناهيد او نورو پرستنه د اوستايي ثقافت له مرکز د بخدي له سيمو څخه هري خوا ته خپره سوې ده.

پر مهر (هور) سربېره سپوږمۍ (ماوګه) هم د شپې ډېوه او وښو ته وده ورکوونکې ګڼله کېده، چي هغې ته ئې د څارويو د روزني په سبب ګئوچيتره Gao-Chitrs ويل.

په دې عنصري يزتو او ستورو کي د تشتريه (تير = سرطان) ستوری د باران

شیندونکی او د آسماني چینو پرانیستونکی وو، چي د چینو، ولو او سیندو اوبه ئې زیاتولې.

په اوستایي آئین کي بې له شپږو روحاني امشا سپندانو چي دمخه مو یاد کړه، د نورو مؤکلو پریښتګانو نومونه هم یاد سوي دي چي څو ئې دا دي:

ارشتات = رشن (د عدل او نیاو پرېښته)، ورتره غنه (بهرام = د بري پرېښته)، سره اوشه Sraosha (سروش = د اطاعت او فرمانبردارۍ او قانون پریښته)، اشهي وګهوی (د اخلاقي نظم او پرهېزګارۍ ساتندویه).

## ادبیات او ژبې او د هغو رابطه د افغاني ژبو سره:

په تېرو مخو کي مو د افغانستان د لرغوني مدنیت پر درو دورو (تر تاریخ دمخه، ویدي دوره، او اوستایي عصر) باندي ډېره لنډه توضیح ولیکله او ومو ویل: چي د تاریخي دورې له سره یوازي دوه لیکلي سوي آثار: (ویدا – اوستا) پاته دي.

د مقایسوي ژبپوهني له مخي د دې دواړو ژبو اثرونه په افغاني ژبو او د افغانستان په ځایو او نومو کي څرګند دي او زیاتره لرغوني کلمې اوس هم په همهغه خپلو تاریخي معناوو مستعملي او ژوندۍ دي او په تېره بیا پښتو ژبي او د افغانستان د لمر ختیځ شمال د غرو ځینو لهجو داسي تاریخي مواد زیاتره ساتلي دي، د مثال په توګه فقط د څو کلمو شرحه راوړو:

**ارین**: د (آر) له ریښې څخه چي د اصیل او نجیب یا کرونده ګر په معناوو په پښتو ادب کي (آره) د اصل او بنسټ یا کرهڼي په معنا راغلې، چي په پای کي د نسبتي (ن) په مښلولو (آرین) ځني جوړ سوی او د اصیل یا شریف کرونده ګر معنا ئې موندلې ده.

**ارینه ویجه**: د هندوکش د شمال سیمو ته تر هجرت دمخه د آرین لرغونی ټاټوبی چي معنا ئې د شریفانو ټاټوبی او مځکه ده او د اویجه کلمه د کندهار په پښتو کي تر اوسه د مځکي او ټاټوبي په معنا مستعمله ده.

**اریه ورشه**: هندي مهاجرو آریائیانو خپلي پخوانۍ مځکي ته ارته ورشه (ورته) وویل او په کندهار کي تر اوسه د څړ ارتي مځکي ته (ورشو) وايي، چي د لرغونو آریائیانو د څاروي پالني او کوچي توب د ژوند سره بیخي زیاته اړه لري.

**واته**: په اوستا کي د باد رب النوع وو، چي شرحه ئې دمخه تېره سوه، دا توري په يغنوبي لهجه کي (وات) او په پښتو او دري کي (باد = واد) دئ. حال دا چي د اېران په نائيني او سيوندي لهجه کي خپل ويدي شکل ته نژدې (وا = باد) او په سمناني کي: (ويه) او په زازا کي (وايه) دئ.

**ريشي**: ويدي کلمه د ستايونکي او ژبور او وياند په معنا ده. په پښتو کي د (وراشه)، (خبر) او (رشه) اخلاق ريښه لري.

**سيندهو**: ويدي کلمه چي په پښتو کي تر اوسه د سيند کلمه سته.

**سومه – هومه**: مشهور واښه چي په پښتو د (اومه) په بڼه کي سته.

**چهند او اشلوک**: د نظم په معنا، چي د پښتو په پخواني ادب کي کټ مټ پخپله ويدي معنا راغلی دئ.

**برهمن**: په پښتو کي برمن (د برم = جلال خاوند).

**کشتري**: په پښتو کي (کښ + توری) د شمشېر باز په معنا چي په خيرالبيان کي (تور+کښ) راغلی دئ.

**ويسيه**: په پښتو کي (ويسا) د اعتماد په معنا راغلی.

**شودره**: په پښتو کي (سوډر) د بې تهذيب او وحشي، ناپوه په معنا دئ.

او داسي ډېري ويدي کلمې په پښتو کي مستعملي او ژوندۍ لرو او همدا رنګه تاسي د اوستايي دورې په مباحثو کي ولوستل، چي دا ژبه د پښتو سره ټينګه او غښتلې رابطه لري.

نو ځکه موږ پښتو ژبه د سنسکريت او اوستا خور بولو، چي په ږغو او قواعدو او تورو کي د دواړو ژبو سره ګډه ده، مګر پخوانۍ دري ژبه ښايي چي پخپله د افغانستان په خاوره کي له اوستا څخه راپيدا سوې وي چي موږ به دا موضوع په راتلونکو بحثو کي په تفصيل سره وڅېړو.

په ويدي سرودو کي چي د هغه عصر يوازني لرغوني ادبي اثر دئ، د هغه عصر د پوهو ريشيانو او ژبورو خبري او سرودونه رانقل سوي، چي په هغو کي يوه ډله آريايي ژبوري او شاعراني ښځې هم شاملي دي، مثلاً د ريګ ويد د لومړي کتاب په ۱۱۷ سرود او د شپږم کتاب په ۳۹ – ۴۰ سرود کي د شهزادو ګهو چه Ghocha سرودونه رانقل سوي دي او هم د لوپامودره Lopamudra او ماماته Mamata او اپاله او انداني او ساسي او

ویشو وره سرودونه په ریگ وید کي لیده کېږي، چي د هغه وخت شاعراني وې او موږ دلته د هغه وخت د تخیل او بیان او خبرو د طرز د ثرگندولو له پاره د ریگ وید د لومړي کتاب ۱۱۷ سرود د گریفت چي شهزادو گهو چه ویلی دئ (رانقلوو)[1]:

"اې د سهار ستورو! ستاسي بگۍ چي تر خیال گړندۍ ده او زړه ور گړندي آسان ئې کشوي د خلکو خوا ته راځغلي، چي د پاکانو ټاټوبی ولټوي.

چیري ځي؟ اې زړه ورو پهلوانانو! دلته زموږ ټاټوبي ته راسئ! تاسي اې د عجیبو کارنامو خاوندانو! ونده نه مو راویوست چي د بري او برم ثبنتن لکه خالص زر چي ښخ وي لکه هغه څوک چي د تباهۍ او فنا په غېږ کي پروت وي، لکه هغه لمر چي په تور تم کي پټ وي.

اې د سهار ستورو! تاسي د خپلو زیاتو قوتو په مرسته هغه لرغوني میره شیه وانه مو د زلمیتوب غېږي ته وسپاره! تاسي دي ناستیانو! خپلي بگۍ وگمارئ چي د لمر لور د ټول هغه برم سره چي لږئې پورته کي. تاسی اې هغو کسانو چي تل زلمیان یاست! د خپل لرغوني دود سره سم مو (تورگا) دریاد کئ، او په خپلو غنم رنگو آسانو چي په گړندیو وزرو الوزي (بهوجیو) مو د سیند د څپو له منځه راویوست.

اې د عجبو کارنامو خاوندانو! مځکه مو یوې کړه او اوربشي مو وکرلې، انسان ته مو د غذا شیره ورکړه او دښمنان مو په خپله برغو (کرنا) له منځه یوووړه، او لیري مو وغور ځول آریه ته مو زیاته رڼا او ځلا ورکړه چي د آسمان پر څنډو خپره سوه.

اې سترو! زه ستاسي څخه مرسته غواړم، اې د سهار ستورو! زما نیازو ته د مهربانۍ په سترگو وگورئ اې ناستیه یانو! ما ته له اولاده سره زیاته بډایي او ثروت راکئ.

خلکو ته ستاسي د زړه ورتوب لویي کارنامې چي په لرغونو زمانو کي مو کړي دي ښکاره دي. هیله کوم اې د سبک او قوت خاوندانو! زما دعاوي به هغه وخت تاسي ته وویلي سي، چي زړه ور او غښتلي زامن مي شاوخوا ته ولاړ وي.

زه سو ما ته خطاب کوم، چي تر ټولو ما ته نژدې دئ، د هغه ځای زموږ په اروا کي دئ. له هغه څخه غواړم چي زما ټول گناهونه وبخښي".

---

[1] دا سرود گران فاضل عبدالرحمن پژواک په ۱۳۲۲ کال له انگریزي ترجمه کړی او د آریاناد مجلې په ٦ گڼه کي خپور سوی دئ.

***

د اور د رب النوع اګني په ستاينه کي يو سرود چي مدوچندس د وشوه متره زوى د ګايتري په بحر کي په ۹ بيتو کي ويلى دئ سته، چي څو بيته ئې دا دي:

"زه اګني چي روحاني ښکارندوى دئ ستايم. دى د نمانځني په وخت کي روڼ دئ او د نمانځني په بدله (پاداش) کي بډايي بخښي.

اګني د لرغونو او اوسنيو پوهانو د ستايني وړ دئ، ځکه چي ده ديوان ځاى ته راوستل.

اې اګني! يوازي هغه ستاينه چي په هغو کي مانع پيښ نه سي او ته ئې هم له هري خوا خوندي وساتې، داسي ستاينه نو خداى مني.

اې اګني! په آسانه رسېږه لکه پلار زوى ته، او زموږ د ښېګڼي له پاره زموږ سره اوسه".

***

اوس د ويدي سرود په څنګ کي د اوستا څو سروده چي د زردشت له خبرو څخه دي راوړو، په ۳۰ يسنا کي وايي:

"سترو خبرو ته غوږ ونيسئ، په روڼه انديښنه ورته وګورئ، د (درواغ او رښتيا) د دوو آئينو تر منځ توپير وکئ، تر هغه دمخه چي د آخرت ورځ راورسېږي هر څوک دي پخپله خپل دين غوره کي، و دي سي چي په پاى کي به مراد ته ورسېږو. هغه دوې همزولي توکي چي په شروع کي د تصور په عالم کي ځرګندي سوي يوه ئې په انديښنه – ويلو او کولو کي د نېکۍ توګه وه او بله ئې د بدۍ او په دې دوو کي بايد پوه سړى نېکي غوره کړي نه بدي. هغه وخت چي همدا دوې توکي سره يو ځاى سوې نو ژوند او مړينه ځني پيدا سوه، همدا سبب دئ چي په پاى کي د درواغجنانو ډېر ځاى (دوږخ) او د رشتينانو ډېر ښه ځاى (جنت) په برخه کېږي".

په ۵۳ يسنا کي وايي: "اې مېړه کوونکو نجونو! او اې زومانو! دا دئ درښيم او خبروم مو نصيحت مي په زړه ومنئ.

د سپېڅلتوب او پاکۍ په ژوندون پسي د غيرت ملا وتړئ او ورپسې زيار وباسئ، تاسي هر يو بايد په ښه کار کي يو تر بل دمخه سئ او په همدې توګه خپل ژوندون خوښ او خوشحاله تېر کئ".

# د پر دیو هخامنشیانو سلطه

هغه څه چي مو تر اوسه ولیکل زموږ د هیواد د تاریخ ټولي هغه پېښي دي چي د زمانو په تېرېدو د افسانو سره ګډي سوي، خو د دې خاوري د فرهنګ یوه برخه ده او په هغو زمانو اړه لري چي تر مځکي لاندي لټوني لا د هغو په تحقق بریالی سوي نه دي.

مګر په دیني کتابو کي لکه ویدا و اوستا او نوري خدای نامې او په ملي روایتو کي پرله پسې رانقل سوي دي.

د آریایي نژادو ملتو په منځ کي چي له باختري لمر ختو او لمر لوېدو خواوو ته هجرت کړی دئ او د آریانه (لرغوني افغانستان) تر خاوري دباندي ئې مدنیتونه او حکومتونه جوړ کړي دي، د دوی یوه برخه سره د تاریخ او سیاست له مخي لري، په دې معنا چي د دوی سیاسي او فرهنګي نفوذ دونه غوړېدلی وو چي اغېزه ئې د افغانستان تر خاوري پورې رارسېدلې وه.

د مثال په توګه د ا یلام آریایي نژاده خلک چي مدنیت ئې تر تاریخ دمخه په لمر لوېدیځي آسیا اړه لري او په پای کي د سامي نژاد سره ګډ سوي دي زموږ په لرغوني فرهنګ کي مستقیمه اغېزه نه لري او هم میتاني ټبرونو چي د مدنیت آثار ئې د کوچنۍ آسیا په بوغازکوی د هیتي (پتریوم) په پایتخت کي موندل سوي او د (۱۴۰۰ ق م) په غربي آریائیانو اړه لري، دوی د افغانستان پر اوسېدونکو آریائیانو مستقیماً اغېزه نه درلودله خو په اوومه ق م پېړۍ کي د (ماد) قوم چي آریائي نژاده او آریایي ژبی ټبر وو او په آسوري کتیبو کي د دوی هیواد د (امادای) په نامه یاد سوی د اوسني ایران د خاوري په شمال کي پیدا سو چي د دوی شهنشاهي مرکز هګمتان (د هیرودوت اګاتان) همدان وو او د هیرودوت له (۷۰۱ ق م) کال څخه تر (۵۵۰ ق م) کال پوري څلورو مادي پاچهانو حکومت کړی دئ.

۱/ دیوکس Deices = دهیاکو = د هکان د فرورتنس زوی (۷۰۸ – ٦۵۵ق م) د ۵ کالو په شاوخوا کي.

۲/ فره اورتس د دیوکس زوی (۶۵۵ – ۶۳۳ ق م) ۲۲ کاله (د داریوش د کتیبې: فرورتیش).

۳/ هووخ شتر (= کواکزار = سیاکزار یونانی) (۶۳۳ – ۵۸۵ق م) ۴۸ کاله.

۴/ آستیاگس Asteyages (ازدهاک) د هووختشر زوی (۵۸۵ – ۵۵۰ق م) چې تر پنځه دېرش کاله پاچهي وروسته د ده په وخت کې د (ماد) دولت پای ته ورسېد او ځای ئې هخامنشیانو ونیو.

د افغانستان په تاریخ کې د مادي شاهانو دوره او د دوی مدنیت ځکه اهمیت لري چې د هیرودوت په قول فرورتیش د ماد دوهم پاچا د آرین اوسېدونکو ټولي شرقي مځکې تر باختر او جیحون تر غاړو پوري نیولي وې او له همدې سببه د دوی د تمدن آثارو، تشکیلاتو، معمارۍ، ژبې، حجارۍ، مجسمه جوړولو، مهر او رڼا پرستۍ، ځنګه چې ئې د هخامنشي د دورې پر تمدن باندې اغېزه کړې وه د آریانه په دې لمرختیځه برخه کې به ئې هم اثر پرې ایښی وي او حتی ډارمستتر د فرانس لوی عالم د پښتو ژبه هم مادي ژبې ته نژدې بولي او هیرودوت وایي چې: د ماد خلکو سپي ته (سپاکو) ویل، چې دا کلمه په اوسنۍ پښتو (سپی ده چې د تانیثي تصغیر سره ورته (سپیکو) ویل کېدای سي)، او هم یوه ډله څېړونکي پوهان وایي چې زردشت له ماد څخه باختر ته تللی وو او ځنګه چې د مغ طایفې د مادیانو روحانیون د لمر پرستۍ، مذهب په کوډو او جادوګرۍ لړلي وول زردشت وغوښته چې اصلاحات راولي، نو باختر ته ولاړ او دلته ئې بریالیتوب په برخه سو.

دا باید وویل سي چې هخامنشي پاچهانو له ماد څخه ډېر څه زده کړه او د هخامنشي دورې زیات ترتیبات مادي دورې ته ورته او د هغې دورې بشپړېده وه او چې د ماد دولت له منځه ولاړ په سیاست او ژوندون کې کم اساسي بدلون رانغی.

او حتی په ځینو مواردو کې په صراحت ویل کېدای سي چې د هخامنشي پارسیانو اقتباس د ماد له خلکو وو د مثال په توګه هیرودوت او سترابو لیکلي دي چې پارسه خلکو د کالیو شکل د (ماد) له خلکو څخه اخستی دئ.

د کراستي خولۍ او لستوڼي لرونکې چوخه او تېز ارغواني او تک تور او سره کالي او تنګ لستوڼي د ځرمني کوټ (تنزیب) تر زنګنو پوري او د ځرمني لوړ پرتوګ او تنې لرونکي کوښي چې جګې څوکې ئې درلودلې او د کراستي ګردۍ خولۍ او تر

زنګانه پوري کميس او ملا وستونی (کمربند) او خنجر له تېکي سره او د لېندۍ پوښ، خول او زيره او راز راز وسلې هغه شيان دي چي د (ماد) له خلکو څخه اقتباس سوي دي.

په هر صورت د (ماد) دولت د (هووخشتر) په وخت کي خپل اوج ته رسېدلی وو او د عربي دولتو سره ئې روابط درلوده او د ليدي د پاچا (اليات) لور د (ماد) ملکه وه او همدا رنګه د اژدهاک خور د بابل ملکه ګڼله کېده.

د (ماد) په عصر کي د آريايي خلکو يو ټبر چي (پارسوا) نومېده له شمال څخه جنوب ته ولاړ او په هغه مځکه کي مېشت سو، چي وروسته د همدې ټبر د نامه په مناسبت (پارس) وباله سو او له آسوري کتيبو څخه څرګندېږي چي له (۷۰۰ تر ۶۰۰ ق م) پوري د پارسوا اميران د آسور تابع ول، او د مادي پاچهانو له کهول څخه فرورتيش (۶۵۵ – ۶۳۳ ق م) پارس د ماد تابع کی.

د پارسي شپږو قبيلو په منځ کي چي په ښار کي اوسېدل، يوه قبيله (پارساګاد) وه چي مشر ئې هخامنشي (۷۰۰ – ۶۷۵ ق م) نومېده او د ده له نسله د هخامنشيانو په نامه پاچهان پيدا سول په دې تفصيل (په مقابل مخ کي ئې چارټ وګورئ):

د دې تابلو په ترتيب کي مؤرخان اختلاف لري چي ځينو ئې يو څو نومونه نه دي راوړي، خو هغه څه چي د ايران باستان مؤلف ترتيب کړي، تر نورو معقول ښکاري، چي دلته د ځينو زياتو تشريحاتو سره راوړه سوه.

هخامنشي پاچهانو له (۷۰۰ ق م) څخه د ايالتي اميرانو په توګه د مادي پاچهانو تر اداري لاندي په ايلام کي حکومت کاوه او د (ماد) وروستنی پاچا ستياګس چي نالايقه سړی وو خپله لور ماندانه Mandane ئې دوهم هخامنشي کمبوجيه ته ورکړې وه چي د هغې له نسه لوی کوروش (سيروس) پيدا سو او هغه د ستياګس پر ضد پاڅېد او هغه ئې له منځه ورک کی او په ۵۵۹ ق م کال ئې د يوې لويي شاهنشاهۍ بنسټ کښېښود چي د ايران د فلات ټولي مځکي پکښي شاملي وې.

که څه هم کوروش د هخامنشي کورنۍ اووم پاچا ګڼل کېږي، خو د دې کهول لومړنی لوی بريمن (فاتح) دئ، چي وروسته تر هغه چي د لمر لوېدو خوا ته ئې د مديترانې تر غاړو پوري هيوادونه ونيول، د پارس د لمر ختو خوا ته ئې مخه وکړه او ورنه کانه (ګرګان) او پرثوه (پارت) او اريا (هريوهرات) چي پايتخت ئې ارته کنه




پهتېر مخ پوري اړوند چارټ

Artacana وو او زرنکه (= درنگه درنگیانه = اوسنی سیستان) د اتیماندروس (= هیتومنت = هلمند) د سیند پر غاړه او هاوروتیش (= هرووتي = اراکوزي = ارغنداو) او د کوفن (کوبهه = کابل) د سیند ناوه او د اوپیري سینه (= پاروپامیزاد = هندوکش) غرونه، دوگزکه (غزنه) او د کندهار ولایتونه (له ننگرهاره د سند تر غاړي پوري) او باخترش (بکتریه = بلخ) د سکاهومه ورگا (پامیر) تر غرو پوري او همدارنگه ئې د آمو ها خوا ته سوگودو (سغد تر اورکسارتس (سیر دریا) او د خیوه او هوارزمه (خوارزم) او مرگیانا (مرو) ډاگونه او دښتونه په هخامنشي هیواد کي شامل کړل.

د گندهارا په ناوه کي د خیبر د درې لمر ختیزي خوا ته د سیروس له آثارو څخه د یوې آتشکدې پاته برخه ده چي د پېښور د گزیتیر (د ۱۹۳۱چاپ) له مخي د آتشکدې دا پاته برخه په سوابي کي د مردان ضلع د شهبازگړۍ لمر ختیز شمال ته ۱۲ میله لیري د اسوټه په کلي کي د یوولسو فټو په لوړوالي په یوه دایره کي چي شپېته فټه پرېړوالی (قطر) لري پرته ده او بنسټ ئې پر شنو ډبرینو پایو ایښوول سوی دئ، چي د هرو دوو پایو تر منځ یو تش ځای سته او پوهان وایي چي د اورپرستو دې معبد دېرش دروازې درلودلې او په یوه میاشت کي هره ورځ له یوې دروازې څخه ورننوتل چي ټولي دېرش دروازې کېدلې او هره دروازه د دوو ډبرینو پایو تر منځ وه.

سیروس (کوروش) په (۵۲۹ ق م) کال په یوه جگړه کي وژل سوی او یا په طبیعي مړینه مړ دئ او دریم کمبوجیه چي د ده پر ځای کښېنوست د ده فتوحات ئې پسي تعقیب کړل او د مړیني پر وخت د هغه هیواد د هغه وخت له خورا لویو او ارتو هیوادو څخه وو او تر هغه وروسته لومړی داریوش د دې کهول نهم پاچا په (۵۲۲ ق م) کي پر تخت کښېنوست او په یوه کال کي ئې د کمبوجیه پر ټول هیواد بری وموند او له یونان څخه تر هند پوري ئې پر دې لویه پراخه مځکه حکومت کاوه او د مدنیت په خپرولو او لوړو ماڼیو ودانولو او د هیوادوالي (مملکت داری) د اصولو په وضع کولو او د لارو په جوړولو او د لښکر په سمبالولو کي ئې زیار ویوست او په ۴۸۶ق م کال مړ سو او په دې وخت کي وو چي د هخامنشي سلطنت د مدنیت او فرهنگ آثار په افغانستان کي هم خپاره سوه. په پارس او شوش او مصر او د الوند په غره او نورو ځایو کي د داریوش ځیني لیکني او کتیبې پاته دي، چي په میخي رسم الخط په پخواني فرس او ایلامي او آسوري او مصري او بابلي او شوشي ژبو لیکلي سوي دي او د پخواني فرس میخي خط

۴۲ نخښې درلودې.

او د دې لرغوني آثارو ډېرې مهمې هغه ليکنې دي چې د پارس په نقش رستم او بيستون کې له داريوش څخه پاتې دي او په هغو کې داريوش د هغو هيوادو نومونه ليکلي دي چې د ده تر تسلط لاندې ول او هغه څه چې زموږ د هيواد په تاريخ اړه لري دا دي:

۱. پرثوه Parthava (خراسان او گرگان)
۲. باختريش Baxtrish (بلخ) چې شمال ته ئې آمو او لمر لوېدو ته ئې مرگويه (مرو) او لمر ختو ته ئې د سيتي له قومو څخه يو قوم د ماساژث په نامه وو او پايتخت ئې زري اسپه ښايي چې او سنی بلخ وو.
۳. سوغوده Sughuda (سغد) د اوسني سمرقند سيمې.
۴. کرمانيه Karmania (کرمان = د پارسه او گدرزي او پرثوه تر منځ).
۵. گدزري Gedrosie (د افغانستان جنوبي سيمې تر بحره پورې).
۶. زرنگه Zaranka (زرنج = سيستان).
۷. هره يوه Haraiva (هرات).
۸. اوارزميه Uvarazmiy (خوارزم)
۹. گداره Gadara (د کابل رود او پېښور).
۱۰. هيندوش Hindush (سند)
۱۱. ته ته گوش Thattagush (د هرودوت سته گيد = شيتک د کوهاټ او بنو او خټکو سيمې).
۱۲. سکه هومه ورکه Saka-Homa-Varka (د هومه راکښته کوونکي ساکه يان –غالباً د پامير په شاوخوا کې).
۱۳. سکه تيگر خئوده (د تيره خول خاوندان ساکه يان).
۱۴. سکه تيه تر دريا (د سيند ها خوا ته ساکه يان).
۱۵. مکه (مکران).
۱۶. هراووتيش Harauvatish (اراکوزي = ارغنداب).

د داريوش ارت هيواد ټوله (۳۱) ساتراپې (ولايتونه) درلوده، چې په هغو کې پورتني ولايتونه د ټول اوسني افغانستان او گاونډيو ځکو شامل دي او د گنداره

ولايت ته په بابلي ايلامي ليکنو (کتيبو) کي (پاره او پره ازانه) يعني د غرو ها خوا ايالت ويلي سوي دي خو د هغه وختو د وضعيت جزئيات تر اوسه په تفصيل سره ثرگند نه دي او دوني قدر ويل کېداى سي چي له (۵۵۰ ق م) يعني د داريوش له راتلو څخه بيا تر (۳۳۱ق م) پوري چي هخامنشي شاهنشاهي د سکندر په لاس له منځه تله، د افغانستان خاوره د هخامنشي د لويي شاهنشهۍ برخه وه او حتی د سند د ها خوا پنجاب يوه برخه هم ورپوري مښتې وه او په همدې سبب د هخامنشي او هندي مدنيت په دې يو ځاى کېدو کي د هخامنشيانو له رسمي آرامي خط څخه خروشتهي رسم الخط د سند د ناوې د خلکو په ژبه کي د فاتح او مفتوح کلتور له گډون څخه منځته راغی او د هند د موريه کهول پاچهانو (۳۲۳ – ۱۹۰ ق م) د هخامنشي صنعت او د معمارۍ د سبک پيروي کړې وه.

هيرودوت (چي د ۴۲۵ ق م په شاوخوا کي مړ دئ) د افغانستان په لمر ختيځه مځکه کي د داريوش د پاچهۍ د دورې په باب کي ښه اطلاعات راکړي دي. چي له هغې جملې څخه په ۴۴۴ کتاب کي ليکي:

"داريوش درياب ته د سند د رود د گډېدو د ځاى د کشفولو له پاره يو يوناني اميرالبحر چي سکيلاکس نومېده او د (کارياندار) د ملک وو د ثو باوري کسانو سره په بېړۍ کي کښېناوه او د هغه کار له پاره ئې واستاوه، دا ډله د کسپاتورس له مځکي ښاره او د پکتويک Pakuike له مځکي وخوځېده او درياب ته ورسېدله".

همدارنگه دې لرغوني مؤلف په ۳ – ۱۰۲ کتاب کي د کسپاتورس ښار د پکتويک په هيواد کي بللی او وايي چي دا خلک د ژوند په دود او دستور کي باکتريانو ته ورته او ډېر جگړن خلک دي.

زياتو څېړونکو پوهانو د هيرودوت کسپارتورس او پکتويک د اوسني پېښور او پښتون سره تطبيق کړي دي، دا ځکه چي تر هيرودوت دمخه هم مشهور جغرافي پېژندونکي هيکاتايوس Hecataeus د (۵۰۰ ق م) په شاوخوا کي کسپاتورس په گندهاره کي بللی وو چي همدا پېښور او گندهارا دئ.

هيرودوت د اووم کتاب په ٦٦ – ٦٧ – ۸۵ کي د خشيارشا د جگړنو فهرست راوړی او په هغه کي ئې گنداريوي Gandarioi او داديکاى Dadikai چي د باکتر وسلې ئې درلودلې او هم ئې پکتويس (د پوستين اغوستونکو لېندۍ اخيستونکو او

خنجر لرونکو) په نامه یاد کړي دي او هم ئې د ساګارتیوی Sagartioi د کوچي قبیلو یادونه کړې ده.

چي ژبه ئې پارسي او کالي ئې نیمی پارسي او نیمی پکتوان Paktuan وه او اته زره سپاره ئې لښکر ته ورکوله، مؤرخانو ګنداریوي د ګندهارا خلک او دادیکا تاجیک او پکتویس او پکتوان پښتون بللي دي او زه د هیرودوت ساګارتیوی همهغه د داریوش د بهستون ساګارتي بولم، چي (د غور د جنوبي) ساخر – ساغر سره تطبیقېږي، او ځینو بیا په سپک احتمال هغه شرخبون (= خرشبون = د مطلع السعدین خشرواني = د قندهار د پښتنو یوه قبیله) بللې ده.

د داریوش د بهستون له لیکني (کتیبې) څخه د ده په عصر کي د دې هیواد د اوضاعو په باب کي ډېر ښه معلومات لاس ته راځي او له دې څخه چي د بهستون په کتیبه کي د ولایتو شمېر ۲۳ او په نورو کتیبو کي ۳۱ دئ معلومېږي چي کله کله به د هخامنشي تر لاس لاندي ځینو هیوادو بلوا کوله او د نورو تر لاس لاندي هیوادو سره به نه ګډېدل، لکه چي د ساګارتیوی د ولایت نوم یوازي د پارس د بهستون په کتیبه کي راغلی او په نورو کتیبو کي نسته.

د بهستون د کتیبې په (۲ ستون – بند) کي وایي:

"هغه وخت چي داریوش په بابل کي وو، بارت (خراسان) مرو او تته ګوش او سکائیه بلوا کړې یاغي سوي ول، د پارت بلوا د داریوش پلار ویشتاسپ آرامه کړه او د فروتیش سره په (ویش پااوزات) نومي ځای کي وجنګېد او هغه ته ئې ماته ورکړه. په ساګارتي کي (که ئي ځای د خراسان خوا ته ټاکل سوی) هم د چیتره خم Chitataxm په مشری بلوا سوې وه چي داریوش د تخمسپاده Texmspada په سالاري یو لښکر ورواستاوه او چیتره تخم ئې ونیو او چي داریوش ته ئې راووست د هغه غوږ او پزه ئې پرې کړه او سترګي ئې وایستلې او په غرغره ئې کی (۲ ستون ۱۴ بند). د خراسان په مرو کي هم فراده Frada نومي سړي بلوا وکړه، چي داریوش د باختر والي (دادرشیش) د هغه دفع ته وګوماره او دادرشیش مرویان رعیت کړه او ټول باختر آرام سو (۳ ستون ۳ بند).

هغه وخت چي په پارس کي (وهي یزداب) یاغي سوی وو نو ده یو لښکر د (رخج هره خواتیش = د ارغنداو ناوې) ته واستاوه او د رخج والي ویوانه Vivana ئې وشاړه،

خو دا والي په کندهار کې د داریوش د لښکر سره یو ځای سو او د (وهي یزداب) د لښکر مقابلې ته ووت او په هغه جګړه کې چې دانامکه د میاشتې پر ۱۳ ورځ د کاپیش (کاپیشکانه) په کوټ (کلا) کې وسوه، د یاغیانو لښکر مات سو او تر هغه وروسته ئې د (کندهار) د ګندوم Gandum په سیمه کې دویخن د میاشتې په اومه ورځ بیا همدې یاغي سوي لښکر ته ماته ورکړه او د یاغیانو مشر له څو لږ سپرو سره وتښتېد او د (کندهار) د ارشاده په کلا کې د ویوانه په لاس کښېووت او ووژل سو او په دې ډول د رخج ایالت د داریوش د هیواد برخه سوه (۳ ستون ۳ بند).

دا پېښې د ۵۲۲ق م د سپتامبر له ۲۹ څخه د ۵۲۰ق م د مارچ تر لسمي پوري پېښې سوي وې.

د هند د نیولو له پاره د داریوش د جنګي سفر بیان داسي لیکلی دئ، چې:

دی د سند له سینده پوري ووت، سند او پنجاب ئې ونیول او یوناني سکیلاکس ئې د عمان سیند ته واستاوه او هر کال ډېر سره زر له هنده پارس ته رسېدل او د هند او غربي هیوادو تر منځ تجارتي روابط ټینګ سول او له همدې شلم ایالت څخه د کاله ۳۶۰ تالانه سره زر (تخمیناً ۲۵ ملیونه افغانۍ) د باج په توګه هخامنشي دربار ته رسېدل.

د پارس د تخت جمشید د داریوش په هدیره کې د هخامنشي دولت د تابع سوو خلکو تصویرونه لیکل سوي دي، چې د نورو دېرشو ملتو په جمله کې دا نومونه هم سته: بارتي (خراساني)، هراتي، باختري، سغدي، خوارزمي، زرنګي (سیستاني)، رخجي (قندهاري)، ته ته ګوشي (پختیا د سند تر غاړې پوري) ګندهاري، هندي، اوساګارتي. او دا خبره هم څني ښکاره کېږي چې د اوسني افغانستان خلکو د پنځمي ق م پېړۍ په شاوخوا کې د خپلو ځایو او ولایتو په نومو شهرت درلود (۱۱ لمبر عکس).

داریوش په خپل پایتخت شوش کې یوه ماڼۍ جوړه کړې وه، چې کتیبه ئې په درو ژبو پارسي، ایلامي، او بابلي کشف سوې او په هغې کې هم د افغانستان د ولایاتو د خلکو یادونه سوې ده.

دی وایي: د دې ماڼۍ د چندڼ لرګي له ګنداره او طلا ئې له باختره او د لاجورد ډبري ئې له سغده او فیروزه ئې له خوارزمه او پیلغاښ (عاج) ئې له هند او رخجه او د ځیړۍ (بلوط) لرګي ئې له ګنداره څخه راوړه سوي دي، چې دا ټول ځایونه په افغانستان او د افغانستان په شاوخوا کې دي.



گنداریان



بلخیان



ساکان

۱۱-لمبر عکس

داریوش خپل ارت هیواد چې په هغه کې له راز راز نژادو څخه ۴۸ ډوله خلک د راز راز ژبو، ادیانو او اخلاقو سره اوسېدل په دېرشو ستراپي (ولایتو) وېشلي ول، چې په هغه کې محلي حکمرانانو هم د خپلو عقایدو د آزادۍ سره ژوند کاوه او هر ولایت د خشترپاون (یعني د ولایت د ساتندوی) په نامه یو اعلی حاکم درلود، چې د هخامنشي درباره مقررېدی او ولایت ئې د یوه دبیر او یو لښکري سالار په مرسته اداره کاوه. سردبیر به تل مستقیماً مرکز ته اطلاع ورکوله، د امنیت مسئول ارگ پټ وو. ځری تونونه (چاپارخانې) لاري او مېلمستونونه (مهمانخانې) ئې درلودلې. په هر ولایت کې خشترپاون مالیې ټولولې، او پلي او سپاره لښکر ئې درلودل، اووه لس زره تنه دولتي غښتلی لښکر د (جاویدان) په نامه وو. هیرودوت د هر ولایت د مالیې اندازه هم لیکلې ده، چې له هغې جملې څخه د افغاني او گاونډیو ولایتو مالیه داسي وه:

۱/ د هخامنشي اووم ایالت: چې ستاگیدي، گندهاره، دادیک، اپریدي پکښې وه ۱۷۰ تالان (د لسو ملیونو افغانیو په شاوخوا کې).

۲/ دوولسم ایالت باختر ور سره مښتی نور ځایونه ول ۳۰۰ تالان (تر ۱۸ ملیونو افغانیو پوري).

۳/ څوارلسم ایالت چې ساگارتي زرنگي (سیستاني) پکښي اوسېدل د عمان د جزایرو د غاړو تر خلکو پوري ۶۰۰ تالان (د دېرشو ملیونو افغانیو په شاوخوا کې).

اوس د افغاني سیستان وېش ته نژدې یو لرغونی ښار کشف سوی دئ چې د هخامنشي دورې په مدنیت اړه لري او له دې څخه هم ثرگندېږي چې سیستان په هخامنشي هیواد کې داخل وو (۱۲ عکس).

۴/ پارت – خوارزم – سغد – هرات ۳۰۰ تالان (د ۱۸ ملیونو افغانیو په شاوخوا کې).

۵/ هند او سند ۴۶۸۰ تالان (د یو سل او شپېتو ملیونو افغانیو په شاوخوا کې).

دا د لمر ختیځو ولایتو د مالیو اندازه وه خو د داریوش د وخت د دولت ټوله مالیه ئې ۱۴۵۶۰ تالان، نوي ملیونه طلایي فرنگه = ۴۵۰ ملیونه افغانۍ بللې ده.

د اولف کرو په قول: د هخامنشي له کهول کوروش، لومړي داریوش، خشیارشا او دوهم داریوش په گندهارا کې مستقیماً حکم چلولی دئ چې د لمر ختیځو ایالتو پایتخت کسپارتورس (پېښور) او پیوکیلاوتس (چارسده) وو او لکه سر داوید هوگرث چې د سکندر په کتاب کې وایي: "په هغه جگړه کې چې د دریم داریوش او سکندر تر منځ پېښه سوه، د یوناني مؤرخ آریان د فهرست سره سم پښتانه او د هندوکش د غرو خلک د داریوش په لښکرو کې شامل ول" چې له دې څخه هم د دې هیواد سره د هخامنشیانو رابطه ثرگندېږي.

# د سکندر یرغلونه

د هغو لویو تاریخي جریانو په سلسله کي چي تر ویدي او اوستایي فرهنګ او د هخامنشي مدنیت تر اغېزو وروسته ئې د افغاني فرهنګ په جوړولو او زموږ په هنر او پخواني فکري جوړښت کي ډېر زیات او څرګند اثر کړی دئ، هغه د افغانستان په خاوره کي د سکندر مقدوني لښکرکشۍ او یرغلونه دي چي د دې هیواد د فرهنګ او ژوندون او فکر او مدنیت لرغوني جریان ته ئې څرګنده اوښتنه او نوې بڼه ورکړې ده او د افغانستان په تاریخ کي دا اغېزه ناکه پېښه خاص اهمیت او ډېري ژوري اغېزې لري. دا ځکه چي زموږ پر سیاست او د ژوندون پر طرز او پر فکر او ادب او هنر او زموږ د فرهنګ پر ټوله مجموعه باندي ئې دوني ژور او تغیر ورکوونکی تأثیر کړی دئ چي پخوانۍ لاره ئې بېخي الیشه کړې ده.

سکندر د یونان په شمال کي د مقدوني پاچا دوهم فلیپ زوی وو، چي په ۳۵۶ ق م کال د پلا په ښار کي زېږېدلی، پلار ئې فلیپ د دریم امین تاس زوی او مور ئې المپیاس د مولوس د پاچا نیي اوپ تولم لور وه، چي د یوناني اساطیرو له مخي سکندر د پلار له خوا هرکولس او د مور له خوا اشیل د یونان افسانوي پهلوانانو ته رسېږي او څنګه چي ئې پلار د (۳۳۶ ق م) کال په یوه مېله (جشن) کي د یوه یوناني له خوا ووژل سو، نو په هم هغه کال په شل کلني عمر د یونان پر شاهي تخت کښېنوست.

په دې وخت کي د هخامنشي د کهول تخت دریم داریوش (کدمان) ته رسېدلی وو، چي د هیواد چاري د ده د فتنه انګېزه وزیر (باګواس) په لاس کي وې او پخپله کدمان هم استراحت غوښتونکی، بېکاره او ناراسته سړی وو، ځکه نو سکندر ته چي د جهان نیولو اراده ئې درلوده د هخامنشي د ارت هیواد نیول آسانه ښکارېده او د ۸۰ زره لښکر او جنګي بېړیو سره د اردانل تر آبنا راپوریووت او پر آسیا ئې حمله وکړه.

دریم داریوش هم ۸۰ زره عسکر درلوده چي یو څه ئې یوناني اجیر سپایان ول او د دوی قوماندان هم یونانی (میمنین) نامی وو، مګر د کرانیک، ایسوس او ګوګمل په

درو جګړو کې سختې ماتې وکړې او سکندر د هخامنشي ښکلي پایتخت (تخت جمشید) ته اور واچاوه او داریوش پارت (خراسان) ته وتښتېد او د (۳۳۰ ق م) کال په جولایي کې د پنځوس کالو په عمر دامغان ته نژدې د باختر د والي (بسوس) او د رخج او درنګیانا (کندهار او سیستان) د حکمران (برسنتس) له خوا ووژل سو.

سکندر د داریوش د نیولو له پاره پر خراسان یرغل وکی او چې هغه ئې وژلی وموند د هغه وژونکی ئې غرغره کړ او د شرقي سیمو فتحې ته ئې مخه وکړه.

دا وخت بسوس باختر ته ورسېد، هلته ئې د پاچهۍ اعلان وکی او د سکندر د مقابلې له پاره ئې په هڅو لاس پوري کی او برسنتس هم ځان سیستان ته ورساوه، او ساتي بارزانس له آریا (هراته) په دې دفاعي اتحادیه کي ګډون وکی، خو چې سکندر سوزیان (طوس) ته ورسېد د هرات حکمران هغه ته ښه راغلې وویل، بیا نو د بسوس د ترټلو او نیولو له پاره باختر ته وخوځېده چې د ده په غیاب کي د هرات خلک د همهغه بارزنس په مشرۍ پاڅېدل، او د یوناني لښکرو مشر اناکسیب ئې په هرات کي وواژه، سکندر چې د هراتیانو له دې ملي قیام څخه خبر سو ژر د ارتاوکوانا ښار ته ستون سو او د ساتي بارزانس او د هغه د فداکار لښکر مقاومت ئې چې په یوه ځنګله کي ئې مورچه نیولې وه ځنګله ته د اور اچولو سبب له منځه یووی او د یوناني لښکر د ساتلو او اوسېدلو له پاره ئې د آریا سکندریه ښار ودان کی چې همدا اوسنی هرات دئ او د هغه حکمراني ئې ارزانس (ارشک) ته وسپارله.

هرات چې د سکندر لاس ته ورغی نو د فراه له لاري ئې پر زرنګ (سیستان) یرغل وکی او د ۳۳۰ ق م کال د اکتوبر په میاشت ئې په سیستان کي د خپل لښکر ستر قوماندان فیلوتاس د پارمن یو زوی چې ځني بېربدی او هم د خپل ګارډ سردار دیمتریوس ئې ووژل او له هغه ځایه لمر خاته خوا ته د ایتي ماندر (هلمند) د غاړې د اورګیتي (ګرمسیر) د نیولو له پاره وخوځېد چې تیري داتس ئې حکمران وو. هغه هیواد ئې د ګډروزیه (بلوچستان) سره ونیو او د هغه ځای پایتخت چې آریاسپ نومېد فتح ئې کی.

سکندر د هلمند له ناوې څخه د اراکوزي (ارغنداو) ناوې ته ولاړ او د ۳۲۹ق م په دوبي کي ئې اوسني کندهار ته نژدې د اراکوزي سکندریه ښار ودان کی او دغه عسکري کوټ ئې د یوناني سپایانو قرارګاه کړه، او هم ئې د هغه ځای له خلکو عسکر

واخیسته او (ممنن) ئې د هغه ولایت والي وټاکه.

دا وخت که څه هم سکندر درې لوی ولایتونه لکه آریا (هرات)، درنگیانه (سیستان) او اراکوزي (کندهار) نیولي ول، خو د هراتیانو ملي مشر ساتي بارزانس د باختر له پاچا بسوس څخه دوه زره عسکر کومک واخیست، او په آریا (هرات) کي ئې د خپلواکۍ بیرغ پورته کی، سکندر خپله یوه لویه نظامي قوه د ارته باز یوس او ایري ژیوس او کارانوس په مشرۍ د هرات د ملیونو د مقابلې له پاره واستوله او د پارت والي چي فراتافرون نومېده د دې سالارانو سره یو ځای سو او د هرات ملي قواوي ئې له هري خوا محاصره کړې، څو چي په یوه سخته جگړه کي ساتي بارزانس د ایري ژیوس له لاسه ووژل سو او د هرات مقاومت هم پای ته ورسېد.

تر هغه وروسته سکندر د کابل او پاروپامیزاد د غرو د نیولو خوا ته مخه کړه او د ۳۲۹ق م د نوامبر په میاشت د ژمي په سر کي کابل ته راغی، او بیا د کابل د شمال خوا کاپیسا ته وخوځېد او چاریکار ته نژدې ئې په هوپیان کي د ققفاز سکندریه بنار ودان کی.

د ۳۲۹ق م د پسرلي په پای کي سکندر د خپل لښکر سره د ققفاز له سکندریې څخه وخوځېد او د اندراب له لاري د هندوکش تر غرو (په یوناني د ققفاز تر غرو) تېر سو او د باختر د حکمران بسوس پر لښکر ئې چي اته زره باختري وسله وال ول یرغل وکی، خو بسوس په لښکر کي د مقاومت سېک و نه لید، د باختر سیمي ئې وراني کړې او خوراکي شیان ئې له منځه یووړه او د آمو له سینده د سغد خوا ته تېر سو او باختر د سکندر لاس ته ورغی چي ارته بازیوس ئې د هغه حکمران وټاکه، او ازچیلاس ئې د ساتندویو عسکرو سره هلته پرېښو او پخپله کیلیف ته نژدې د آمو تر سیند پوري ووت او د قرشي یا اوسني شهرسبز په شاوخوا کي ئې بسوس لاس ته ورغی او ماراکنده (سمرقند) ئې ونیو، او هلته ئې د تانائیس سکندریه بنار ودان کی چي اوسنی خجند دئ.

په سغدیانه کي هم د سکندر پر لښکرو سختي حملې وسوې، نو ځکه سکندر مقدوني پرکولائوس د درو زرو سپایانو سره هلته پرېښو او باختر ته راوگرځېد او چي دلته راورسېد د هرات والي ستازانور ئې دربار ته راغی او د هرات پخوانی والي ارزامس او د پارت والي برانس ئې چي د بسوس له خوا مقرر سوي ول د اوسپني په ځنځیرو کي پېچلی راوستل، او بسوس ئې په مجلس کي محاکمه کی او وې واژه (۳۲۸ ق م).

په دې وخت کي نونس زره هوسا او نوي عسکر له یونانه د سکندر د لښکر سره یو

ځای سول او ده د مرګیان (مرغاب) په ناوه کي د هغه ځای وطني حکمران اریمیازیس له منځه یووی او په دار ئې وځړاوه، د مرو په سیمو کي ئې د سرخس او مرو چاق کلاوي وداني کړې او بلخ ته راوګرزېد او د لاري پر سر ئې په میمنه، اندخوی، شبرغان او سرپل کي څلور نظامي کوټونه (حصارونه) جوړ کړه او بیا تر آمو پوري ووت او په مراکنده (سمرقند) کي د خپلو لښکرو سره یو ځای سو.

د سپیامنش د باختر یو جنګیالی او زړه ور مېړه چي په هغه سیمو کي ئې د سکندر سره جګړې کړي وې او د څه وخت له پاره له میدانه وتلی وو، بیا په باختر کي ډګر ته راووت او د یونان په عسکري مرکز زریاسپه کي ئې د سکندر د لښکر مشر پیتون Petton بندي ونیو، خو د سکندر له خوا کراتیروس د سپیامنش سره ونښت او هغه ئې له ځایه ویوست، مګر لږ وروسته چي سکندر له سغدیانه څخه راوګرزېد، همدغه سپیتامنش د درو زرو سغدي او باختري سپرو سره د ده مخ ته ودرېد، سکندر د دې توریالي له مړاني څخه په عذاب سو او د باختر والي ارته بازیوس ئې چي د سپیتامنش په ملګرې تومتي وو عزل کی او د هغه پر ځای ئې مقدوني امینتاس Amyntas وټاکه چي د عسکري جنرال کوانوس په ملات باختر وساتي خو بیا هم د باختر سپیتامنش وربانديې یرغل وکی مګر د خپلو ملګرو د خیانت په اثر ووژل سو (۳۲۷ق م) او په دې ترتیب د وطندوستو باختریانو مقاومت پای ته ورسېد او زیات ملي مشران د سکندر له لاسه نښت او نابود سول یو له هغو مشرانو څخه هوخیارتس Oxyartes نومېد، چي د خپلي کورنۍ سره غره ته ختلی وو خو مقدوني لښکرو وربانديې یرغل وکی او دی ئې د خپلي خورا ښکلي لور روښاني Roxana سره چي یونانیانو پخپل تلفظ رکسانه بللې ده سکندر ته راووست او ده دا ښکلې باختري پېغله د ۳۲۷ق م په پسرلي کي ماندینه کړه، حال دا چي د یوناني لښکرو سرداران د باختري پېغلي سره د یونان د پاچا په مړوښۍ راضي نه ول او یو له هغو څخه ستر نظامي سردار کلیتوس وو چي د ۳۲۷ق م په پسرلي د مستۍ په یوه مجلس کي چي په باختر کي جوړ سوی وو د سکندر له لاسه ووژل سو.

څنګه چي د باختر او سغدیانه په سیمو کي د سکندر دوه کلنۍ جګړې پای ته ورسېدلې، نو هند ته د سفر فکر ورپیدا سو، او دېرش زره باختري زلمیان ئې پخپل لښکر کي واخیستل او د ۳۲۷ق م په پسرلي کي د خپلو ۱۲۰ زرو پلیو او ۱۵ زرو سپرو سره چي ۷۰ زره ئې آسیایي خلک ول د هندوکش له لاري ئې د هند خوا ته مخه وکړه او

امینتاس ئې له لسو زرو پلیو او درې زره او پنځه سوو سپرو سره په باختر کې پرېښو.

سکندر د پاروپامیزاد د خاواک له درې څخه کاپیسا ته تېر سو او نیکاتور ئې د هغه ځای حکمران وټاکه او د کابل د ناوې حکمراني ئې تیریاسپ Tyriaspes ته وسپارله او د دروټېي له لاري د کونړ ناوې ته ورغی او له هغه ځایه اسمار او باجوړ او جندول ته ولاړی، او د لاري په هره برخه کې د خلکو له خوا ورسره جگړې او مقابلې وسوې او په هغه جگړه کې چې د اسپیزی (غالباً اوسني یوسفزي) خلکو سره ئې وکړه څلوېښت زره بندیان او دوه سوه او دېرش زره غوایي ئې په چور او چپاو ونیول او هغو لښکرو چې د هفستیون او پردیکاس په مشری د کابل د سیند د مجرا له لاري د تکسیلا د پاچا (امپهي) په لارښوونه د پېښور او چارسدې او ویهند د سیمو د نیولو له پاره استولي سوي وې هغه سیمي ئې تر سنده ونیولې.

سکندر د کونړ په سیمو کې تر باجوړ پوري د پښتنو د خورا سخت مقاومت سره مخامخ سو او د هغو سیمو په جگړو کې دوه واره ټپي سو او ده هم تر بري وروسته ښارونه وران او بندیان ئې تر تېغ تېر کړه او څنگه چې د اسپیزي امیر د سواست (سوات) د ناوې په یوه ښار کې مقاومت کاوه، نو تر سرکاڼیو او چمرکنډ او ناوگی تېر سو او د گوري (بنجگوره) له لاري چکدرې او د سوات ناوې ته ورسېد او څو ښاره ئې ونیول او ډېري قبیلې ئې ایلي کړې او دلته د یوناني مؤرخ آریان (د ۱۷۵م شاوخوا) په قول د اساکي نوس Assakenos په نامه خلک اوسېدل او مرکزي ښار ئې مساگه Massaga نومېد، چې اوس ئې د کتگله د درې او وچ خوړ تر منځ کنډوالې لیده کېږي او څنگه چې دلته ۷۵ زره هوسا او تازه دمه ملي لښکر د مدافعینو ملاتړ ته راورسېد خورا سخته جگړه ونښته او سکندر دوی د مساکه په ښار کې څلور ورځې کلابند کړه څو چې ټول ئې له منځه یووړه او تر هغه وروسته ئې داور او بازیرا (اوسنی بریکوټ) ښارونه هم ونیول او د مهابن (اورنوس) د غره لمنو ته وخوت چې د اټک د شمال په دېرش میلي کې پرتې دي اوس سي کوستوس ئې د هغې سیمي والي وټاکه او مقدوني نیکاتور د انډوس د لمرلوېدیځې ناوې حکمران سو.

د ۳۲۶ق م په فروري کې سکندر پر هغه پله تېر سو، چې غالباً ئې د اټک په شاوخوا کې پر سند تړلی وو او د تکسیلا تر ښاره چې د دې هیواد لوی دارالعلم وو او د راولپنډی د لمرلوېدیز شمال په لس میلي کې د مرگله د کوتل په لمنه کې پروت وو پر

مخ ولاړ او د تکسیلا پاچا امپهي Omphis ئې چې د سکندر سره ئې روغه وکړه بیرته په هغه ښار کي د خپل ستراب (والي) په حیث وټاکه او له هغه ځخه ئې پنځه زره جګړن واخیستل او د ۳۲۶ق م د می تر میاشتي د جیلم غاړي ته ورسېد او د همدې کال په جولای کي د هند د پاچا پوروس (فور) سره ونښت، هغه تسلیم سو او ده هم بیرته هغه پر خپل ځای پرېښو او پخپله د بیاس تر غاړي پر مخ ولاړ خو د ده لښکرو بلوا وکړه او د هند په توده خاوره کي ئې د نور پر مختګ ځخه غاړه وپیچله او سکندر ئې بیرته راګرزېدو ته مجبور کی او ده هم خپلي لښکري پر درو برخو ووېشلې: لومړۍ برخه ئې د کراتیروس او د لښکر د ناروغانو سره د بولان او کندهار او سیستان له لاري واستوله.

دوهمه برخه چې ۱۲ زره سپایان او دوه زره ماڼوګان وه د نیارکس په مشرۍ د سلو کښتیو سره د دریاب له لاري واستول سوه او دریمه برخه چې پخپله سکندر ورسره وو د سند پر لمر لوېدیزه غاړه ملتان ته ورسېدله او د هغه ځای خلکو خورا سخته دفاع وکړه حتي په یوه جګړه کي پخپله سکندر ټپي سو خو په نتیجه کي ئې ټول ووژل او قتل عام ئې کړه او هم د سند د ناوې په پای کي د اتیا زرو په شاوخوا کي خلک ووژل سول او د ۳۲۵ق م د جولای میاشت وه چې سکندر د خپلو ملګرو سره د اوسني کراچي شاوخوا (د اسلامي دورې دیبل) ته ورسېد او د یوې بحري سکندریې بنسټ ئې هلته کښېښو او له هغه ځایه د ګدروزیا (بلوچستان د افغانستان د جنوب) له لاري پارس ته ولاړ او چې بابل ته ورسېد ۳۲۳ق م د جون په ۱۳ شپه په ۳۲ کلنۍ د ملاریا له ناروغۍ ځخه مړ سو، د ده د یرغلونو او لښکرکښیو موده د آریانه په خاوره کي او د دې ځای د خلکو د مقاومتو وخت له ۳۳۰ تر ۳۲۶ق م پوري ځلور کاله وو (۱۳ عکس).

د آریانا په لمرختیځه برخه کي یعني د اندوس لمر لوېدو ته تر نیکاتور وروسته یو ځوک د فیلپس په نامه والي سو او ځنګه چې هغه په ۳۲۴ق م کال د یوناني عسکرو له لاسه ووژل سو تر هغه وروسته ایوداموس د تکسیلا د خلکو په ملاتړ د اندوس له غرب ځخه د خپل اتحاد رسۍ وشلوله او چې سکندر مړ سو د هند پاچا پوروس (فور) د اندوس بره نۍ ناوه ونیوله، خو په ۳۱۷ق م کي د ایوداموس له خوا ووژل سو، او پخپله ایوداموس هم هند پرېښو او د ده د تګ سره په شرقي هند کي د یوناني حکومت کمبله ټوله سوه.



مقدوني سكندر – ١٣لمبر عكس

# په آريانا کي د موريا موقتي واکمني

## او بودايي لويه اغېزه

د سکندر د مړيني سره د ده پراخه امپراتوري هم سره وپاشله سوه. د ده لويو افسرانو د شام په طرابلس کي يوه غونډه وکړه او په هغه کي ئې د سکندر هيواد په خپلو منځو کي سره ووېشه. د آريانه جنوبي ولايتونه يعني اراکوزي (د ارغنداو ناوه) او گدروزي (مکران) سيبيرتياس Sibyrtias ته وسپارل سوه او په آريا (د هريرود په ناوه) او په درنگيانه (د همند په ناوه) کي قبرسي سستاندار Stasandar حکمران سو او بکتريانه (باختر) او سغديانه (سغد) ستاسانور Srasanor ته ورکړه سوه، او هوخيارتس Oxyartes د سکندر د ماندينې روښاني پلار د آريانه د مرکزي سيمي يعني پاروپاميزاد او د کابل د ولايت حکمران سو.

مگر د آريانه لمر ختيځ ولايتونه چي حدود ئې تر تکسيلا پوري رسېدل د هندي شهزادگانو او د يوناني جنرالانو تر منځ د کشمکش په حال کي پاته سوه او څنگه چي دې هيواد ته د يوناني لښکرو راتگ او په باختر کي د هغو د پاتو کسانو پاچهي دوام، دلته د يوناني فرهنگ او هنر او فکر او عقايدو اغېزه پرې ايښې وه او دا اغېزه چي د دې هيواد د وطني خلکو د فرهنگي بقاياوو سره گډه سوې وه د شرق له خوا له يوې بلي ډېري مهمي پېښي سره مخامخ سو او هغه په هند کي د موريا د لوی سلطنت جوړېده وو.

که څه هم د آريانه په لمر ختيځو برخو کي د موريا واکمني له سياسي پلوه ډېر دوام نه درلود او دلته د يونانو باختري خپلواک سلطنت تأسيس سو، خو په دې لنډه موده کي د موريا پاچهانو او د بودا د دين مبلغانو دا ديانت د آريانه په شرق کي خپور کی، چي دلته بيا په يوه فرهنگي آيزوگلاس او د ثقافت او عقيدې د يو ځای کېدو په ځای کي درې مهم عنصره سره گډ سوه او د دې هيواد د فرهنگ په تاريخ کي ئې يو مهم باب چي د گريکو بوديک په نامه مشهور دئ پرانيست او دا ديانت او هنر په افغانستان کي زر

کاله نور د اسلام تر راتگ پوري پاته سو چي مهم عناصر ئې دا ول:

۱. باختري يا د دې هيواد خپل داخلي فرهنگي او هنري او عقيدوي عناصر.
۲. يوناني صنعت او عقيده او فکر چي د ۳۳۰ ق م په شاوخوا کي د سکندر سره شروع سوي وه.
۳. بودايي هنر او فرهنگ او دين د خپلو هندي آثارو سره چي د موريا د واکمنۍ سره يو ځای راغله.

په هند کي د موريا د سلطنت مؤسس چندراگوپتا (يوناني: سندروکتس) دئ چي د بنداشاهي کهول يوې شهزادو ته چي ميوره (طاوس) نومېدله منسوب وو او دی د کشتريانو طبقې او د راجپوت (شهزادگانو) له ټبر څخه وو، چي په ۳۲۴ ق م کي پاچا سو او تر ۲۴ کاله پاچهۍ وروسته په ۳۰۰ق م کي مړ سو او زوی ئې بيندوساره Bindusara چي د (وردهرا) ملکې له نسه وو د ده پر ځای کښېنوست او د موريانو پايتخت د هند د پټالي پترا (پټنه) ښار وو.

چندراگوپتا د ننډا سپه سالار وو، ده د تکسيلا د برهمنانو يو مشر چانه کيه Chanakya (په سياست او اجتماعياتو او اقتصادياتو کي د ارتهه شاستره د کتاب مؤلف) چي وروسته د ده وزير سو له ځانه سره ملگری کی او د مگده پاچا او پاچهي ئې له منځه يووړه او د گنگا او سند تر منځ ئې د يوه لوی سلطنت بنسټ کښېښود، چي اداري او مدني منظم تشکيلات ئې درلوده، ځکه نو دی يوازي يو بريالی سپاهي نه گڼې، بلکي يو هوښيار او زيرک سياست مدار هم بلل کېږي. چندراگوپتا د خپل هيواد د لمر لوېديځ حدود د سند تر غاړو اوږده کړه. د سکندر پر ځای ناستو يونانيانو غوښته چي د سکندر نيولي مځکي بيرته لاس ته راولي، نو هغه وخت چي سيليوکوس ملقب په نيکاتور يعني بريالی د بابل حکمران سو پارس او پارت ئې ونيول او په ۳۱۱ ق م کي ئې آريا بکتريا هم فتح کړه او په ۳۰۵ق م کي د کابل له لاري د لمر ختو خوا ته ولاړ او د سند تر رود پوري ووت نو د هغه سيند په لمر ختيځو غاړو باندي د چندراگوپتا د لښکرو سره مخامخ سو، خو څنگه چي نيکاتور خپل بډه (حريف) ډېر غښتلی وليد نو روغه ئې ورسره وکړه، خپله لور ئې ورکړه او د ۵۰۰ پيلانو په بدل کې گندهاره، اراکوزيه، گدروزيه او پاروپاميزاد چندراگوپتا ته پرېښوول او په باختر کي ئې هم د يودوتس حکمران وټاکه.

د چندراګوپتا او سیلیوکوس تر روغې وروسته د هند او باختر روابط پراخ سوه او د هند تجارتي مالونه تر پخوا ډېر د کابل او بلخ له لارې د خزر د بحیرې بندرو ته یووړه سوه، سیلیوکوس خپل یو پوه جنرال میګاستینیس Megastenes د موریا دربار ته د سفیر په ډول واستاوه او هغه یو کتاب د هند د حالاتو او د موریا د پاچهۍ په باب کې لیکلی وو، چې اوس نسته، مګر سترابو او د یونان نورو مؤرخانو پخپلو کتابو کې د هغه کتاب ځیني مطالب راوړي او ساتلي دي او د دې سفیر په وینا چندراګوپتا شپږ سوه زره پلي او دېرش زره سپاره او نه زره پیلان درلوده او د ده په شاهي کمپ کې څلور سوه زره تنه ول او په دې ترتیب د آریانه د خاوري نیمي برخي د هندوکش تر جنوبي لمنو پوري په ده اړه درلوده او دا لومړی وار دئ چې د هندي آریائیانو فرهنګي او سیاسي اغېزه له شرق څخه د انډوس لمر لوېدیځي خاوري ته د هندوکش تر غره پوري رسېدلې ده. کله چې چندراګوپتا په ۳۰۰ ق م کال مړ سو، د ده زوی بیندوساره د امیتره ګهاته Amitraghata (دښمن وژونکي) په لقب د پلار پر ځای پر تخت کښېنوست او ده د یوناني امیرانو سره دوستانه سیاست راواخیست، او د ګندهاره او پاروپامیزاد او اراکوزي له لارو ئې د سیلیوکیدانو د هیواد سره زیات تجارتي روابط ټینګ کړه او کله چې سیلیوکوس نیکاتور په ۲۸۰ق م کې د ۷۸ کلنۍ په عمر مړ سوی وو او د ده زوی انتیاکوس سوتر Antiachs-Soter د ده پر ځای کښېنوست نو ده د ۳۰۱ ق م په شاوخوا کې (دي ماکوس) پټنې ته د بیندوساره دربار ته د سفیر په حیث واستاوه.

د موریا د پاچهۍ او د یونانیانو تر منځ فرهنګي روابط له همدې وخته پراخ سوي ول او دا هڅه د هند او یونان د ګډ مدنیت د تأسیس مبدا وګرزېده او سربېره پر دې د هند سره د سمندر له لاري هم تګ او راتګ موجود وو، لکه چې پتروکلیس Partrokles د سیلیوکوس افسر او د هغه زوی د هند د سمندر له لاري سفر وکی او ښه جغرافي معلومات ئې راغونډ کړه چې وروسته ورځني پلیني او استرابو استفاده کړې وه. د موریا پاچهانو د یوناني سیلیوکیدیانو سره دوني د خپلوۍ رابطه درلودله چې د هند د پخواني سیاسي تاریخ مؤلف لیکي: بیندوساره انتیاکوس ته ولیکل چې ما ته یو حکیم او خواږه شراب او وچ انځر رانیسي او راوائې ستوه. انتیاکوس په جواب کي ورته ولیکل: زه به انځر او شراب درواستوم خو د یونان په قانون کي د پوهانو خرڅول ممنوع دي(!).

دا موريايي پاچا د يونان علومو او ادب ته ډېر سرابښ وو او د ده په وخت کي هنديانو د يوناني هومر اشعار پخپله ژبه ترجمه کړي او ويل به ئې او وراهه ميهرا Varahamihira پخپل کتاب بريهت سمهيته Brihat-Samhita کي د يوناني آسمان پېژندني معلوماتو ته په درنه سترګه ګوري او ښتګه چي دا اوضاع د ګريکو –بوديک د مدنيت پر شروع رڼا اچوي، موږ ئې دلته په لنډه توګه راوړو، چي د افغانستان د ګريکو –بوديک مدنيت آغاز ښه وپېژندل سي.

د هند دا يوناني دوسته پاچا يعني بيندوساره په ۲۷۳ق م کي تر ۲۷ کاله پاچهۍ وروسته مړ سو او زوی ئې چي اشوکا نومېد د خپل وزير رادهاکوپتا په مرسته پر خپلو ورونو بريالی سو او د موريا د پاچهۍ پر تخت کښېنوست او دی بېشکه د هند ستر پاچا وو، چي پر هغه ټول برعظيم او د افغانستان د خاوري پر يوه برخه د ارغنداو تر غاړو پوري ئې سلطنت کړی دئ.

اشوکا په لومړي سر کي يو جګړن او ويني تويوونکی سړی وو چي د بنګال د خليج پر غاړه د کالنګه په جګړه کي ئې يو لک تنه ووژل او ۱۵۰ زره ئې بنديان ونيول، خو هغه زړه لړزوونکي فجايع چي ده په دې خونړۍ جګړه کي د سر په سترګو وليدل او تر سلو زرو پوري انسانان له لوږي مړه سول د ده پر روحيه او شخصيت باندي سخته اغېزه وکړه او دی ئې د بودا د دين د روغي او سلامتۍ د فلسفې پر خوا کی، چي په ۲۶۰ق م کال ئې د بودا دين رسماً ومانه او د هغه دين تبليغ او خپرولو ته ئې ملا وتړله، او تر هغه تاريخ وروسته د ده د پاچهۍ دوره د روغي او امن او د ديني ودانيو او د خيريه چارو د پراخوالي، د بودايي بودتونو (معابدو) او لارو او مسافرخانو ودانولو او د مذهبي دساتيرو د خپرولو دوره وه او دی چي د خپل ارت هيواد هر ځای ته ورسېد هلته ئې پر ډبرو په مختلفو ژبو او مختلفو رسم الخطو د نوع پالني او حتی د ځناورانو او ژويو د نه آزارولو نصيحتونه وکيندل چي تر اوسني وخته هم پاته دي او دا ډبرين فرمانونه د هغي دورې پر اوضاعو ښه ډېره رڼا اچوي.

په ګندهارا او د افغانستان په لمر ختيځه برخه کي چي جنوباً تر کندهاره رسېږي د بودايي ستوپو زيات آثار سته، چي د هغو تاريخي ودانيو يوه برخه تر اوسه پېژندل سوې ده او د ټولو شمېر مشکل دئ.

وايي چي اشوکا د خپل هيواد په شمال کي څلور لويي ستوپې وداني کړې چي يوه

ئې د پېښور د بالاحصار پر غونډۍ پرته او (۹هـ کال) د هيون تسنګ تر عصره پورې هم
په همهغه خپل برم پاته وه او د هيون تسنګ په وينا دا ودانۍ ئې له ښکلو ډبرو او انځور
سوو لرګو څخه ودانه کړې وه، چې د فاهيان په قول په سپينو او سرو زرو ښکلې سوې وه
او موسيو فوشه وايي چې دا هغه ستوپه ده چې (د سترګي سوغات) نومېدله او بودايانو
عقيده درلوده چې دلته بودا خپله سترګه قرباني کړې وه.

همدا راز د اوسنۍ چارسدې لمرختيځې خوا ته د (کنيزکه) پر غونډۍ باندې د
اشوکا ودانه کړې ستوپه وه چې د هيون تسنګ تر وخته هم په همدې نامه مشهوره وه او
دی وايي چې دا ستوپه په پرله پسې عصرو کې د څلورو بوداګانو د قوانينو د تبليغ ځای
وو.

# د بودا دين او په افغانستان کې د هغه خپرېدل

د افغانستان خلکو ته سره له دې چې د ويدي او برهمني د پخوانيو او زړو عقيدو
پايڅوړ چې د هيواد په لمرختيزو سيمو کې رواج درلود وړپاته وو، د هيواد په شمال او
لمرلوېديځو سيمو کې د زردشت آيين او اوستايي مزديسنا هم رواج درلود خو هغه
وخت چې په ۲٦۰ق م کې اشوکا د بودا د دين تبليغ او خپرولو ته ملا وتړله، دې عقيدو
او دين حتی تر زر کاله وروسته هم د هيواد په لمرختيځو او شمالي سيمو کې پوره رواج
درلود او د هيواد دا خوا د دې ديانت د ودې زانګو سوه چې د فکر، هنر او فرهنګ له
پلوه ئې د دې خاورې د خلکو په ژوندانه کې ژورې اغېزې وکړې.

بودا د دې دين مؤسس د ساکيا د ټبر له کشتريه او جګړني طبقې څخه يو شهزاده
وو، چې د ساکيامونې يعنې (د ساکيا د ټبر پوه) په نامه معروف سو او په ۵٦۳ق م کال د
نيپال د کپي لاواستو په ښار کې زېږېدلی وو او په ۲۹ کلنۍ ئې خپله کورنۍ او د
شهزادګۍ ژوند پرېښوو.

او تر ۵ – ٦ کالو ګوښه کښېنستلو (انزوا) وروسته يوه شپه چې ډېره روڼه وه
(بدهـ) يعنې روڼ او وينښ وباله سو او د خپل دين په تبليغ کې ئې زيار ويوست او د هند
پاچهان ئې خپل دين ته راوبلل او وروسته تر هغه چې د هند زيات خلک ئې بودايي کړې
ول په ۴۸۳ق م د اتيا کالو په عمر په کوچې نګره کې مړ سو (۱۴ عکس). څنګه چې د
بودا دين يوه تياره فلسفه نه درلودله، نو د ده د مړينې په کال په باجاګره کې د بودا د

پیروانو یوه مذهبي غونډه وسوه او د ده درو تنو نامتو ملګرو انانده، یوپالي او کاسیاپه د ده خبري او ویناوي راټولي کړې او له هغو څخه ئې د تري پیټکه Tripitka (درې ټوکرۍ ګلان) په نامه د بودایي قوانینو مجموعه جوړه کړه.

بودایي دیانت د اشوکا د سلطې د نفوذ په اثر د هندوکش له جنوبه تر کندهاره خپور سو او د بودایي دین دریمه لویه جرګه د اشوکا په قیادت او د لوی عالم (موګالي پوتاتیسا) په مشرتوب جوړه سوه، چې په هغه کې د مذهبي احکامو پر ترتیب او تدوین سربېره داسي فیصله وسوه چي یوه بودایي ډله مبلغان دې لیري هیوادو ته واستول سي، د دې مبلغانو او د هغو هیوادو نومونه چي دا مبلغان وراستول سوي ول اشوکا د خپل جلوس په ۱۴ کال (۲۵٦ق م) په ۱۳ لمبر ډبرین فرمان کې کیندلي دي او له هغه څخه ثرګندېږي چي څو تنه بودایي مبلغان چي مجهان تیکه، مدهیان تیکه، دهه مراکهیهته او مهارکهیته نومېدل ګندهاره او د آریانه لمر ختیځو سیمو ته را استول سوي دي. دا مبلغان چي د دوتا Douta په نامه بلل کېده د (۲۵۸ق م) په شاوخوا کې د بودایي دین په تبلیغ بوخت ول او په همدې وختو کې انتیاکوس د سیلیوکوس زوی د باختر پاچا وو، چې د ده نوم د اشوکا په ډبرینو فرمانو کې (انتیاکه) لیکلی دئ.

د موریا وروستی حکمران چي په دغه وخت کې ئې پر کابل حکومت کاوه، سوفاګازنس وو، چې د باختر د پاچا ایوتیدیموس د واکمنۍ د دورې تر ابتدا پورې ئې هم په ګندهاره او د کابل په لمر لوېدیځه سیمه کې نفوذ درلود، او چې ایوتیدیموس په باختر کې خپلواک پاچا سو ده د هندوکش جنوبي خوا ته لښکر ویوست، د هندوکش د جنوب سیمې هم د باختري یونانیانو د خپلواک سلطنت برخې سوې.

د افغانستان په خاوره کې د موریا سیاسي نفوذ ډېر لنډ وو، اشوکا په ۲۳۲ق م کال تر څلوېښتو کالو پاچهۍ وروسته په تکسیلا کې مړ سو او څنګه چي د ده په کهول کې یو مقتدر پاچا نه وو، چې د ده پر ځای کښېني او د ده د سلطنت ارت حدود وساتي، نو ځکه د افغانستان په خاوره کې د دوی د نفوذ ځنځیر هم وشلېد، خو هغه دین چي اشوکا د ځان سره راوړی وو د هغه فکري، هنري او فرهنګي آثارو سره تر یو زر کاله پورې پاته سو، ومو ویل چي بودا ځان په فلسفي مسایلو کې نه وو پېچلی، خو پیروانو ئې د ده ویناوو ته د الهیاتو بڼه ورکړه څو د زمانې په تېرېدو دوه لوی مذهبونه ځني جوړ سوه:

لومړی مهایانه: یعني لوی مذهب (یون = یانه = په پښتو کي د تگ، رفتار او مذهب معنا لري) چي د هند په شمال او تبت او چین کي تر جاپانه خپور سو او د ځای د پراخوالي او د قوتو د ډېروالي په سبب ډېر تأویل پکښې پېښ سو او د دې مذهب پیروانو مهم باله او ویل ئې: هر فرد د کل چي انسان نومېږي جزو دئ او بیا دغه انسان د هغه لوی کل جزو دئ چي د دهرمه (دین) او عمل تر قانون لاندي راغلی دئ. نو څوک چي غواړي چي د شر له لومي ځان وژغوري له نورو دي نه بېلېږي، زیار ایستل باید مجموعي وي نه انفرادي، او دا ډول زیار انسان د بودي ستوه Bodhisattva مقام ته رسوي او د دې کلمې معنا د ژوندون هغه دانشمندانه حالت دئ چي د نورو په خدمت کي تېر سي. نو انسان دوه مقصده لري، یو د پوهي او علم زده کړه او بل بې له خپل ځانه پر بل مهرباني او د بل خدمت.

دوهم مذهب هینه یانه Hina-Yana (کوچنی مذهب) نومېږي، چي تابعان ئې په جنوبي هند کي دي. دوی پر فردي زیار تکیه کوي او د دوی کتابونه زیاتره په پالي ژبه دي، حال دا چي د لوی مذهب کتابونه په سانسکریت ژبه لیکل سوي او لکه چي چیني زایرانو د مسیحي عصر تر شروع وروسته په افغانستان کي لیدلي دي، د دې ځای په بودایي معبدو او ښارو کي د بودایي دواړو مذهبو تابعان ول.

بودا خپل دین پر اووه اصله: سپېڅلې عقیده، سپېڅلې اراده، سپېڅلې وینا، سپېڅلي رفتار، سپېڅلې روزي، سپېڅلي زیار او سپېڅلي توجه بنا کړی وو او ویل ئې:

هر چا چي په دې اوو اصلو عمل وکی له قیودو منزه کېږي او خپل فکر په یوه مخصوص ټکي کي چي د خواهشو له ځنځیره بشپړه آزادي ده متمرکز کوي، هغه وخت نو تر څلورو نورو مقامو تېرېږي.

۱. د رشتیا د پوهېدلو په لار کي څېړنه.

۲. د حقایقو په پوهېدلو کي تفکر.

۳. ژور تفکر او سکون.

۴. بشپړ سکون او توازن چي (نروانه) نومېږي یعني فنا.

د فرانس نامتو محقق فوشه د بودا د دین د خپرېدو د سببو په باب کي وایي: د آریانا د لمرختیځو سیمو خلکو چي تل د بېرحمو یرغلگرو تر پښو لاندي ژوبلېدل (د هخامنشي او د سکندر او چندراگوپتا) د یرغلو تر لیدو وروسته دا دین چي له وینو

تویولو بېزاره وو او د خودګذرۍ او ښه نیت توصیه ئې کوله د خپلي سلیقې سره سم وموندهاو کرونده ګرو یا کسبګرو خلکو هغه په آساني ومانه.

د بودا د دیانت پراختیا د اشوکا په توجه دې درجې ته رسېدلې وه چي دې پاچا (۸۴۰۰۰) مذهبي ودانۍ یعني ستوپې (توپ افغاني مقامي کلمه) جوړي کړي وې، چي د دې ستوپو شکل په کابل او کاپیسا کي توپیر پیدا کړی او لوړي سوي دي، یعني د ستوپې تنګاچه (سکو) څلورکنجه شکل موندلی او لوی والی ئې زیات سوی او هم د ګنبد او تنګاچې تر منځ یوه استوانه یي برخه اضافه سوې ده او د ګنبدي لوړه څوکه د شیرواني په شکل لیده کېږي. خو د اشوکا د عصر ستوپو چي هندي خصوصیات درلوده د آریانه خاورو ته لږ سرایت کړی دئ.

د اشوکا د وخت پاته لیکني چي د بودایي نصیحتو له مجموعې څخه دي د تکسیلا تر کتیبو وروسته پر دوو ډبرو لیکني پاته دي، چي یوه له مانسهري څخه لس میله لیري د ایبټ آباد شمال ته د پکهلي د ناوې په مدخل کي او بله د سوابي پر لویه لار د هوتي مردان لمر ختو خوا ته اته میله لیري په شهباز ګرهي کي پرته ده چي دواړي لیکني په پراکریت ژبه او خروشتهي رسم الخط دي، حال دا چي د اشوکا نوري ټولي لیکني په هند کي په براهمو رسم الخط دي چي د لرغوني هند د نورو محلي رسم الخطو مبدا ده.

د اشوکا د همدې اخلاقي فرمانو بله کتیبه د لغمان او ننګرهار تر منځ د درونټې په تنګي کي وه، چي پر درې کنجه شانته ډبره په آرامي ژبه ده او اوس د کابل په موزه کي سته، ډېر تاوان ور رسېدلی او څو لیکي ئې د څارویو د نه وژلو په باب کي پاته دي.

یوه بله کتیبه په آرامي خط شپږ لیکي د لغمان د قرغه یي دشله تک په درې کیلو مترۍ کي پر غره کینلې سوې ده، چي د اشوکا نوم پکښې لیدل کېږي او تر اوسه دا نوشته نه ده لوستل سوې، خو داسي ښکاري چي دغه به هم د اشوکا د ډبرینو مذهبي فرمانو څخه وي چي د درونټې له ډبرلیک سره شباهت لري (۱٦ لمبر عکس).

مګر د همدې پاچا یوه بله مهمه کتیبه په ۱۳۳۷ش کال له خاوري څخه راووتله. دا لیکنه د کندهار په زاړه ښار کي چهل زینو ته نژدې د غره پر یوه کاڼي په یوناني او آرامي دوو ژبو او دوو رسم الخطو کشف سوېده، چي پورتنۍ برخه ئې په یوناني ژبه ۱۳ نیمي لیکي او کښته برخه ئې په آرامي ژبه ۷ نیمي لیکي دي، چي د ټولي کتیبې اوږدوالی

**۵۵** سانتي او پسور ئې له **۴۵** څخه تر **۵۰** سانتيو پورې دئ او په هغې کې د ځينو نورو کتيبو په څېر د اشوکا نوم پيوداس ليکل سوی دئ (۱٦ عکس).

د دې کتيبې له کتنې څخه پوهېږو چې د اشوکا د بوداييې کېدلو په لسم کال يعني په **۲۵۰** ق م کې ليکل سوې ده او په دې وخت کې د موريا نفوذ او بوداييې ديانت تر کندهاره خپور وو او د ده زياتره اخلاقي مبادي تطبيق سوي ول، حال دا چې په نورو کتيبو کې د همدې مباديو د عملي کولو توصيه کوي. د کندهار د کتيبې د يوناني ليکنې ترجمه داسې ده:

"پيوداس پاچا د لسو کالو زيار ايستلو په پای کې انسان ته اخلاقي اصول ور زده کړه او له هغه وخته ئې د ټولې ځمکې خلک لا ښه ديندار او لا ښه نېکمرغه کړه او پاچا د ښکار له وژلو څخه ځان وژغوره، او نورو ښکاريانو او کب نيوونکو خلکو له ښکار او کب نيولو څخه لاس واخيست او د مور او پلار په نمانځنه ئې لاس پورې کی او تر دې وروسته به په دې ډول ډېر ښه ژوندون ولري".

له دې کتيبې څخه ښکارېږي چې تر ميلاد دمخه د دريمې پېړۍ په منځ کې په افغانستان کې يوناني او آرامي دواړو ژبو او دواړو رسم الخطو رواج درلود او د يوناني ثقافت اغېزه دونې غښتلې وه چې په کتيبو کې ئې لومړی ځای يوناني ژبې او رسم الخط ته ورکړی وو او دا هغه عصر ته نژدې وو چې په باختر کې يونان او باختري خپلواک دولت جوړېده، حال دا چې د بودا د دين اغېزه او يوناني فرهنګ د اراکوزي تر سکندريې (زاړه کندهار) پورې رسېدلی وو، خو په کټ مټ همدې وختو کې د هخامنشيانو له بقاياوو څخه آرامي رسم الخط هم په دې هېواد کې وو.



په کندهار کي د اشوکا یوناني او آرامي کتیبه

۱٦-لمبر عکس

# یونان او باختري خپلواک سلطنت

هغه وخت چي سکندر باختر ونيو، نو پارسي ارته بازيوس ئې پخپل ژوند د دې ځای حکمران وټاکه. دی تر لنډې مودې وروسته مړ سو او د ده ځای امين تاس د نيکولاوس زوی ونيو. د آريانان په قول د سکندر تر مړيني وروسته قبرسي ستاسانور د باختر او سغد حکمران وو او کله چي سيليوکوس په هند کي د چندراگوپتا سره روغه وکړه (۳۰۲ ق م) د باختر حکمران هم ده ته د اطاعت غاړه کښېښووه او هغه وخت چي سيليوکوس بابل ته ستون سو باختر تر پنځوسو کالو پوري د ده د کهول تر لاس لاندي پاته سو چي په باختر او بخارا کي ئې ډېري سکې کشف سوي دي او هم ده د باختر ځايي خلک په خپل لښکر کي اخيستي ول.

د سيليدوکي کورنۍ د دريم پاچا په وختو کي چي دوهم انتيوکوس نومېده د شاوخوا حکمرانانو هغه وخت چي دی د مصر په جګړو اخته وو د ده له اطاعته سر وغړاوه او له هغه جملې څخه د باختر خلکو د هغو يونانيانو سره لاس يو کی چي په دې هيواد کي د باختري آدابو او فرهنګ سره آشنا سوي ول او د خپلواکۍ اعلان ئې وکی.

دا وخت په باختر کي ديودوتوس =- تهيودوتوس Diodotos حکمران وو او ده د ۲۵۶ق م په شاوخوا کي د آزادي غوښتونکو باختريانو په ملاتړ په باختر کي د خپلواکي پاچهۍ اعلان وکی او د ده د پاچهۍ حدود تر سغد او مرو او د هندوکش د غره تر لمنو پوري رسېدل او څنګه چي ده باختريان د نورو له تسلط څخه ژغورلي او داخلي آزاد حکومت ئې جوړ کړی وو نو ځکه ده ته (منجي) لقب ورکړه سو.

د ديودوتوس يوه سکه سته چي پر يوې خوا ئې د دوهم انتيوکوس څېره او پر بل مخ ئې د ده د کهول د ساتندوی رب النوع زيوس د دوو وزو سره ليده کېږي او له دې څخه ښکاره څرګندېږي چي ده د باختر د خپلواکۍ تر اعلان دمخه د انتيوکوس سيليوکي په نامه د سپينو زرو سکه خپره کړې او بيا تر خپلواکۍ وروسته ئې د باختر په دارالضرب کي خپله سکه د پاچا په حيث پر سرو زرو باندي وهلې ده او دا د سرو زرو سکه چي په

پاریس کي ده پر یوه مخ ئې د دیودوتوس څېره او پر بل مخ ئې د جوپیتر (د آسمان، تکي، تالندي او برېښنا د رومي رب النوع) لڅ لغړ شکل دئ چي په پښو کي یوه ګربته (عقاب) هم کښېنول سوې او د سکې پر څنډه (بازیلیوزدیودوتوس) لیکل سوی دئ یعني دیودوتوس پاچا (۱۷ عکس).

د لومړي دیودوتوس له کهاله څخه یوازي یو زوی چي دوهم دیودوتوس نومېد د پلار تر مړیني وروسته (د ۲۵۰ تر ۲۳۰ ق م په شاوخوا کي) په باختر کي حکومت کړی دئ چي ده د شامي سیلیوکیانو د اقتدار پر خلاف د پارت د دولت سره ښه روابط او هم آهنګي درلوده او څنګه چي د پارت د دولت مؤسس ارساس هم د باختر له خلکو څخه وو نو دوهم دیودوتوس د ده سره د دوستۍ تړون او ښه روابط درلوده او د ده د پاچهۍ په وخت کي د هریرود ناوه او د هرات ښار هم د باختر په قلمرو کي شامل سو او سغدیانې ته هم له باختره حکمران استول کېده.

د لومړي دیودوتوس د کهول پاچهي ډېره و نه پائېده او د دوهم دیودوتوس یو امیر چي ایوتیدیموس Euthydemus نومېد او د سغدیانې حکمران وو یاغي سو او د باختر پاچا ئې وواژه او دی په پخپله د باختر خپلواک پاچا سو (د ۲۲۰ ق م شاوخوا) (۱۷ لمبر عکس).

د باختري ایوتیدیموس په وختو کي د شام یوناني پاچا دریم انتیوکوس د لمر لوېدو له خوا د پارت پر دولت یرغل وکی او پارتي پاچا تیري داد ئې مغلوب کی او د ۲۰۸ ق م په شاوخوا کي ئې د باختر خوا ته مخه وکړه، له دې خوا ایوتیدیموس د لسو زرو باختري سپرو سره د اریوس (هریرود) پر غاړه د انتیوکوس سره ونښت او څکه چي د مقاومت توان ئې نه درلود بیرته باختر ته راغی، او د باختر په پایتخت زریاسپ کي تر دوو کالو پوري کلابند پاته سو (د دې ښار موقع د مرو او اندخوی تر منځ ګڼل سوی دئ) په دې موده کي دریم انتیوکوس درنګیانه او اراکوزیه هم ونیول، خو څنګه چي ئې زریاسپ و نه نیولای سو او دواړي خواوي ستړي سوي وې نو هغه وخت چي د باختر شهزاده دیمتریوس د روغي د خبرو له پاره ده ته راغی ده خپله لور ورکړه او تر روغي وروسته د کابل او اراکوزیه له لاري د لمر لوېدو خوا ته د خپل سلطنت د قلمرو لوري ته وخوځېده (۲۰۵ ق م).

ایوتیدیموس تر هغه وروسته د هیواد د اداري په یووالي او توحید کي زیار



دوهم دیودوتس　　　　　　　　　　　　　　ایوتیدیموس

۱۷ - لمبر شکل

ویوست او د کابل د ناوې حکمران سوفاګازتوس ئې د ځان تابع کی او د شمال خوا ته تر پامیر ها خوا ته او تر چیني ترکستانه او ختن پورې پر مخ ولاړ او لمر لوېدو ته ئې مرو رود او هرات او طوس ونیو او خپل زوی انتي ماکوس ئې د هغو سیمو حکمران وټاکه او د جنوب له خوا تر اراکوزیه او درنګیانه پورې یعني د آریانه ټوله خاوره د ده د پاچهۍ د قلمرو برخه سوه او بل زوی ئې دیمتریوس د دې ولایت حکمران وو چې دې ټول ارت هیواد د یوناني جغرافیونو په اصطلاح زر ښاره درلوده او په دې عصر کې د باختري یونانیانو د دولت فرهنګي او تجارتي روابط د هند او غربي چین سره ټینګ ول او ایوتیدیموس لومړی پاچا دئ چې د ده په عصر کې باختري هنرمندانو او صنعت کارانو د دې ځای هنر او صنعت هند ته سوغات یووی او د راولنسن په قول له خروشتهي یوې کتیبې څخه ځرګندېږي چې یوناني باختري هنرمندان په دې عصر کې هند ته تللي او د هند په هنري آثارو کې ئې خپله هنري اغېزه پرېښې ده. د باختري ایدتیدیموس د پاچهۍ دوره له ۲۲۰ څخه تر ۱۹۰ق م پورې ګڼل سوې ده چې د ده تر مړینې وروسته د ده زوی دیمیتریوس Demetrius پاچا سو (۱۸ عکس) او دی د هند په خاوره کې د تکسیلا تر نیولو وروسته د ګجرات تر کڅو او کاتیاوار او د موریا تر پایتخت پټنه پورې پر مخ ولاړی چې دا پرمختګ د ده د دوو لویو جنرالانو اپولودوتوس او منادر د زیار نتیجه وه او منادر د کابل په اوپیان کې زېږېدلی وو او اولادو ئې د ۱۰۰ ق م تر شاوخوا پورې په هند کې پاچهي کوله.

دیمتریوس د ۱۷۵ق م په شاوخوا کې له هند څخه باختر ته راوګرزېد او خپل دریم زوی پانتالئون Pantaleon ئې د اراکوزي او سیستان حکمران وټاکه او بل دوهم زوی ئې د باختر حکمران وو.

هغه وخت چې پانتالئون د اراکوزي حکمران مړ سو، ځای ئې د ده ځلرم ورور اګاتوکلیس Agathocles ونیو (۱۹ لمبر عکس).

دیمتریوس او د ده پر ځای ناستو حکمرانانو پخپل قلمرو کې ډېرې سکې وهلي دي او همدې پاچا د اراکوزي دیمترماس (کلات) او ایوتیدمیا (سیالکوټ) او د سند دیمتریاس (پټیاله) او ته اوفبنیا (د سند په لتا کې) ښارونه ودان کړه چې دوهم ښار د ده د پلار په نامه او ځلرم ښار ئې د مور په نامه نومړی سوی دئ.

څنګه چې دیمتریوس د خپل ژوند په پای کې د خپلو لښکرو سره په هند کې



ديميتريوس ۱۸ –لمبر شکل



اګاتوکليس ۱۹ –لمبر شکل

مشغول پاته سو نو ځکه په ۱۸۱ ق م کال د باختر له یونانیانو څخه یو سړی چي ایوکراتیدیس Eukratides نومېد په باختر کي پورته سو او د پاچهۍ اعلان ئې وکی، او سکه ئې ووهله، چي په هغه کي ئې ځان بازیاوزمیگالیوس (لوی پاچا = هندي مهاراجه) وباله (۲۰ عکس) او چي دیمتریوس د خپل تاج او تخت د بیرته نیولو له پاره زیار ویوست ځای ئې و نه نیو او مړ سو. ایوکراتیدیس په باختر کي د یوناني پاچهانو د دریمي سلسلې بنسټ کښېښود او تر ۱۸۶ق م پوري د آریانه د ختیځي سیمي د حکمران مناندر سره وجنگېد، څو چي ئې د آریانه ټوله خاوره ونیوله، خو د لمر لوېدیځي خوا څخه د پارت پاچا د ده د هیواد غربي ایالتونه ونیوله او هغه اختلاف چي د دیمتریوس او ایواکراتیدیس د کورنیو تر منځ پیدا سوی وو، د باختر سلطنت کمزوری کی او د ۱۳۵ق م په شاوخوا کي د هغه سلطنت مرکز د هندوکش له شماله څخه کاپیسا ته رانقل کړه سو او هیلیوکلیس Heliokles د ایوکراتیدیس زوی چي د ۱۴۷ق م په شاوخوا کي پاچا سوی وو، د باختر وروستی یوناني پاچا گڼل کېږي، چي د هندوکش د شمال د سیمو تر پرېښوولو وروسته ئې خپله پاچهي د گندهارا د ولایت تر پایه یعني تر تکسیلا او جیلم پوري غځولي وه (۲۱ عکس).

تر هیلیوکلیس وروسته لسو تنو نورو د ده پر ځای ناستو حکمرانانو په کابل او گندهارا او پنجاب کي حکمراني کړې ده چي د ۳۰ ق م په شاوخوا کي د کابل له وروستنیو یوناني پاچهانو څخه انتیال کیداس امین تاس – هرمایوس زیات شهرت لري (۲۲ – ۲۳ – ۲۴ عکسونه) او د باختر د یوناني پاچهانو د سقوط علت د ساکا او سیتي قبیلو منځته راتلل دي، چي دا پاچهي ئې د ق. م د لومړۍ پېړۍ په لومړۍ نیمایي کي پای ته ورسوله او په دې ترتیب د دوی واکمني تر دوه نیم سوو کالو وروسته ختمه سوه او په دې موده کي د دیودوتوس له وخته د ۱۰۰ ق م تر شاوخوا پوري د دوی ۳۶ پاچهانو او یوې ملکې په افغانستان او هند کي حکمراني کړې ده او یوناني فرهنگ او هنر ئې په آریانه او هند کي خپور کړی دئ، چي په دې موده کي د ارباب انواعو پرستنه او یوناني صنعت او افکار او فلسفه او ژبه او رسم الخط او نور فرهنگي مظاهر د آریانه په ټوله خاوره کي د محلي او بودایي فرهنگي عناصرو سره گډ سوه او د یونانو باختري او گریکو بودیک خاص فرهنگ منځته راغی چي د اسلام تر راتلو پوري ئې اغېزه درلوده.

د دانیل شلوم برژه (په افغانستان کي د لرغون پېژندني فرانسوی مشر) په قول د



ایوکراتیدلیس ۲۰ –لمبر عکس



هیلیوکلیس ۲۱ –لمبر عکس




ہرمایوس
**۲۲ –لمبر شکل**




میناندر
**۲۳ –لمبر شکل**



انتیال کیداس
**۲۲ –لمبر شکل**

هیلنسم نفوذ په افغانستان کي تر اوومي پیړۍ پوري دوام درلود چي اثرونه ئې په دوه ډوله لیدل کېدای سي: لومړی د هنر له لاري او دوهم د رسم الخط له لاري. د اسلام تر راتلو دمخه په اوومه پیړۍ کي د دې هیواد هنر لا د گریکو بودیک د مشهور هنر یوه وروستنۍ څانگه وه. خو د رسم الخط په باب کي باید وویل سي: هغه وخت چي د چین نامتو زایر هیون تسنگ په ۶۳۰م کال یعني په عربو کي د اسلام د لمر راختو پر وخت له باختره تېرېدی، دلته د الفباء ۲۵ توري ول چي ۲۴ توري ئې بې شکه یوناني توري ول او یو د (ښ) ږغ ئې چي په پخوانۍ دري کي وو او په یوناني کي نه وو پر زیات کړی وو او هغه د PX توری یعني د ش + خ مجموعه توری = ښ دئ.

هغه دوې یوناني کتیبې چي په ۱۹۵۸ – او ۱۹۶۳م کلو په کندهار کي کشف سوي د اشوکا هغه اخلاقي موعظې دي چي په ټول هند کي په هندي ژبو کیندلي سوي دي، خو د دې کتیبو اهمیت په دې کي دئ چي د ارغنداو په ناوه کي آرامي ژبه او رسم الخط د اشوکا تر وختو د (۲۵۰ ق م شاوخوا) پوري ثابتوي او لکه چي یونان پېژندونکي پوهان وایي د دې دوو کتیبو یوناني متنونه د یوناني ادب ممتازي ټوټې دي او د ژبي د جوړښت له مخي د یوناني فیلسوفانو او خطیبانو لکه افلاطون او ارسطو د ژبي ساري گڼل کېږي او وینو چي د ق م د دریمي پیړۍ په کندهار کي د تفکر او لیکني ژبه همغه ژبه ده چي په آتن یا د میلیت په ښارو کي رواج وه او حتی د کتیبو د کیندني ډول هم د یوناني کلتور یووالی ښیي او څرگندېږي چي دا ځای د یوه یوناني مؤرخ په قول د مسیحي عصر په شروع کي د یونانیانو ټاټوبی وو (د کندهار د کتیبې ۱۶ لمبر عکس ته دي رجوع وسي). سربېره پر دې تر ۱۹۶۱م کال وروسته فرانسوي لرغون پېژندونکو د یوه یوناني ښار (آی خانم = سپوږمۍ مخي مېرمن) په کنډوالو کي د همدې یوناني باختري مدنیت ډېر ښه آثار موندلي دي او دا ښار د افغانستان او شوروي اتحاد پر وېش د افغانستان د خاوري په هغه برخه کي پروت دئ چي هلته د آمو او کوکچې سیندونه سره گډېږي او ډېري کنډوالې لري، چي دا کنډوالې د دواړو سیندو پر غاړه پر دوو ټاکلو برخو وېشل سوي دي: یوې خوا ته یوه لوړه غونډۍ ده چي دجنوب له پلوه د کوکچې پر سیند حاکمه ده او د دې شل متري غونډۍ بلي خوا ته د آمو سیند بهېږي او هم د دې غونډۍ پر سر لوی استحکامات سته چي د دې ښار بالاحصار دئ او یو حصار ئې د برج او خندک سره د لېنديۍ په شکل درلود او د ښار په منځ کي ئې له شمالي

دروازې څخه د جنوبي دروازې خوا ته ۱٦۰۰ متره واټن ایستل سوی وو چې کوڅې ئې هم لیده کېږي (۲۵ لمبر عکس – د ښار نقشه).

په دې لرغوني ښار کي ئې د مدنیت نخښې موندلي دي، چې هغه باید (د ګریکو باختري) خاص مدنیت په نامه یاد کړه سي، چې د مرکزي آسیا د صحرا نشینو د یرغل په سبب له منځه تللی دئ. خو کنډوالې د لوړې معمارۍ طرز راښیي چې په پخو خښتو او ډبرینو ستنو د مرکزي لویې ماڼۍ ودانۍ جوړې سوې دي او دا ماڼۍ یو اوږد غولی لري او هم په ماڼۍ کي د شنې، ژړې، سرې او توري رنګ آمېزۍ نخښې سته او هغه خښتې چې په دې ماڼۍ کي کار سوي دي هره ضلع ۴۵ سانتۍ او پنډوالی ئې له ۱۲ څخه تر ۱۵ سانتیو پوري دئ او د دې ښار اوبه د ویالې له لاري د کوڅو لوړو برخو او حتی بالاحصار ته رسېدلې چې د کوکچې د سیند له ۲۰ کیلو متره واټن څخه رابهیدلې او دې ښار درې برخې درلودلې، چې یوه برخه بالاحصار، بله برخه تر حصار راکښته او دریمه برخه ارګ دئ. په غربي جنوبي برخو کي د خلکو د اوسېدو ځای او د ورزش ودانۍ او مجسمه لاس ته راغلې ده، چې د کشف سوي کتیبې له مخي هغه یوه یوناني تریباه کوس نومي هرمس او هرکول وقف کړې وه.

بله لیکنه چې د دې ښار د خلکو د فکر او فلسفې ښکارندویه کېدای سي هغه د یوه یوناني (کي نه آس) د قبر د اوږده سندوخ کتیبه ده چې کلا ارګ دایي فرادیوس زوی په آی خانم کي پر هغه سندوخ کینلې او پر هغه قبر ئې ایښې ده او مفهوم ئې داسي دئ:

"په کوچنیوالي کي ښه روزنه واخله! په زلمیتوب کي خپلې غوښتني (خواهشات) اداره کړه! په پاخه سن کي سم کاره اوسه! په زوړوالي ښه ناصح سه! او د ژوندون په وروستیو ورځو کي پوه سه چې څنګه بې افسوسه مړ سې!".

او دا قیمت بها وجیزه د هغه وخت د خلکو د فکر او اخلاقو ښه ښکارندویه ده.




د آی خانم ښار نقشه، ۲۵ – لمبر عکس

## د آی خانم ښار د نقشې شرحه

A – سفلی ښار

B – علیا ښار

C – ارګ یا اکروپول

D – د آی خانم اوسنی کلی

E – کروندې

I – د سفلی ښار هغه ځای چې د کودرکو او خاورینو لوښو د پیدا کېدو اټکل پکښې سوی دئ.

II – هغه ځای چې د هستوګني اټکل پکښې سوی دئ.

III – د پهره دار ځای اټکل سوی دئ.

IV – په پرویله (چهلستون) کې یو محل اټکل سوی دئ.

V – د تیاتر د محل ګومان پر سوی دئ.

VI – د علیا ښار یو ځای چې د کودرکو او خاورینو لوښو د پیدا کېدو په منظور اټکل سوی دئ.

۱ – مرکزي جاده

۲ – د سفلی ښار د شمال ختیځې برخې دېوال (کلا)

۳ – د ښار لویه دروازه

۴ – د ښار فرعي دروازه

۵ – خندق (کنده)

٦ – د سفلی ښار د کلا پاته برخې

۷ – ۸ – پخوانۍ لاره

۹ – د سفلی او علیا ښارونو تر منځ د ګاډۍ لاره

۱۰ – د عیال ښار کلا

۱۱ – ۱۲ – دېوال

۱۳ – پخوانی کانال (مانده)

۱۴ – د ښار ځخه دباندې خرابې او ماتې

# ساکان، پارتیان او پهلوایان

د هخامنشي پاچهانو په کتیبو کي ولیده سوه، چي د ساکه قبیلې د آمو ها غاړي ته د پامیر په شاوخوا کي د هومه راوړونکو یاد ګړندیو ساکانو په نومو د هغو پاچهانو تر اداري لاندي اوسېدلې او د پارت (خراسان) له لاري د زرنګه = درنګیانه مځکي ته راتېري سوې او خپل نوم ئې سکستان = سیستان ته ورکړی وو او هم ئې د هندوکش په شمالي سیمو او باختر کي ژوند کاوه چي بیا له دې ځایه د لمر لوېدو او لمر ختو خوا ته خپري سوې او د دوی پېښې د آریانه د تاریخ برخه ګڼل کېږي.

موسیوهاکن پخپل کتاب کي چي (په افغانستان کي د فرانسې د لس کلنو کیندنو نتیجه) نومېږي وایي: "صحرانشینه ساکان تر عمومي مهاجرت دمخه په باختر کي یونانیانو ته راتله او د سرتېرو په ډول نوکران کېدل او د دوی ځیني مشران لوړو ملکي او عسکري رتبو ته رسېدلي ول، چي د هغو له جملې څخه هرایوس Heraius د یونانو باختري د وروستیو پاچهانو په تقلید سکه وهلې او دا سکه ئې هاکن په خلم کي موندلې وه. دا قبیلې له باختر څخه د هریرود ناوې او له هغه ځایه د هلمند او ارغنداو ناوو ته راشوه سولې او د پاچهی په جوړولو ئې لاس پوري کی چي د دوی د هیواد وېش د لمر ختو پلو ته د بولان ها خوا ته د سند تر ناوې پوري هم رسېدلی وو او هغه ئې (کي – پن) (Ki – pin) بللی دئ او د ساکه له دې قبیلو څخه چي د ارغنداو کنبته سند په ناوو کي اوسېدل یوه سړي چي مایوس Mayos نومېد د ۷۲ق م په شاوخوا کي د (بازیلیوزبازیلیون میګالیوس ملیوس) په عنوان یعني (لوی شهنشاه مایوس) سکه وهلې ده او د خپل هیواد وېش ئې تر تکسیلا پوري رسولی دئ، چي یوه کتیبه ئې په تکسیلا کي پر مسي غاب باندي کشف سوې ده او د (۷۸ ق م) نېټه لري، له دې څخه معلومېږي چي د ختیځ پنجاب د یوناني پاچهانو نفوذ د مایوس په لاس پرې سوی او پای ته رسېدلی دئ او اووه رازه سکې ئې په یوناني او خروشتهي لیکنو کشف سوي دي.

تر مایوس نامي وروسته د ده له پاتو کسانو څخه دوه نور هم د سکو له مخي پېژندل سوي چي یو ئې ازیس Azes (د ۵۰ ق م په شاوخوا کي) او بل ازیلیسیس Azilises دئ. دوی په یوه عصر کي اوسېدل او د دواړو پر سکو باندي په یوناني خط (لوی شاهنشاه) لیکل سوی دئ. داسي سکې هم لیدلي سوي دي چي د دواړو پاچهانو نومونه یو په یوناني خط او بل په خروشتهي لیکل سوی دئ (۲٦ لمبر عکس دي وکتل سي).

هغه وخت چي دا گرزوندویي کوچي قبیلې د آمو د بهېدو جنوب ته د باختر په سیمو کي د پکهت = پښت او پښتنو سره گډې سوې د ساکه نوم ئې په دې پښتنو کي پرېښوو، چي په زابل او کابل کي د پښتنو د سهاک قبیله او په هلمند کي ساکزي (سگزي) تر اوسه د دې نامه ریښه لري او د دوی نوري قبیلې په خراسان کي د هریرود له ناوې څخه د خزر د بحیرې تر کڅو پوري د پارت په نامه مېشته سوې او د دوی مځکه هم د دوی په نامه یاده سوه، او څنگه چي له خپل اصلي ټاټوبي باختر څخه د هریرود ناوې ته تر دامغان (د خراسان وروسته برخه) پوري تللي وې نو ځکه د ژوستن په قول د پارت په نامه مشهوري سوې چي پارت په سکائي ژبه تبعید سوي ته وایي او دوی هم له باختره هجرت کړی وو.

سراولف کرو انگرېز افغان پېژندونکی د گندهاره د ساکانو حکمرانانو په نومو کي د پښتو سره ډېر شباهتونه موندلي او لیکي چي د ساکي حکمرانانو نومونه پښتو ته نژدې دي: سپاله که دمه Spalaka-Dama (سپاله = سپاه) + (که – د تجلیلي تصغیر نخښه) + (دمه = جلال = برم) چي ټوله جمله د (مجلل سپاهي) په معنا ده.

بل نوم سپاله هوره Spala-Hura دئ: (سپاله = سپاه + هوره = اور) د اور د سپاهي یا د لمر د سپاهي او یا د رڼا د سپاهي په معنا.

همدارنگه د چستنه Chastana نوم همدا د پښتنو (څښتن) د مالک او خاوند په معنا دئ.

او که موږ پارت = پارثهوه د ژوستن په قول (تبعید سوی) او (مهجور) وبولو نو په پښتو کي ئې اوسنی شکل پردی Pradia یعني بېگانه او مهاجر دئ.

یا به د پښتو (پرته) Prata وي (د دریم حرف په زور کي) چي دغه هم د لیري معنا لري لکه چي وایي: له مخه مي پرته سه یعني لیري سه. یا پلانی پرتي وایي یعني له عقله لیري خبري کوي.



موئس سکایی



لومړی ازیس



ازیلیسیس

**٢٦ – لمبر شکل**

داسي ښکاري چي سیستان ته د ساکه قبیلو لومړني مهاجرتونه تر دې وختو ډېر پخوا پېښ سوي دي او د موسیوفوشه په قول لوی کوروش (د ۵۴۰ق م) د سیستان د نیولو په وخت کي دا (ساکان) د دوی د ښو خدمتو په سبب (ښه کړوني = نېکوکردار) وبلل (په یوناني ایویرگت Evergetes) او همدا خلک د (۳۳۰ ق م) په شاوخوا کي پر همدې مځکه اوسېدل چي سکندر هم دوی نازولي ول او ښه نرمه رویه ئې ورسره درلودله (د تمدن ایراني کتاب ته دي رجوع وسي).

د ۲۵ ق م په شاوخوا کي بلخي ارساس = ارشک = اشک د (فري یاپت) زوی د خپل وررو (تیرداد) سره د لمر لوېدو خوا ته ولاړ او د پارت یوناني حکمران فریکلیس ئې وواژه او د اشکاني سلطنت بنسټ ئې کښېښوو، او په یوناني او خروشتهي دواړو ژبو ئې سکه ووهله او خپل ځان ئې بازیلیوزبازیلیون (شهنشاه) وباله، چي منځته راتله ئې د ۲۴۹ق م په شاوخوا کي او پایتخت ئې اوسني دامغان ته څېرمه وو او د اشکاني پاچهانو سلسله ده ته منسوب ده او دی د سترابو په قول تر دوو داخلي جنگو وروسته د خپل نېزه وال له لاسه تېپي سو او د هغه تېپ څخه په ۲۴۷ق م کال مړ سو او په ۲۴۸ق م کال د ده زوی تیرداد د دوهم اشک په نامه پر تخت کښېنوست او ښه غښتلی مدیر پاچا وو، تر بابل پوري ئې فتح وکړه او د لمر ختو خوا ته د باختر شاوخوا ته ورسېد، خو د باختر یوناني پاچا دوهم دیودوتوس سره ئې د سیلیوکي دولت په مقابل کي روغه وکړه او د یووالي لاس ئې ورکی، دی چي زوړ سو مړ سو او پاچهي ئې له ۲۴۸څخه تر ۲۱۴ق م پوري وه.

## نور اشکاني نامتو پاچهان دا دي:

۳/ ارتبان: اردوان (۲۱۴ تر ۱۹۶ق م) د تیرداد زوی چي د ده په وختو کي دریم انتیوکوس پر پارت حمله وکړه او باختر ته راتېر سو.

۴/ فري یاپت د اردوان زوی (۱۹۶تر ۱۸۱ق م).

۵/ لومړی فرهاد د فري یاپت زوی (۱۸۱ تر ۱۷۴ ق م) د باختري دیمتریوس معاصر.

۶/ مهرداد د لومړي فرهاد وررور (۱۷۴تر ۱۳۶ق م) لوی او هوښیار پاچا وو، چي د باختري یونانیانو غربي ولایتونه او مرو ئې ونیول، اراکوزي او کابل او سند ئې خپل

لاس ته راوستل، او د پارت د هیواد وېش ئې د سند تر سینده ورساوه. خو سره له دې هم د ده حکومت مشروطه وو، د شورا دوه مجلسونه ئې درلودل چې د دوی پر غوښت ئې کار کاوه.

۷/ دوهم فرهاد د مهرداد زوی (۱۳٦ – ۱۲۷ق م) ده د ساکه قبیلې خپلې مرستې ته وبللې چې د انتیوکوس د یوناني دولت سره په جنګ کې د ده سره کومک وکي، خو ساکانو په چور او چپاو لاس پوري کی او فرهاد د دوی سره وجنګېد، څو چې فرهاد ووژل سو او پارتیانو ماته وکړه.

۸/ ارتبان (دوهم اردوان) (۱۲۷ – ۱۲۴ ق م) دی د دوهم فراد اکا او د فریاپت زوی وو، چې د دوهم فرهاد تر مړیني وروسته د پارت پر تخت کښېنوست دی د تخاري خلکو سره چې د باختر یوه برخه وه ونښت او په یوه جنګ کې د لاس پر موټ ټپي او له هغه څخه مړ سو، او پارتیان تر شا سول او همدا وخت وو چې ساکانو درنګیانه (سیستان) ونیو او هغه ئې په خپل نامه سګستان (= معرب سجستان) وباله او حتی د کابل تر نیولو وروسته د هند خوا ته هم تېر سوه او هلته ئې د هندوساکه یا هندوسیتهین دولت جوړ کی. همدارنګه ګرزندو صحرایائي سپین پوستو آریائي قبیلو (هون) د شمال له خوا یرغل وکی او د ۱۲۷ ق م په شاوخوا کي ئې باختر او تخار ونیو او د هغه ځای یونان ئې لمرخاته جنوب د کابل او سند خوا ته پر شا وشړل، او دا ټولي صحرائي قبیلې (ساکه، تخار، هون) د شمالي آریائي خلکو څخه وې چې د ژړ پوستو له توکم (نژاد) څخه نه وې، بلکي د دوی ژبه، څهرې، بڼې بېخي آریایي دي چې د تورفان کشف سوي آثار دا مطلب ښه څرګندوي.

۹/ دوهم مهرداد د ارتبان زوی (۱۲۴ – ۷٦ق م) لوی پاچا وو، چې پخپل ۴۸ کلني سلطنت کي پر ساکانو او سرکښو قبیلو باندي بریالی سو او د باختر او سیستان یوه برخه ئې ونیوله او د خپل سلطنت وېش ئې د همالیه غرو ته ورساوه.

خو لوی مهرداد د پارت د دولت پایتخت له خراسانه د دجلې غاړې ته یووی، او د ارمنستان او روم د دولت سره په جنګو بوخت پاته سو، نو ځکه تر هغه وروسته د پارت د دولت پېښې په آریانه اړه نه لري او زموږ د تاریخ برخه نه ده او د اشکانیانو له سلسلې څخه تر پنځمي میلادي پېړۍ پوري په ایران او ارمنستان او د لمر لوېدیځې آسیا په مختلفو برخو کي ډېر پاچهان پاچهی ته رسدلي دي، خو زموږ د هیواد او زموږ د هیواد

د خلکو سره ئې اړه نه ده درلودلې، مګر دا چې ځلرم اشک (ځلرم فرهاد) په ۳۳ ق م کال ظلم او تېرى وکى او خلکو پر هغه بلوا وکړه، دى د لمر ختو خوا ته وتښتېد او هغو ساکانو ته راغى چې په باختر او سیستان او رخج او نورو ځایو کې اوسېدل، او له دې ځایه بیرته خپل هیواد ته ولاړ.

د ساکانو او پارتیانو له ګډو څانګو څخه چې په جنوبي افغانستان او غربي هند کې ئې پاچهي کړې ده، یوه څانګه هم د پرتهوا = پهلوا څانګه ده چې د دې څانګې د سیاسي تشکیلاتو او ادارې لومړى ځاى سګستان او اراکوزي یعني د هلمند او ارغنداو ناوه ده او د دې څانګې د خلکو واکمني د میلاد په لومړۍ پېړۍ کې تر تکسیلا پورې رسېده او هغه وخت چې اپولونیوس Apollonios په ۴۳ – ۴۴ م کال د تکسیلا د لیدو له پاره راغى هلته له دې خلکو څخه یوه یوویشت کلن پاچا د فراوتیس Phraotes (فرهاد) په نامه پاچهي کوله.

مګر د سیستان او اراکوزي د پهلوا د خپلواکو پاچهانو د سلسلې مؤسس ونونیس Vonones نومېده او په سکو کې د لوى شهنشاه په عنوان یاد سوى او د ۱۲۰ ق م په شاوخوا کې ئې پاچهي جوړه کړې ده او سکې ئې په یوناني او خروشتهي خط دي او څنګه چې پر ځینو سکو ئې د خپلوانو او تابعانو نومونه هم لیکل سوي لکه (سپه له هوره) Spalahora ورور ئې او سپه له ګادمه Spalagadma وراره ئې او سپه لي ریزا Spalirisa بل ورور ئې، نو ځکه ویل کېداى سي چې د ساکه پهلوا د کورنیو افرادو په دې خاوره کې یو بل ته سره نژدې په یوه عصر کې په ګډه حکمراني کوله او د ونونیس دا خپلوان د هیواد په مختلفو ځایو کې د ده نائب السلطنه ګان ول (د ۱۱۰ ق م په شاوخوا کې) (۲۷ عکس). د دې سلسلې بل لوى پاچا ګندوفاریس Gandophares یا اندوفریس دئ (۱۹ – ۴۸ م) دى په سکو کې شهنشاه – ژغورونکى، نه ماتېدونکى او دیندارہ معرفي سوى دئ او هم د پېښور د لمر ختیز شمال د تخت بايي په کتیبو کې (۱۰۳ م) ګودوهره Guduvhara هم دا پاچا ګڼل سوى دئ چې له سیستانه تر سند او پنجاب پورې واک درلود او ځینو مؤرخانو د اوسني کندهار نوم پخوانى ګندوفار ده ته منسوب بللى دئ چې په دې نامه کې د (فر) تاریخي کلمه د برم او جلال په معنا سته او معنا ئې (برم ګټونکى) دئ او که موږ دا نوم په پښتو واړوو نو (ګونده فر) د اساسي جلال او برم معنا ورکوي او موږ وینو چې د آریانه د کوشاني پاچهانو پر سکو ئې د (فر)

توري هم ليکلي دي.

د لرغوني هند د سياسي تاريخ ليکونکي د تخت بايي د کتيبې له مخي د گندو فاريس د پاچهۍ وخت ۴۷ م کال ټاکلی دئ او وايي چي دا کال د مسيحي رواياتو سره هم سم دئ او په دې اساس نو دې پاچا مزدي (زردشتي) دين درلود، خو د حضرت مسيح شاگرد او په هند کي د هغه د دين مبلغ سنت توماس د ده دربار ته واستول سو او پاچا د مسيح دين ومانه چي په مسيحي روايتو کي د گندوفوروس په نامه ياد سوی دئ او له همدې سببه ده په ځينو سکو کي د خپل نامه سره د ديوه ورته Deva-Vrata صفت يعني دين دار هم ليکلی دئ.

د لرغوني هند په سياسي تاريخ کي ليکي چي: د گندوفاريس سره هم د ده ځيني خپلوانو په حکمراني کي گډون درلود، چي يو له هغو څخه د ده وراره ابداگاسيس Abdagases د افغانستان په جنوب کي، او له جنرالانو څخه ئې اسپاورمن Aspaverman او سسه (چچ) او له حکمرانانو څخه ئې سپيدنه Spedana او سته وستره Satavastra په تکسيلا کي وو.

د گندوفاريس تر مړيني وروسته د ده ارت هيواد د ده د پر ځای ناستو کسانو تر منځ پر کوچنيو برخو ووېشل سو (د ۵۰ م شاوخوا) چي د هغو له جملې څخه سنه باريس Sanabares په سيستان کي او پاکوريس Pakores او سسه په گنداره او لمر لوېديځ پنجاب کي حکمرانان ول، د دوی سکې په يوناني او خروشتي رسم الخطو له تکسيلا څخه لاس ته راغلي دي او د پهلوا له همدې شاهزادگانو څخه اورتاگنس هم د سکو له مخي پېژندل سوی دئ چي دی ئې همهغه گودا –گاد د گندو فاريس ورور بللی دئ، چي د ميلاد د لومړۍ پېړۍ په دوهمه نيمي کي ئې حکمراني کوله او د چارسدې په خروشتهي کتيبو کي ئې نوم (گادسا) دئ چي ځينو دا نوم د گندوفاريس د قبيلې نوم هم گڼلی دئ او په دې صورت کي نو د مهابڼ د لمنو د پښتنو (گدون) د قبيلې نوم هم را په يادوي چي د چچ (همهغه سسه) د مځکي په شمال کي پرته ده او عربي مؤرخانو دا نوم په (صصه) معرب کړی وو (۲۸ لمبر عکس ته دي رجوع وسي).



سيالي ريرس ۲۷ –لمبر شکل



گندوفارس ۲۸ –لمبر شکل

# کوشانیان

د (١٦٥ق م) په شاوخوا کې هغه قبیلې چې د آریایي ساکانو او سیتانو سره په وینه او توکم (نژاد) ګډې وې او د بڼې او څېرې او اوږدو پزو او نورو ځرګندو او ژبنیو خصوصیتو له مخې د لمر ختیځ شمال له آریایي نژاد څخه ګڼلې کېږي او چینیانو دوی یوچي Yueh-Chi بللي دي له خپل پخواني ټاټوبي څخه چې د شرقي چین خوا ته وو راوتلې او د آمو د سیند شمالي سیمو ته راغلې، دوی د هغه ځای ساکان په باختر کې د آریانه لمر ختیځو سیمو او د هندوکش جنوب ته وشړل حتی تر (١٢٧ق م) وروسته تر هنده پورې هم تر شا سول او ځای ئې یوچیانو ونیو.

په (١٣٨ق م) کې چې د چین امپراتور ووتي Wou-ti (۱۴۰ – ۸۷ق م) د هیوانګ نو د قبیلو له یرغلو او حملو څخه وربېږده، نو خپل یو سفیر ئې د چانګ کین Tchang-kien په نامه یوچیانو ته واستاوه چې د ده سره مرسته وکي، خو هغو کومک ورنه کی او د دې سفیر په قول د آمو په جنوبي سیمو یعنې باختر او بدخشان کې د تاهیا (تخار) خلک اوسېدل او د چین د یوه بل مؤرخ سیو- ماتسین Seu-Matsien (د ۹۰ ق م شاوخوا) له لیکنې څخه هم ځرګندېږي چې یوچیانو تر (۱۲۵ ق م) پورې لا د آمو په شمالي سیمو کې ژوند کاوه او د آمو جنوبي خوا ته لا را شوه سوي نه ول.

یوچي خلک د (۷۰ق م) په شاوخوا کې تر آمو راپورې وتل او د تخاریانو (تاهیا) په کومک ئې باختر ونیو او تر هغه وروسته د یوچي او تخار تر منځ ګډون راغی او یو غښتلی او ممتاز تکم (عرق) ئې منځته راووست چې د کوشي Kushi کوی شانګ = کوشان نامتو قبیله د دې خلکو له پنځګونو قبیلو څخه وه او د (کوچي) اوسنۍ کلمه په پښتو او دري دواړو ژبو کې د دې ریښې نمایندګي کوي. د چین د یوه مؤرخ د یادونې په اساس د کوشیانو مشر چې کیو – تسیو – کیو Kieu-Tsiu-Kiu نومېد د نورو څلورو قبیلو مشران ئې د ځان تابع کړه او پخپله دی (د کوی شانګ پاچا) په نامه وپېژانده سو او له همدې وخته د کوشان کلمې د یوچي ځای په تاریخ کې ونیو او د دې ټبر لومړی

نامتو پاچا د چین د لیکونکو په وینا همدا کیو –تسیو – کیو (= کوجوله کره کدفیزیس Kujula-kara-Kadphises (د ۴۰ م په شاوخوا کې) وو، چې پارتیا (خراسان) او کابل او کاپیسا ئې ونیول او د غزني په شاوخوا کې ئې د پوتا Pauta خلک هم د ځان تابع کړه چې د فرانسوي واله دوپوسن په قول دا خلک پښتانه ول.

دې کوشان شاه د خپلې پاچهۍ په اوږده موده کې وکولای سوه چې د یوناني او پارتي پاچهانو پایخوړ (بقایا) له منځه یوسي او د آریانه په ټوله خاوره کې خپل نفوذ ټینګ کړي او د افغانستان د خورا ستري امپراتورۍ بنسټ کښېږدي. دی د ۷۸م په شاوخوا کې په ۸۰ کلنۍ کې تر ۳۸ کالو پاچهۍ وروسته مړ سوی دئ او تر اوسه پوري یوازې د ده راز راز مسي سکې پیدا سوې دي، چې یوناني او خروشتهي لیکنې لري او د ده نوم په یوناني کې (کوزولاکده فیس) دئ چې د ده القاب ئې (دیندار، د آسمان زوی، شاهنشاه) لیکلي دي (۲۹ لمبر عکس دې وکتل سي).

د ستر کوشانشاه لومړي کده فیزیس تر مړینې وروسته ئې زوی دوهم ویمه کدفیزیس Wema-Kadphises د ۱۱۰ م تر شاوخوا پورې حکمراني وکړه او په ۸۰ کلنۍ کې وفات سو (۳۰ عکس) او دی لومړی کوشاني شهنشاه دئ چې د خپل هیواد وېش ئې د لمر ختو خوا ته د ګنګا تر غاړو پورې رسولی وو. خو څنګه چې ئې د چین د پاچا دربار ته خپل استازی (سفیر) واستاوه او د هغه لور ئې ځانته وغوښتله او دا غوښتنه ئې رد سوه نو په ۹۰ م کال ئې اویا زره سپاره د خپل نایب (سي Si) په مشرۍ د پامیر له لارې لمر ختیځ چین ته د یرغل له پاره ولېږل چې له چیني جنرال پان – چاو څخه ئې ماته وکړه او د چین امپراتور Ho-Ti هو –تي ته ئې کلنګ (باج) ورکی. مګر تر هغه وروسته ئې د رومن د امپراتور سره خپل روابط ټینګ کړل او په ۹۹م کال ئې خپل نمایندګان د روما د امپراتور تراجان دربار ته استولي ول او د هغه هیواد سره ئې تجارتي او فرهنګي روابط درلودل چې د ده د عصر په سکو کې د رومن د سکو جوړولو د هنر پېښې (تقلید) څرګند دئ او پر هغو باندې د ستر کوشانشاه دیوه پوتره Deva-Putra یعني (خداوندزاده) القاب لیده کېږي چې د فغ پور (فغفور) د لقب معنا ده. د ده مړینه د ۱۱۰م کال په شاوخوا کې ګڼلې سوې ده او تر ده وروسته په تاریخ کې ۲۰ کاله خلا سته چې په دې موده کې له لرغوني آثارو او سکو څخه تر اوسه د یو پاچا وجود نه دئ څرګند سوی او ځیني د سوترمیګاس (لوی ژغورونکي) سکې په دې خلا کې ځایوي، خو غالب



کورولا کدفیس ۲۹ – لمبر شکل



ویمه کدفیزیس ۳۰ – لمبر شکل

اټکل دا دئ چي دا سړی په هند کي دویمه نایب السلطنه وو.

په هر صورت د لویو کوشانیانو شهنشاهي د ۱۲۵م یا د ۱۴۴م په شاوخوا کي یو چا ته ورسېدله چي کنیشکه Kanishka نومېد او ښایي چي کدفیزیس د کورنۍ سره ئې د خپلوۍ او خپښۍ روابط هم درلوده، خو دی د یو لوی کهول مؤسس دئ چي د میلاد د دریمي پېړۍ تر منځ پوري ئې زموږ په هیواد کي پاچهي کړې او خپله واکمني ئې په هند کي هم پراخه کړې ده.

د کنیشکه د شهنشاهۍ مرکز په ژمي کي پوروشاپوره (پېښور) او په دوبي کي کاپیسه بگرام وو، چي د هیواد د لمر ختیځ وېش ئې د هند تر بنارس پوري رسېده او د لمر لوېدو خوا ته په پارت پوري نښتی وو او د شمال لوري ته ئې کاشغر او یارکند او ختن هم ونیول او د چین له امپراتوره ئې یرغمل واخیستل او بودایي دین ئې ومانه، او د آشوکا غوندي ئې د هغه دین تبلیغ او خپرېدلو ته ملا وتړله او د بودائیانو څلرمه لویه دیني جرگه ئې چي پنځو سوو پوهانو پکښې برخه اخیستې وه د کشمیر په سرینگر کي د هغو اختلافاتو د لیري کولو له پاره جوړه کړه چي د هغه دین د روحاني طبقو تر منځ پیدا سوي وه او څنگه چي په بودایي دین کي بدعتونه او فسادونه پېښ سوي ول او پر خپل اصالت پاته نه وو او هر پلو ته بېلي بېلي ډلي منځته راغلي وې نو په دې جرگه کي چي د کنیشکه د دربار پوهان او د گندهاره علماء هم پکښې ول او د اووم بودایي پېشوا د گندهاره د لوی عالم واسومیتره Vasumitra په مشرتوب جوړه سوې وه داسي فیصله وسوه چي د هینه یانه Hina-Yana (د کوچنۍ بگۍ – کوچني مذهب) لرغوني مذهب چي د بودا تر مړیني پنځه پېړۍ رواج وو تعدیل او اصلاح سي او دا مذهب چي د سپېڅلي تقوا او د نفس د تهذیب سپارښتنه ئې کوله د مهایانه Maha-Yana په لوی مذهب تعدیل سو، چي د ناگارجونه Nagarjuna نومي عالم له خوا ترتیب سوی وو. په بودایي لوی مذهب کي چي وروسته ئې په لمرختیځه آریانه کي هم رواج وموند د کوچني مذهب د اخلاقي سپېڅلو دساتیرو پر ځای داسي ښوول کېده چي یو سړی باید د بودیستره Bodhisattra روښانه سوي راتلونکي بودا مقام ته لوړ سي او هم د بودا پښې یا نورو نخښو ښوولو پر ځای باید د ده ټوله او بشپړه مجسمه لکه د آریانه نور ارباب انواع چي د یونانو باختري په صنعت کي رواج ول وپرستله سي او د هند د جنوبي ژبي (پالي) پر ځای دي د سنسکریت ژبه مذهبي ژبه سي او په همدې سبب پخواني کوچني

مذهب جنوبي مذهب، او مهايانه د شمال مذهب ګڼل کېږي او هغه وخت چې لوی کوشانشاه بودايي دين ومانه نو پر خپلو سکو ئې چې پخوا د آريانه نور ارباب انواع کښل د بودا بشپړ صورت وکښی او په دې صورت نو د لوی مذهب طرفدارانو وکولای سوه چې خپل ځانونه د کوچني مذهب څخه بېل کړي او په ماوراء الطبيعه مسئلو کي خپل عقايد او د بودائيت په عالم کي د ژوندانه دساتير خپاره او د خپلو نويو عقيدو تفسيرونه ترتيب کړي.

په هغه زمانه کي د کنيشکه تر دربار پرته بل داسي دربار چې په متبحرو پوهانو او عالمانو ډک وای نه سو پيدا کېدلای چې په هغه کي د لوی مذهب پر مؤسس ناګارجونه سربېره نور پوهان او دانشمندان هم ول لکه اسوه ګهوشا Asvaghosha د حماسياتو او هسکو ډرامو ليکونکی او د بوده چريته مؤلف او ساری پوتېره او پره کره نه او د طبي علومو ستر ليکونکی چره که او د دربار ديني مشاور پارسوا، او سنګهه رکشه او سدره سنه هغه مبلغ چي کنيشکه ئې بودايي دين ته واړاوه.

د کنيشګه په وختو کي د ده په ټول ارت هيواد کي خورا ډېر بودايي معبدونه او سنګهارامې وداني سوې چې له هغې جملې څخه د هيون تسنګ په قول يو د (شا – لو – کيا) معبد وو چې چيني يرغملانو ودان کړی وو او په هغه کي ئې د مهاکاله د لوی بت په پښو کي خزانه هم ښخه کړې وه چي که دا سنګهارامه ورانه سي بيرته ئې په هغو پيسو ودانه کړي او اوس د دې لوی بودايي معبد آثار بګرام ته دوه کيلومتره ورڅېرمه د شترک په لبوزي (پوزه شترک) کي ښکاره سوي او هلته انځور سوي وداني او ښکلي مجسمې له مځکي راوتلي دي.

د دوهم لوی معبد آثار چي کنيشکه خپل د ژمي ټاټوبی پېښور ته نژدې ودان کړی وو د شهرشاهي لمر ختيځ جنوب ته د ۱۵۰ فټه جګ معبد کنډوالې دي او هغه ئې په خورا عظمت د بودا د کچکول Patra-Chity د ساتني له پاره ودان کړی وو، د دې معبد په مربوطو ودانيو کي د اوو سوو په شاوخوا کي بودايي راهبان اوسېدل او د هيون تسنګ په قول دا کچکول وروسته کندهار ته وړل سوی وو (چي په ۱۳۰۴ش کال د کابل موزيم ته راوړل سو) او وايي چي د بودا دا کچکول په شپږمې ميلادي پېړۍ کي هغه وخت چي شاه کيپين (کابل) ګندهاره ونيو کندهار ته يووړه سو.

دې معبد ته نژدې سل فټه جګه د پيپل ونه ولاړه وه چي د هغه وخت د خلکو په

عقیده بودا د هغې ونې تر سیوري لاندي کښېنستلی وو او همدلته ئې د بودایي دین د روزونکي شهنشاه کنیشکه د زېږېدو پیشګویي کړې وه. همدارنګه کنیشکه د دې مقدسي وني جنوب ته یوه لویه ستوپه جوړه کړه چې د فاهیان په قول د ۴۷۰فټو په شاوخوا کي لوړه وه او په قیمتي جواهرو ښکلې سوې وه، چي اوس ئې آثار د پېښور جنوب ته نیم میل لیري د (شاه جي دهیري) په شپږ ګزه غولي کي پیدا سوي دي او دکتور سپونر په ۱۹۰۹م کال د هغې ستوپې له کنډوالې څخه یو فلزي انځور سوې سندوخچه کشف کړه، چي پر هغې د کنیشکه ولاړ تصویر کښل سوی وو او په سندوخچه کي د بودا مقدس آثار ول، چي د لارډ کرزن له خوا د برما بودایانو ته ورکړه سوه او د هغې سندوخچې یوه مهمه لیکنه داسي ترجمه سوې ده:

"د آګیسله Agisala خدمتګار د مهاسینه په سنګهارامه کي د کنیشکه د ویهارې د کار څارندوی". په هر صورت کنیشکه د افغانستان د کوشانیانو له سترو پاچهانو څخه دئ (۳۱ لمبر عکس ته دي رجوع وسي)، چي د ده د راتلو سره په دې خاوره کي د اداري یو مرکزي واک او د مدنیت او فکر پیدا کېده منځته راغله او څنګه چي د ده شهنشاهي ۲۲ کاله ګټل سوې ده نو ځکه د ده مړینه د ۱۵۱م په شاوخوا کي اټکلېداى سي چي په دغه وخت کي به دی د ختن په سیمو او د چین او سغد تر منځ په غرو کي مړ وي.

د کنیشکه تر مړیني وروسته د ده هیواد د ده د زامنو تر منځ ووېشل سو او واسیشکه Vasishka زوی ئې چي د هند په ماتوره کي نایب السلطنه وو د ده پر ځای کښېنوست، که څه هم د ده کمه سکه لاس ته نه ده راغلې خو ماتوره ته نژدې په یوه کتیبه کي چي د کنیشکه د سلطنت په ۲۴ کال لیکلې سوې ده او هم په دوو نورو لیکنو کي چي د ده د جلوس په ۲۶ – ۲۹ کلو پوري اړه لري د ده د زوی نوم لیکل سوی دئ او له دې څخه څرګندېږي چي دی د ۱۴۵ څخه تر ۱۶۰م پوري په هند کي حکمران وو او زوی ئې هم د کنیشکه په نامه یادېده او ده ته ئې دوهم کنیشکه وایه او اباسیند ته نژدې د آریه کتیبه کي د ده نوم په څرګند ډول په خروشتهي رسم الخط (واجشکه بوتره کنیشکه) یعني واسیشکه د کنیشکه زوی لیکل سوی دئ.

همدارنګه کنیشکه یو بل زوی د هوویشکه Huvishka په نامه هم درلود چي د کنیشکه د جلوس د ۳۳ کال په شاوخوا کي د ده د شاهنشاهۍ د شرقي ولایت حکمران



د افغانستان مقتدر کوشاني امپراتور، کوشانشاه – ستر کنشکا

۳۱ – لمبر شکل

وو، خو د جلوس د ۴۰ کال په شاوخوا کي (۱۶۹م) د مهاراجه دیوه پوتره (خداونده زاده شهنشاه) په نامه یاد سو او څرګنده ده چي تر دې دمخه ئې بشپړه خپلواکي نه درلوده، خو وروسته ئې سکه وهلې ده او داسي معلومېږي چي ده په هند کي او د ده وراره دوهم کنیشکه په آریانه کي پاچهي کوله، مګر د پاچهۍ په ۵۱ کال (د ۱۸۰م په شاوخوا کي) د هوویشکه نفوذ تر کابل پوري رسېده، لکه چي په هغه کتیبه کي چي د وردګو په خوات کي لاس ته راغلې ده دی د مهاراجه (شهنشاه) په عنوان باله سوی دئ او له بګرامه هم د ده ډېري سکې کشف سوي دي او په دې توګه د ده د هیواد وېش د لمر ختو خوا ته تر کشمیره او د هند تر ماتوره پوري رسېده او هم ده په ماتوره کي یو شاندار معبد په خپل نامه ودان کړی وو او هم د ده پر سکو په یوناني رسم الخط (شانن شا او ویشکي کوشان) یعني شاهنشاه هویشکه کوشان لیکل سوی او په کشمیر کي ئې د هوشکه پوره ښار ودان کړی دئ او د ده د مړیني کال ئې د ۱۸۲م په شاوخوا کي لیکلی دئ.

د دې کهول بل شهزاده واسوشکه Vasushka دئ چي په هندي آثارو کي ئې واسودیوه Vasu-Diva بللی دئ او ده په هند کي د ۱۸۲م په شاوخوا کي پاچهي کوله، خو آریانه ته ئې نفوذ نه وو رارسېدلی او پر سکه ئې په یوناني رسم الخط د (شاناناشا – یا شانن شاه = شهنشاه) عنوان سته او تر ده وروسته مو د دې کهول بل پاچا نه دئ پېژندلی.

د لویو کوشانیانو دوره د ۱۲۵م په شاوخوا کي د کنیشکه له جلوسه شروع او د ۲۵۰م په شاوخوا کي پرواسوشکه ختمېږي، چي په اټکلي ډول یوه پېړۍ او د پېړۍ ځلرمه سي. په دې دوره کي زموږ د هیواد ویدي او اوستایي لرغوني فکري او فرهنګي مبادي د هخامنشي، یوناني، هندي او بودایي مدنیتو د آثارو سره ګډ سوي او د شمالي توراني آریائیانو د ساکانو او سیتي تهذیبي عناصر هم پکښې داخل سوي دي او یو ډېر غښتلی افغاني فرهنګ ئې منځته راووړ، چي د دین او پرستني له مخي ئې بشپړه آزادي درلودله، د مقدس اور د مزدیسنایي آتشکدو سره بودایي ستوپې ولاړي وې چي په هغو کي بودایي مقدس آثار او متبرکات نمانځل او ساتل کېده او هم یوناني او هندي ارباب انواع په معبدو کي او پر سکو باندي ول او سره له دې چي کنیشکه او زامن ئې د بودایي دین ټینګ روزونکي او نمانځونکي ول خو بیا هم د کوشانیو په ټول ارت هیواد کي د نورو ادیانو معبدونه او نمانځونکي هم ول. مثلاً د بغلان د مهادژ په معبد کي چي

د کشف سوي کتيبې له مخي د کنيشکه په وخت کي جوړ سوی او بيا د ۱۶۰م په شاوخوا کي يعني د کنيشکه د جلوس د ۳۱ کال په پسرلي کي ئې ترميم کړی دئ د مقدس اور او د زردشتي معبد آثار پيدا سوي دي او د هغه معبد ترميم کوونکي نوکونزيکي نومېد او د ماريک Mariq له کورنۍ څخه وو او د فرانسوي محقق مريک په قول دا فاميلي نوم د دوو وروڼو د نامه سره د وردگو د خوات په خروشتهي کتيبه کي هم راغلی دئ، حال دا چي د بغلان د مهادڅ په معبد کي د اور نمانځني آثار او د خوات په کتيبه کي د بودايي دين نخښې ښکاره دي او دا معبد د کنيشکه د جلوس په ۱۵ کال (د ۱۸۰م په شاوخوا کي) ودان سوی چي د دواړو تر منځ بس ۲۰ کاله فاصله راغلې ده.

په هغه عصر کي د ديني عقايدو د آزادۍ بل مهر دا دئ: په تکسيلا کي چي د بودايي تهذيب مرکز وو، د آتشکدې د ودانۍ دېوالونه سته چي ۱۵۸ فټه اوږدوالی او ۸۵ فټه پلنوالی لري او د ستنو د جوړښت او معمارۍ سليقه ئې يوناني ده او دا ښکاره کړي د يونانيانو د باختري مدنيت تر خپرېدو وروسته جوړه سوې ده او پر دې سربېره هلته آتشکده، بودايي معبدونه او برهمني بودتون هم وو چي البته د هر دين پيروانو په آزادي سره د خپل دين مناسک پر ځای کول.

د ژبي او رسم الخط له مخي هم کوشاني فرهنگ ځکه غني وو، چي په سکو او د معبدو په کتيبو کي ئې يوناني او برهمني او خروشتهي رسم الخط استعمالاوه او بغلان د مهادڅ په کتيبه کي په پخوانۍ تخاري دري ژبه داسي مطالب ليکل سوي دي چي پښتو ته ډېر نژدې دي، خو په خروشتهي رسم الخط کي ئې د سنسکريت او پراکريتو ژبي هم استعمالولې او همدا رنگه د هغه وخت په افغانستان کي د برهمني خط نخښې هم ليده کېږي او هغه رسم الخط چي د کوشانيانو په عصر کي د يوناني الفبا له تغيره منځ ته راغلی ځينو څېړونکو پوهانو هغه (يونانو کوشاني) خط بللی چي تر ۹ ميلادي پېړۍ پوري لا وو او د کيڼي خوا څخه ښي خوا ته ليکل کېده او (۲۵) توري ئې درلوده (۳۲ لمبر عکس دي وکتل سي).

په هغو اسنادو کي چي د بغلان د سره کوتل د کوشاني او کنيشکه (د ۱۳۰م د شاوخوا) د معبد له کيندنو څخه لاس ته راغلي داسي ښکاره کړي چي کوشانيانو د دې هيواد د افکارو او فرهنگ او صنعت په جوړښت کي چي هغه ته د گريکو بوديک تر دورې وروسته د (افغاني فرهنگ) يوه ټاکلې او خاصه دوره ويل کېدای سي، ښې



د کوشاني عصر ليکلې کتيبه، سرخ کوتل-بغلان

۳۳-لمبر شکل




د تخاري دري ژبې توري، تر هغه ځايه چې د کوشاني ليکلو آثارو څخه تر لاسه سوي دي

۳۲-لمبر شکل

کارنامې ثرګندي کړي دي، او له هغه جملې څخه د شاه پرستۍ مخصوص آیین دئ چي د بودایي او زردشتي (د مقدس اور) د افکارو پاتو عناصرو سره ئې پخپلو معبدو کي د پاچهانو مجسمې او بتان هم ایښي دي او موږ د دې آیین پایڅوړ (بقایا) د اسلامي دورې په سر کي د غزني د بامیان د دروازې په مزګت کي ګورو چي د لویک د کهول وروستنی پاچا د خپل لوی نیکه لویک مجسمه د بت ماتوونکو مسلمانانو له بېرې د سپینو زرو په تابوت کي ایښې او په هغه مزګت کي چي پخوا د شاه پرستۍ خاص معبد وو په مځکه کي ښخه کړې ده او دا مطلب د غزني په تاریخ کي راوړه سوی وو.

فرانسوي موسیو فوشه وایي چي: "کوشاني صنعت د دې دورې له ابتکارو څخه بلل کېدای سي، ځکه چي د دې دورې د ستوپو نوعیت د آشوکا د زمانې له ودانیو څخه په ډېره آساني بېلېږي او د آشوکا ستوپې د ایران د فلاټ لوړو ته نه دي راغلي، خو د کنیشکه او د ده پر ځای ناستو کسانو ستوپو په آسانۍ سره هند ته لاره پیدا کړې ده او حتی د نوي پایتخت پوروشاپوره (پېښور) د لمرخاته جنوب په شاوخوا کي د کوشان امپراتور خورا لوی بودتون ودان کړی دئ".

دکتور هرمان ګویتز چي د هند په باب کي د څېړنو المانی استاد دئ د کوشاني دورې د هنر په باره کي وایي:

"یوناني هنر د هندي هنرو شکل ته تغیر ورکی او د ګندهارا د مدرسې د آرت بڼه ئې پیدا کړه، خو دې هنر ته باید لږ د یوناني او بودایي طرز پراخوالی وویل سي، بلکي اصلاً د ایران د لمرختو خوا (آریانه) د طرز پراخوالی دئ چي ورسره سم ئې د شرق جنوب د ساکانو د قبیلو او کوشانیانو تر حکمرانۍ لاندي پراختیا موندلې ده او حتی تر ۳ – ۴ م پېړۍ پوري لکه د کشمیر دهروان په معبدو کي چي لیده کېږي یو بېخي خالص هنر پاته سوی او د دې خلکو یرغل د یونان او بلخ او هند دولتونه له منځه وړي دي او داسي هنر ئې منځته راوړی دئ چي د اېران د فلات په لمرختیځ شمال اړه لري او د لمر لوېدیځ ایران او هخامنشي له هنر څخه اخیستل سوی نه دئ".

په دې ډول نو د افغانستان د کوشاني دورې مدنیت د دې خاوري یو خاص تمدن او په دې هیواد کي زېږېدلی فرهنګ دئ چي د ودانۍ جوړولو، هیکل توږلو، مجسمه جوړولو، ژبې، سکې وهلو او کالو اغوستلو د هنرو له مخي بېخي افغاني خصوصیت لري، د مثال په توګه د دې پاچهانو پر سکو سره له دې چي په یوناني یا خروشتهي او

هندي ژبو او رسم الخطو ليکني سوي دي خو بيا هم د دري تخاري ژبي کلمات چي د همدې اوسنۍ ژبي مور ده هم ليده کېږي لکه شاه (= شاه) او شاناناشا (= شهنشاه) او فر (= برم او عظمت) چي د پخوانۍ دري ژبي کلمات دي او د کوشاني مدنيت ډېر ښه ښکارندوى د بغلان د نوشاد د مهادڅ مندر (معبد) کنډوالې دي چي په سره کوتل کي له مځکي څخه راوتلي دي او د زردشت د مقدس اور د نمانځني خورا لوى ځاى وو او هلته ليکني او مجسمې او سکې او د پخوانيو ودانيو او دوهې (آتشگاه) آثار کشف سوي دي.

په دې لرغوني معبد کي پر ډبره باندي ليکل سوى د يوه مضمون درې نسخې لاس ته راغلي، چي اصلي او يقيني نسخه ئې د معبد د پورتنيو کنډوالو له خاورو څخه راوايستله سوه او دا يوه هواره شاخه ده چي چپه اړخ ئې ۱۲۷ سانتي متره او راسته اړخ ئې ۱۱۰ او پورتنى اړخ ئې ۱۳۲ او لاندينى اړخ ئې ۱۲۵ سانتي متره دئ او پر هغې باندي (۲۵) ليکي چي (۹۴۷) شکسته يوناني توري او (۱۶۰) کلمې لري ليکلي سوي دي (۳۳ لمبر عکس دي وکتل سي).

د معبد په کښته پوړ کي ئې د يوه لوى څاه کنده موندلې ده چي دېوالونه ئې په منظم ډول په ډبرو راپورته سوي او د دېوال د دې ډبرو تر منځ د مسطحو ډبرو ټوټې پيدا سوي دي چي پر هري ټوټې په همهغه شکسته يوناني رسم الخط ليکني وې او څنګه چي د ډبرو دا ټوټې څنګ پر څنګ سره کښېښوولې سوې نو څرګنده سوه چي د دې ټوټو ليکني د ځينو کلمو په لږ املايي اختلاف همهغه د پورتنۍ شاخې مضمون وو او د ډبرو دا ټوټې ۲۱ ټوټې وې چي په مختلف بر او اوږدوالي د کتيبې دوهمه نسخه ځني جوړېږي او ۲۷ ليکي لري، چي د خط او املا د ښکلا له مخي دوهمه درجه ګڼل کېږي، خو دريمه نسخه د ډبرو پر ۳۲ ټوټو په (۲۷) ليکو کي ليکلې سوې ده، چي رسم الخط ئې ډېر بې تناسبه او ناوړه دئ او په املا کي هم ځيني کلمات د هغو دوو نورو نسخو سره توپير لري او دا چي دا (۵۳) ليک لرونکي د ډبرو ټوټې ئې ولي د څاه په دېوال کي کار کړي دي؟ د دې پوښتني جواب تر اوسه څرګند سوى نه دئ او دا درې سره نسخې د کابل په موزيم کي سته.

د کتيبې له مضمون څخه څرګندېږي چي د بګ لنګ (بغلان) اصلي باني کنيشکه وو (د ۱۳۰م په شاوخوا کي) او دې نامتو راوبريمن بګ شاه (لوى پاچا) د بغلان ماليز

(مهادژ او مندر) (معبد) ودان کړی وو، چي هغه ئې نوشاد هم باله، خو د کنیشکه تر مړیني وروسته (د ۱۵۱م په شاوخوا کي) د دې معبد اوبه وچي سوې، نو ځکه د مقدس اور نمانځونکي له دې ځایه ولاړه او معبد ئې پرېښوو، ځو چي د کنیشکه د عهد د ۳۱ کال د پسرلي د حمل (نیسان) په میاشت (د ۱٦۰م په شاوخوا کي) هغه وخت چي شاه بغپور لویک بوسر د شپږو گرگ اروابناد (مرحوم) زوی د کوشاني شهنشاهۍ تر اثر لاندي په دې هیواد کي حکومت کاوه د هغه وخت یو سړی چي نوکونزوک نومېد او د خداوند او ایومن نو بخت (پاچا او د هغه د وزیر) په فرمان ئې د ماریگ د کورنۍ د کنارنگي منصب درلود او د نوموړي لویک بوسر له خوا فریستار آب (د اوبو رسولو مامور) وو، بگ لنگ ته راغی او د هغه نوشاد او مندر د بیرته ودانولو په غرض ئې ځاه وکینده او د هغه بنسټ ئې په ډېرینو خښتو کنېښوو او په هغه پوري ئې یو ارت غولی هم ومښلاوه، چي تر اوبو پیدا کېدو وروسته د نوشاد معبد بیا استوگن او ودان سو، او د اور پرستونکي هلته راغونډ سول.

د کتیبې په پای کي ځو تنو چي د هغه مندر په بیرته ودانولو کي ئې برخه اخیستې وه لاسلیک کړی دئ چي نومونه ئې دا دي:

بورزومهر، کوزگاشکي پور، نوکونزیکي کنارنگ ماریگ ایمن نوبخت، مهره من، بورزومهر پورا مهره من.

هغه ژبه چي په یوناني رسم الخط د دې مهمي تاریخي ډبري په لیکنه کي کار ځني اخیست سوی دئ بې له شکه د همدې اوسنۍ دري ژبي پخوانی شکل دئ چي د گڼو تورو او گڼ گرامر د استعمال له مخي د پښتنو سره خورا زیات نژدېوالی لري. د مثال په توگه: آب – فریستار آب (د اوبو رسولو مامور)، شا (شاه)، بگ لنگ (بغلان)، بگ شاه (لوی شاه)، مالیز (مهادژ)، انند (په پښتو کي د بهره ور په معنا)، ساد (ځا)، ناموبرگ (نوموړی = نامور)، کرد (د کاف په زېر د کردن – کړني له مصدر ځخه د ودانولو په معنا)، فروگرد (پوره کرد = پوره کړ، تمام کرد)، تادی (په پښتو کي د تلوار په معنا)، ستا د (د لومړي توري په سکون = ایستاد)، ایر (د آتشگاه په معنا چي په وزیري پښتو کي هم تر اوسه [ایر] د [اور] په معنا دئ او ایرې خاکستر ته وایي)، فري (فرا)، خودی (خدای)، بگ پوهر (فغفور)، الو (په پښتو کي اروا)، ایوگ او دوهیرس (= یودیرش)، نیسان (حمل)، ما (ماه = میاشت)، مال (په پښتو کي مهال د وخت په

معنا دئ) کند (د کندن = کیندل مطلقه ماضي)، نوشال (نوشاد)، فرومان (د لومړي توري په سکون = فرمان).

د فرانسوي هیئت د کیندنو پوهان وایي چي: دا لوی او له برمه ډک معبد په وروسته زمانو کي د خورا مدهش اور لګېدو په اثر نړېدلی دئ لکه چي د ودانۍ په مرکزي شبستان او کوشکنو او برنډه کي د ایرو پنډي طبقې سته او هم د نوشاد په دواړو آتشکدو اصلي او فرعي کي د اور لګېدو نخښي لیدلي کېږي او باید دا اور د (۲۴۰م) په شاوخوا کي د ساساني لومړي شاپور د فتوحاتو په وختو کي په قصدي او عمدي توګه لګېدلی وي.

د نوموړي کتیبې له کتني او څېړني څخه دې نتیجې ته رسېږو چي په لومړۍ او دوهمه میلادي پېړۍ کي دري ژبه په همهغه لرغوني شکل په تخارستان او کوشاني دربار کي د لیکلو او دفتر ژبه وه، حال دا چي په همدغو وختو کي په لمر لوېدیز او شمالي ایران کي په پهلوي ژبه خبري کېدلې او هم دیني او درباري ژبه وه. په یوه وخت او د شرق او غرب په دوو دربارو کي د دوو ژبو له دې نژدېوالي څخه پوهېږو چي دري ژبه له پهلوي ژبي څخه زېږېدلې نه ده او له غرب څخه شرق ته نه ده راغلې، بلکي د افغانستان وطني ژبه ده او د پښتو سره ئې ریښه یوه او نژدې ده.

څنګه چي د یوې ژبي د پیدا ایښت مرحلې په آني او ارتجالي توګه نه دي نو باید وویل سي چي پخوانۍ دري ژبه د ساکانو او کوشانیانو تر مهاجرت دمخه هم په تخارستان کي وه، خو د یونانیانو د تسلط سره یوناني ژبه پر دمخه سوه او د سکندر د اخلافو د دربار او دفتر او سکې ژبه وه او هغه وخت شمالي آریایي نژاده قبیلې د آمو له سینده راپوري وتلې او په تخارستان او باختر کي مېشته سولې او بیا ئې ټوله آریانه تر لاس لاندي کړه، دغه وخت به نو دري ژبه د دربار او لیکني ژبه ګرځېدلې وي، چي همدا کتیبه د هغې رسمي موقعیت او شهرت ثابتوي.

# د کوشانيانو پايڅوړ او د هپتاليانو منځته راتله

د کنيشکه پاته کسانو د ۲۲۵م تر شاوخوا پوري حکومت وکی او بودايي دين هم په دې دوو پېړيو کي بېخي رواج سو او زيات پر خپرېدو وو. خو د دې دين منفي او فنايي روحيې د کوشانيانو د عسکري توب او د هغه قوت سره جوړښت و نه کی چي د لښکرو پر موټو او فتوحاتو ئې تکيه درلوده او همدا روحيه د ساساني قواوو په مقابل کي د کوشانيانو د ماتي سبب سوه، ځکه نو خلک له دې دين څخه واوښتل او بيرته خپل برهمني دين ته وګرځېدل او حتی د اګني پورانه په قول هندو مفکرانو د کوشانيانو له پاره بودايي دين منل د هغو د پاچهۍ د زوال موجب بللی وو.

په ۲۲۶م کال اردشير بايکان د ساسان لمسي په پارس کي يو ډېر غښتلی سلطنت جوړ کی او د ده تر مړيني وروسته ئې زوی شاپور په ۲۴۰م پر ځای کښېنوست او داسي معلومېږي چي د ساساني سلطنت وېش تر پېښوره رسېدلی او دا ښار اردشير د ۲۳۰م په شاوخوا کي نيولی وو.

د شاپور په کتيبه کي چي د ۲۶۰ – ۲۷۳م تر منځ د پارس په نقش رستم کي کينلې سوې ده د پشکي باوره (پېښور) ښار د ساساني پاچهۍ شرقي وېش بلل سوی او هم د ابګان Abgan کلمه ياده سوې ده چي بې له همدې اوسني (افغان) څخه به بل څه نه وي. ځنګه چي دو اسوديوه د ۲۲۶م کال کتيبه هم لاس ته راغلې او دا د هغه پر برهمنۍ دلالت کوي. نو ځرګنده ده چي د کوشانيانو پايڅوړ (بقايا) بيرته برهمني دين ته اوښتي ول او په همدې وختو کي ساساني نفوذ تر پېښوره رسېدلی وو چي د دوی په تعبير هغه وخت ئې د افغانستان هغو سيمو ته چي تر ساساني نفوذ لاندي وې (کوشان شهر) وايه او د ۲۶۵م په شاوخوا کي دې ساساني حکومت تر هغه وخته دوام درلود چي سپينو هونانو له تخارستانه خپل فتوحات د هندوکش جنوب ته تر زابل او تر سند او کشميره خپاره کړه.

مګر هغو شهزادګانو چي د کوشاني نسل پايڅوړ ته منسوب ول د واسوديوه ۱۴۵ – ۱۷۶م تر عصر وروسته د آريانه په ليري غرو او رغو کي حکمراني کوله، چي ځينو د

اسلامي دورې تر درو سوو کلو پورې هم په دې هیواد کي خپل موجودیت ساتلی وو او یوه له دوی څخه خپله لور دوهم ساساني هرمزد ته ۳۰۱ – ۳۰۹م ورماندینه کړې وه او د هندي منابعو سره سم دیوه پوتره، شاه شاهانو شاهي کوشاني خورا ښکلي سوغاتونه د هند سمودره گوپتا ته استولي ول (د ۳۲۵م په شاوخوا کي). د کوشاني پایڅوړ له دې شهزادگانو څخه یو شهزاده چي کیداره Kidara نومېد د څلرمي میلادي پېړۍ په منځ کي پر گندهاره تر کشمیره حکومت کاوه (۳۴ لمبر عکس)، چي په همدې نامه څو نور کسان هم پېژندل سوي دي او د چیني منابعو په اساس د هغو پایتخت هم پېښور وو او دوی په چیني نامه (کي –نو –لو) بلل کېده او د ژوان ژوان د قبیلو سره ئې جگړه درلوده او له باختره وتلي په کابل او گندهاره کي ئې یو سلطنت جوړ کړی وو او د دوی په وختو کي د ښیښې جوړولو صنعت د آریانه د سوداگرو په واسطه په چین کي ترقي کړې وه.

د کیداره له سکو څخه داسي څرگندېږي چي په لومړي سر کي تر ساساني اغېزې لاندي وو او وروسته خپلواک سوی دئ او د دې سلسلې دوهم پاچا (پیرو) نومېد چي د (کیداره) زوی وو او د ساساني واکمنۍ تر اغېزې لاندي ئې سکه وهله او د ده سکې په برهمي او پهلوي دواړو خطو سته او له دې څخه معلومېږي چي په همدې وختو کي د ساساني مدنیت نفوذ خپور سوی وو او د ساساني وخت پهلوي خط رواج درلود.

مارکوارټ الماني څېړونکي د رومن د یو منصبدار په حواله وایي چي: ساساني دوهم شاپور د ۳۵۰ م او ۳۵۸م تر منځ د خیونیانو او کوشانیانو سره چي په کابل او زابل او تخار او باختر کي اوسېدل نښتي او جگړې کړي دي او د دې قبیلو مشر گورمباتس Grumbates وو چي شاپور په ۳۵۸ م کي ورسره روغه وکړه او دې قبیلو د رومنیانو په جگړه کي د شاپور سره مرسته کوله، او داسي اټکل کېدای سي چي د ۳۵۶م په شاوخوا کي کابل د شاپور لاس ته ورغلی وو، ځکه چي په همدې کال د کابل قاضي القضاة (سلوک) په تخت جمشید کي یوه کتیبه لیکلې او په هغه کي دعا کوي چي شاپور دي کابل ته روغ رمټ راوگرځي او له دې څخه څرگندېږي چي په دې کال ساساني شاپور د گندهاره په ولایت کي د کیداریانو سره جنگېده چي دا سیمه ئې تر ۳۵۶م پخوا نیولې وه او کیداره په گندهاره کي سکه وهلې ده، چي د کنیشکه د عهد په ۲۳۹ کال د ۳۶۷م په شاوخوا کي وه.

د کیداریانو نفوذ تر تالقانه او مرو رود تر ناوې پورې رسېدلی وو چي په دې ځای

کې ئې د بهرام د زوی دوهم یزدگرد سره ۴۳۹ – ۴۵۷م چې ساساني پاچا وو، جګړه وکړه او شا ته ئې وشاړه او دا پاچا د خپل ژوند تر پایه په همدغه جګړه کې اخته پاته سو او تر ده وروسته ئې زوی پیروز (۴۵۹ – ۴۸۴م) زیار ویوست چې کیداریان د ځان تابع کې، خو دوی ورته ټینګ سوه، په دې وخت کې پاچهي کنګ خاس Kangkhas د کیداره زوی ته رسېدلې وه چې ساساني پاچا د خپلي خور د ورکړې سره هغه ته د روغي پېشنهاد وکی خو بریالی نه سو، او کنګخاس هم ګندهاره ته راوګرځېد او د کیداریانو پایتخت په اول کي کاپیسا وو چې بیا وروسته د نورو قبیلو د فشار په اغېزه پېښور ته یووړه سوه او د دوی د سپینو زرو او مسو سکې لاس ته راغلي دي چې د کیداره پر خول نوې میاشت لیده کېږي او بېره نه لري، غوږوالي ئې په غوږ دي او په برهمي رسم الخط ورباندي (کیداره کوشان شاه) لیکلی دئ او د سکې پر بل مخ یوه آتشکده د دوو ساتندویو سره چې د هر یوه توره په لاس کي ده ښکارېږي.

د کیداري بل پاچا چې د ۳۷۵م په شاوخوا کي په پېښور کي د پاچهۍ پر تخت کښېنوست همهغه (پیرو) دئ چې د ده په سکه کي نیم تنه تصویر او د پاچهۍ د نخښي فیته د دوو ښکرو سره چې ښي او کیڼي خوا ته کاږه دي لیده کېږي، کوچني بریتونه لري او د بېري په ورېښتانو ئې مرغلري ځړېږي، غاړګۍ او غوږوالي لري او پر اوږو ئې دوپټه هم سته او په برهمي رسم الخط ورباندي (پیروشا) لیکلي دي او د سکې پر شا یوه آتشکده د دوو توره لرونکو ساتندویو سره لیده کېږي او د کیداریانو له ټولو کشف سوو سکو څخه څرګندېږي چې دوی بودایان نه ول، بلکي د اور پرستۍ دین ئې درلود او د (پیروشاه) له کلماتو څخه ښکاره ده چې د دوی ژبه همهغه د بغلان له معبد څخه د کشف سوي کتیبې پخوانۍ دري ژبه وه (۳۵ لمبر تصویرونه دي وکتل سي).

تر پیروشاه وروسته بل کیداري پاچا ورهران Varahran (بهراء) هم حکومت کړی دئ چې سکې ئې کټ مټ د پیروشاه سکو ته ورته دي او قوي احتمال دا دئ چې د بامیان شیران او د غرجستان شاران چې تر اسلامي عصره پوري ئې د افغانستان په زړه کي حکومت کړی دئ د همدې کیداري کهول پایڅوړ دي وي چې ناصر خسرو قبادیاني هم د غزنویانو په عصر کي ویل:




استاده بد به بامیان شیری
بنشسته بعز در بشین شاری



کیداره، د ګنداري
خاندان مؤسس
۳۴ – لمبر شکل



ورهران کیداري



شیر بامیان
۳۵ – لمبر شکل

# هپتالیان

د پنځمي میلادي پېړۍ په سر کې د کوشانیانو او کیداریانو پایښور خپل قوت د دوو لویو امپراتوریو تر منځ چې لمرخاته ته د هندي گوپتایانو امپراتوري او لمر لوېده ته د پارس د ساسانیانو شهنشاهي وه بایلود، خو د خپلې ازادۍ او ملي موقعیت د ساتنې له پاره ئې د دې دواړو قوتو تر منځ خپل موجودیت په غرو کې ساته.

د ۴۲۵م په شاوخوا کې د آریایي نژاد سپین رنگو قبیلو چې چینیانو (ئې تي –لي – دو) او یونانیانو او رومیانو افتهالیت Ephthalites یا خیونیت Chionites او پارسیانو خیون یا هون Hion یا Hun او په پهلوي او عربي او دري ژبو کې ئې هیتال یا هیطل یا هیفتال یا هیاطله او د سنسکریت په هندي منابعو کې ئې شوته هونه (سپین هونان) بللي دي، د مرکزي آسیا له مځکو څخه د هندوکش شمالي سیمو تخار او باختر ته د آمو تر سیند راپوري وتلې چې چینیان دوی له پردو هیونگ – نو څخه بېخي جلا بولي او هم بیزانسي مؤرخ پروکوپیوس ئې چې د هپتالیانو معاصر او په ۵۶۲م کال مړ دئ دوی په دې سبب له ژړ پوستو وحشیانو څخه بېل بولي چې د دوی بڼه سپینه او هم تر هغو مهذب ول او حتی د چیني مؤرخانو په قول د دوی ژبه هم مغولي یا ترکي نه وه او ښایي چې د ترکي او آریانه له لهجو څخه یوه گډه ژبه وي چې د خان = هون نوم ئې له همدې گډون څخه اخیستی وي او اصلاً همهغه یو – چې دي.

دې هپتالي خلکو په ۳۶۰م کال له شماله د جنوب خوا ته حرکت کړی وو او څنگه چې کوشاني کیداریان د دوی د حملې په خطر پوه سوه نو د ساسانیانو څخه ئې مرسته وغوښتله خو ورته ټینگ نه سوه او څنگه چې وویل سوه د گنداره سیمو ته پر شا سول. خو هپتالیانو چې نوم ئې د بدخشان په یفتل او د غزني د چغتو په هفتاله کې تر اوسه پاته دئ تر ۴۲۵م پوري باختر ټول ونیو او له دې ځایه ئې د لمر لوېدو خوا ته ساساني دولت ته خطر پېښ کی او د جنوب شرق پلو ته ئې د کابل او گندهاره او زابل سیمې ونیولې او د افغانستان غښتلي هپتالي دولت ئې جوړ کی.

هپتاليان هم لکه کوشانيان او کيداريان او ساکيان د دې هيواد د نورو آريايي نژادو خلکو او پښتنو سره ګډ سول او څنګه چي دوی په خپله هم سپين نژاده آريائيان او آريايي ژبي او د آريايي فرهنګ خاونده ول نو په افغانسان کي ئې يو غښتلی او واکمن نژاد منځته راووست چي د دوی د پاچهانو جګي پزي او بڼې کټ مټ د پښتنو قبيلو زلميانو ته ورته دي او د دې نامه ريښې په تاريخ کي په لاندي ډولو په مختلفو ژبو کي پاته دي، چي داسي اوښتني لري:

هپتل = افتهاليت (يوناني)

هبتل = ابدل

هوتل = اودل (پښتو)

هيتل = هيتال (دري) = اتل (پښتو)

هيطل (معرب) = هيطال

هياطله (جمع معرب)

هفتليان په ټول افغانستان کي له مرو څخه تر کشميره خپاره سول او دلته ئې ډېر قوت وموند.

د ۵۱۵م په شاوخوا کي د هفتاليانو لويه امپراتوري پر دوې برخي ووېشله سوه، چي لمر ختيځه برخه ئې په هنداو ګندهارا کي وه او لمر لوېديځه برخه ئې له کابله تر مرو او ګرګانه اوږده وه، چي د غربي هپتالي لښکرو لومړی نښته په ۴۲۷م کي د پارس د ساساني پاچا بهرام ګور سره وه او هپتالي خاقان د خپل دوه سوه پنځوس زره لښکر سره د مرغاب او مرو رود په سيمو کي د هغه سره وجنګېد، چي په دې جګړه کي ئې ماته وکړه او ووژل سو او بهرام ګور د هغه مرصع او زرين خول د آذربايجان آتشکدې ته اهداء کی او خپل ورور نرسي ئې د غربي آريانه د سيمي نائب السلطنه وټاکه.

په ۴۳۸م کال د بهرام ګور زوی دوهم يزدګرد پر ساساني تخت کښېنوست او دی څو واره د هغو هفتاليانو سره چي د ګرګان د شمال په چول او په تالقان کي اوسېدل ونښت، خو په پای کي ئې ماته وکړه او په ۴۵۷م کال مړ سو او تر ده وروسته چي لومړی فېروز (۴۵۷ – ۴۸۴م) پاچا سو، د هياطله وو مشرتوب هغه چا ته رسېدلی وو چي اخشونوار (خشنواز) يا اخشوان نومېد او دا وروستی کلمه تخاري کتبيو او سغدي متنو کي د پاچا په معنا ده. هپتالي (يفتلي) او ساساني دولتونه د خراسان په شمال کي

سره ونښتل چي په نتيجه کي فېروز مات سو او د تالقان سيمه ئې دوی ته پرېښووه او د اشخوان سره ئې تړون وکی چي د پارس دولت به تر دې وړش تېری نه کوي او تر دوو کالو پوري به پارس هپتاليانو ته خورا زيات کلنگ (خراج) ورکوي او د پارس د يدشاه زوی کواذ (قباد) به هم د يرغمل په توگه ورکي.

خو پېروز د دې تړون پر خلاف تر څه مودې وروسته پر هپتاليانو يرغل وکی او په دې حرکت کي شپهبد بهرام ورسره موافق نه وو هغه وو چي د پارس سپايان د خراسان د شمال په بيابانو کي تباه سول او پخپله پېروز هم ووژل سو (۴۸۴م) او لور ئې د اخشوان لاس ته ورغله چي هغه ئې ماندينه کړه او د هپتاليانو واکمني له مرو روده تر هراته خپره سوه او ساساني دولت ئې باج ته غاړه کښېښووه.

په دې توگه اخشوان وکولای سوه د آريانه د خاوري يووالی د هريرود له مجرا څخه د کابل او هلمند تر ناوو پوري ټينگ کړي او يو داسي غښتلی دولت منځته راولي چي د پارس ساسانيانو ئې خراج ته غاړه ايښې وي.

هغه وخت چي د هپتاليانو پاچهي په ټوله آريانه کي ټينگه سوه، د دوی قبيلې په زابل کي رايوځای سوې نو د زابلي پاچهانو په کتيبو کي هپتاليانو ځانته جابوله Jabula يا جيوولهJauvla يعني زابلي ويلي دي.

د پېروز تر وژلو وروسته ئې ورور ولاش (بلاش) پاچا سو، خو تر څلورو کالو وروسته د ده د وزير زرمهر په زيار د پاچهۍ له تخته راپرېووت او ړوند کړه سو او په ۴۸۸م کال کواذ (قباد) د پېروز زوی چي د شهزادگۍ په دوره کي د هپتاليانو سره د يرغمل په توگه پاته وو او د دوی سره ئې دوستانه روابط درلوده د ساسانيانو پر تخت کښېنوست او د ايران دولت هپتالي دولت ته خراج ورکاوه لکه چي د ولاش او کواذ او لومړي خسرو پر کشف سوو طلايي سکو باندي په کوشاني هپتالي رسم الخط ليکني سته او د مارکوارټ په قول (په ايران شهر ٦٢ کي) دا سکې خاص هپتاليانو ته د خراج د ورکولو له پاره وهلي کېدلې.

د هپتاليانو روابط د کواذ سره دوستانه ول او حتی هغه پېغله چي د هپتالي اخشوان له ملا او د پېروز د لور له نسه وه د کواذ ماندينه سوه، او څنگه چي د کواذ پاچهي مخالفو عناصرو وربړوله او دی ئې د مزدکي دين د منلو په سبب خلع کی او د ده ورور زمياسپ ئې په پاچهۍ ومانه نو کواذ د افغانستان هپتالي دولت ته پناه راوړه او

په ۴۹۹م کال د هپتالي لښکر په مرسته بيرته د پارس پر تخت کښېنوست.

لوی هپتالي اخشوان تر ۴۶۰م وروسته د خپلې پاچهۍ په نيمي پړۍ کي چي (۴۰) ايالته ئې درلوده او د پارس له مځکو څخه نيولې د ختن او چين او هند پوري خپره وه د لمر لوېدو خوا ته ئې د ساسانيانو غښتلې پاچهي تر لاس لاندي کړه او لمرخاته پلو ته ئې د هندگوپتايان پر سر ټکولي ول او ساساني پاچهان بلاش کواذ او نور ئې د ځان تابع کړي او خراج ئې ځني اخيست، تر اخشوان وروسته هپتالي مشهور پاچا توره منه Turamana نومېد (توره من په پښتو د توري او من د کلمو څخه جوړ سوی چي توره د شمشېر په معنا او من د فاعليت توری دئ – تورمن يعني شمشيري) چي د هند نيولو ته ئې هڅه وکړه او د هندي گوپتا دولت ئې ورېږداوه او خپل هندي پايتخت ئې په سکه Sakala (د پنجاب په اوسني سيالکوټ) کي وټاکه.

په هند کي دوو کتيبو د دې هپتالي (زاولي) توره من نوم ياد کړی، يوې په سکهر او بلي په کور کي چي (مهاراجه توره منه ساه جاوله) يعني: "شهنشاه توره من زاولي" ئې بللی دئ او له دې کتيبې څخه ځرگندېږي چي د ۵۰۰ م په شاوخوا کي د توره من د پاچهۍ په لومړيو کلو کي د ده واکمني په هند کي خپره سوې ده.

د توره من مړينه د ۵۲۰ م په شاوخوا کي اټکل سوې ده چي تر ده وروسته ئې زوی ميهيره کوله Mihirakula د زابلي هپتاليانو د شهنشاهۍ پر تخت کښېنوست او د ده د پاچهۍ په پنځلسم کال (د ۵۱۷م په شاوخوا کي) د ده نوم د هند د گواليار په کتيبه کي ياد سوی دئ او ده خپل فتوحات د هند تر منځه رسولي او نوم ئې خالص پښتو دئ: مير = لمر + کول = کهول (خاندان) يعني د لمر له کهوله چي د بدخشان په يوه خطي تذکره کي ئې نوم په دري مهرپور ترجمه سوی دئ او ده د هند محلي شهزادگان او د گوپتا د کورنۍ پايڅوړ د ځان تابع کړه او باج ئې ځني اخيست او کشمير ئې ونيو. دی هغه پاچا دئ چي د کاسماس Cosmas په کتاب (۵۴۷م په شاوخوا کي) د گولاس Golloss په نامه ياد سوی دئ چي لښکرو ئې د دوو زرو جگړنو پيلانو سره پر هند يرغل کړی او بلخ او باميان او بادغيس ئې نظامي مرکزونه ول.

د ميهيره کوله پاچهۍ د ۵۴۲م تر شاوخوا پوري د هولناکو جگړو او وينو بهېدو سره دوام درلود او د هندي او چيني بودائيانو او د بيزانتي راهب په آثارو کي چي په دې عصر کي ئې شمالي هند ليدلی وو د ده د دې دهشت او وينو بهولو يادونه سوې ده، تر

دې حده چې د هند شهزادګانو لکه بهانه ګوپتا د بنګال محلي امیر دګوپه راجه او نورو امیرانو سره لاس یو کی او په ۵۱۰م کال ئې په یوه سخته جګړه کي میهیره کوله ته ماته ورکړه او د کشمیر خوا ته ئې پر شا کی او تر هغه وروسته د ۵۲۸م په شاوخوا کي د مرکزي هند راجه واسودهارمن د نورو راجګانو په ملاتړ هپتالي لښکر له هنده ویوست، څو چې په ۵۴۲م کال (یا د ۵۵۰م په شاوخوا کي) میهیره کوله مړ سو او د ده نکلونه تر ډېري زمانې پوري په کشمیر کي پاته ول.

د میهیره کوله تر مړيني وروسته هپتالي دولت کمزوری سو او د خسرو انوشروان (۵۳۱ – ۵۷۹م) په عصر کي ساساني لښکرو د لمر لوېدو له خوا او ترکي قبیلې د شمال له پلوه پر هپتالیانو یرغل وکی او په هغه جګړه کي چې دې متحدو قوتو په سغد کي د هپتالیانو سره وکړه په ۵۶۸م کال ئې دوی له پښو واچول چې فردوسي هم پخپله شاهنامه کي د هپتال د ماتي شرح راوړې ده او مراد همدا هپتالیان دي او په دې وخت کي وو چې هپتالي دولت رسماً سقوط وکی او په افغانستان کي د کوشاني، هپتالي او ترکي کورنیو محلي امارتونه تر اسلامي عصره پوري پاته سوه، چې وروسته به بیان سي.

د هپتالیانو د ژبي او فرهنګ آثار په افغاني ژبو پښتو – دري او نورو کي پاته دي چې له هغه جملې څخه د (خان) لقب تر اوسه پوري د هر افغان د نامه سره تړلی وو او په هند کي هر افغان په دې نامه یادېږي او تورخان او مهرګل هم په پښتنو کي ډېر مروج نومونه دي. همدارنګه د اولس (ملت) او جرګه (د شورا مجلس) او یرغل (ایلغار) لغتونه په پښتو او دري کي او د سهاک (= ساکه) او خلجي (=غلجي) او ابدالي (= هپتالي) او کشاني (= کوشاني) او میرویس (= مهرویسه – مهره کوله = د لمر له کوله) او نور نومونه په افغانستان کي د ساکیانو او کوشانیانو او هپتالیانو له عصره پاته دي.

داسي څرګندېږي چې هپتالیان د بودایي دین پیروان نه ول او د خپلو فتوحاتو په وختو کي ئې ډېر بودایي معبدونه وران کړي او د هغه دین پیروان ئې ووژل او هغه وخت چې هیون تسنګ په ۹ هـ کال کي افغانستان ته راغی، د ګندهاره په ولایت کي ئې ډېر خلک او شهزادګان ولیدل چې د خپلو معبدو په ترمیم اخته ول او دا بودایي معبدونه د ده تر ارتګ دمخه وران سوي ول، کله چې په ۵۲۰ م سانګ – یون چیني زایر ماوراء النهر

ته ورسېد هلته ئې ولیده چې هپتالي پاچا د کراستي تر کړدی لاندي د سرو زرو پر تخت ناست او د خپلو ځلوښتو هیوادو سوغاتونه ئې منل او د هندوکش په جنوب کي د بودا د دین دښمن او ورانوونکی مهره کوله وو.

د هپتالیانو پر سکو چې له هډې، کابل، غوربند او نورو ځایو څخه کشف سوي د دوی د پاچهانو څېرې د جګو پزو او غاړګیو او د مرغلرو د غوږوالیو او تاجو سره ښکاري چې د کوچیانو بڼو ته ورته دي او هم یوناني، پهلوي، سنسکریت لیکنې ورباندي سته د سکې پر بل مخ د آتشکدې شکل د دوو نېزه لرونکو ساتندویو سره لیده کېږي، او له دې څخه پخپله ځرګندېږي چې دوی آتشکدې او رڼا ته احترام درلود او څنګه چې په دې وختو کي د سوریا (لمر) د معابدو آثار د خیرخانې په کوتل کي هم کشف سوي دي او د زور (سور) او زون لوی معبد د هلمند ها خوا ته په زمینداور کي د اسلامي فتوحاتو تر عصره پوري هم وو نو ویل کېدای سي چې هپتالیانو نور او رڼا څه په اور او څه په لمر کي نمانځله او پرستش ئې کاوه او بودائیت ئې له منځه وړی (۱۵ لمبر عکس دي وکتل سي).

# افغانستان د اسلام د پيدايښت په وخت کي

د ميلادي اوومي پېړۍ په لومړۍ نيمايي کي چي د اسلام لمر د بطحا له څنډي څخه راڅرک وهل، د افغانستان هيواد د محلي حکمرانانو تر اداري او د شرقي او غربي اديانو تر اغېزې لاندي وو. د هيواد لمر لوېديځه سيمه سيستان، هرات او د هغو شاوخوا د ساسانيانو د دورې تر سياسي او اداري او ديني نفوذ لاندي وه چي ژبه ئې پهلوي او دين ئې زردشتي وو. خو په مرکزي غريزه سيمه او زابلستان او د کابل د سيند د ناوې په گندهارا او د ارغنداو او ترنک په ناوو کي د هندوکش د غرو تر لمنو او د هغه شمال ته او د سند تر غاړو پوري د کوشانيانو او يفتليانو د پايڅوړ د داخلي حکمرانانو کورنيو او د دې هيواد نورو خلکو حکومت کاوه، چي بودايي او برهمني دينونه ئې درلوده او د دوی ثقافت او دين او آئين ښځي محلي بڼه موندلې وه او داسي ښکاري چي د ميلادي پېړيو له سره څخه په دې هيواد کي د عقيدې او پرستش آزادي وه او هري خوا ته د راز راز ديانتو معبدونه ودان ول او په ميلادي لومړنيو پنځو پېړيو کي د گريکو بوديک صنعت او مدنيت او گډ تمدن او اديان د خپل تقاطع او نښتون په ځاي کي يعني د تکسيلا او د هلمند د ناوې د سيمو تر منځ او شمالاً تر بلخ او تخارستان پوري موجود ول او د افغانستان خلکو د دې گډ مدنيت په پيدا کولو کي لاس درلود او تر اوومي پېړۍ او د اسلام د دين تر راتلو پوري په هيواد کي بودايي، زردشتي، لمرپرستي، شيوائي، مسيحي، نسطوري ديانتو او د ځينو ارباب انواعو محلي معبودانو پرستلو او نمانځلو رواج درلود.

د هغي زمانې مروج رسم الخطونه خروشتهي، پهلوي، شره داناگري، سنسکريت، يوناني ول، چي د دې هر يوه رسم الخط نخښبي له مځکي څخه راوتلي دي.

د همدغه عصر له ژبو څخه دري (تخاري)، پښتو، پهلوي او پراکريت ژبي وې چي د هغو د تاريخي رواياتو او آثارو د کتني له مخي ئې په افغانستان کي څرک موندلای سو.

هیون تسنگ گرزندوی او چیني بودایي زایر چي په ۹ هـ کال افغانستان ته راغلی وو، د دې هیواد د شرقي او شمالي سیمو د خلکو اجتماعي او سیاسي او فکري اوضاع په تفصیل سره لیکي او وایي چي: په دې سیمو کي د بودایي د لوی مذهب او کوچني مذهب د دواړو پیروان خورا زیات ول او په زیاتو ښارو کي د دې دوو مذهبو معبدونه ودان ول، هري سیمي یو حکمران درلود چي د عدم مرکزیت او تشتت په سبب او د ملوک الطوایفۍ د اغېزې له کبله د دې سیمو اجتماعي، سیاسي، اقتصادي، فکري اوضاع چنداني ښه نه وه او په دیني چارو کي اوهام او خرافات ګډ سوي ول.

هیون تسنگ د پېښور، هډې، لغمان، کاپیسا، بامیان، غزنه، بلخ او د هندوکش د نورو شمالي ښارو د بودایي معبدو په تفصیل سره نوم اخلي، حال دا چي په ۲۴ هـ کال چي له هنده بیرته راګرځېد د کاپیسا د جنوب په ۲۳ میلي کي ئې د ارونا په غره کي د آسماني روح (سونا) معبد لیدلی او وایي چي دا معبد د زابلستان سوناګیر ته وړل سوی وو او دا همهغه د زمینداور زور (زون) د غره بودتون (پرستشګاه) وو چي د البلاذري په قول په ۳۰ هـ کال د اسلامي فاتح عبدالرحمن بن سمره له خوا تسخیر او د سرو زرو بت ئې د یاقوتي سترګو سره مات کړه سوی وو.

د دې دورې بل مشهور بودتون د کابل د شاه بهار بودتون وو چي هیون تسنگ د کابل د شمال د یو څو شاهي معبدو یادونه کړې ده او د کابلستان یو لوی بودتون غالباً د هندوکش د اوسنی شیبر په شاوخوا کي وو (شیبر هم د شابهار مخفف دئ) چي عرب مؤرخ یعقوبي هغه د غوربند او د بامیان د سرخ پد (سارخود) په سلسله کي یاد کړی او وایي چي په ۱۷٦ هـ کال د فضل بن یحیی برمکي له خوا تسخیر او بت ئې وسوځل سو.

د دې دورې د معلوماتو مهمه چینه د چیني بودایي زایرانو لیکني دي چي د بودایي بودتونو (معابدو) د زیارت له پاره راتله او له هغه جملې څخه په ۳۹۹ م کال شي فاهیان او په ۵۱۷ – ۵۱۸ م کال سونګ ین او (له ٦۲۹ څخه تر ٦۴۵ م) هیون تسنگ او په ٦٦۰ م کي وانک هیون – تسو سفیر او په ٦٦۴ م کي هیون تچاو او په ۷۵۱ کي ووکنګ د افغانستان مځکه لیدلې ده او ښه معلومات ئې راټول کړي او لیکلي دي.

هیون تسنګ چي د هجري د لومړنۍ پېړۍ په لومړۍ نیمایي کي د افغانستان د ښارو اوضاع په دقت او بصیرت سره لیکلې په هر ولایت کي ئې له ملوک طوایف څخه د یوه پاچا او د کشتریانو له طبقې څخه یو لښکر ښوولی دئ او تر هغه وروسته د عربو

مؤرخانو او جغرافیا لیکونکي هم وایي چې په هره سیمه کي په بېل نامه حکمرانان ول چي له هغې جملې ځخه دي: سجستان شاه، مروشاه، قفص شاه، مکران شاه، کابلان شاه، قیقان شاه، داوران شاه، قشمیران شاه، نخشبان شاه، کنارنشاپور، د مرو ماهویه، د سرخس راذویه، د ابیورد بهمنه، د نسا ابراز، د غرجستان برازینده، د مرو رود کیلان، د زابلستان فیروز، ترمزشاه، شېر بامیان، د سغد فیروز، د فرغانې اخشید، ریوشار، گوزگان خذاه، ختلان شاه یا شیرختلان، بخارا خداه، د سمرقند طرخان، د سیستان او رخج او داور رتبیل، د هرات او پوشنگ او بادغیس برازان، د ماوراء النهر کوشان شاه، د غرجستان شار، د بادغیس او تخار نیزک، د تخار یبغو، د سور او غور جهان پهلوان، د غزنه او گردیز لویک، چي فردوسي د مهراب کابلي او سام او زال زابلي د کهول خواږه نکلونه لري.

د غزنه لویکان لرغوني کهول وو، چي د یوه نیکه نوم ئې د بغلان په ډبرینه لیکنه کي لویک بوسر راغلی دئ او د ۱۶۰م په شاوخوا کي د کوشانیانو فریستار آب (د اوبو رسولو وزیر) وو او د دې کهول پایڅوړ په گردېز او د غزنه په دربار کي د یعقوب لیث او سلطان مسعود تر وختو موجود وو[1].

بل مشهور کهول د زابلي رتبیلانو دئ چي د کابلشاهانو سره ئې خپلوي او خېښي درلوده او پر زابل ئې له غزنه ځخه تر سیستانه حکومت کاوه او د بیهقي په قول شهرستان رتبیل د ارغنداو پر غاړه په کوهک کي وو چي د ډبرلیکونو او عربو او هندي او چیني مؤرخانو د یادوني له مخي د دې کهول ډېر شاهان پېژندل سوي دي او دوی افغانستان ته د اسلامي لښکرو د راتگ پر وخت د اعرابو سره جگړې او مقاومتونه وکړه، ځو چي د ۲۵۸ھ په شاوخوا کي د یعقوب لیث صفاري له خوا له منځه ولاړه.

بل غښتلی او نامتو کهول د کابل شاهانو وو، چي په لومړۍ اسلامي پېړۍ او د عربو د فتوحاتو په وختو کي ئې له کابله تر پنجابه حکم کاوه او د البیروني په قول د برهتگین له اولادې ځخه دئ چي د دې کهول د وروستني پاچا لکتورمان د پاچهۍ په وخت کي د هغه وزیر کلر د دوی تاج او تخت ونیوه او سامند او کملو او بهیم او جیپال او انندپال او تروجنپال د ده له اولادې ځخه برهمني پاچهان دي.

---

[1] د تفصیل له پاره دي افغانستان بعد از اسلام ۱/ ۳۱ او رسالهٔ لویکان غزنه د کابل چاپ ته رجوع وسي.

د البیروني پر روایت سرېره د کابلشاهانو ځیني نومونه د دوی له هغو سکو څخه چي لاس ته راغلي ښکارېږي لکه خودویه که، سپاله پتي، پدمه، ونکه دیوا. د تاریخ سیستان مؤلف د ۳۶هـ په شاوخوا کي د کابلشاهانو د دوو نورو پاچهانو نومونه یادوي چي لوی کابلشاه د کوچني کابلشاه تر ماتي وروسته د عبدالرحمن ابن سمره په مقابل کي مقاومت کاوه او ۲۸ زره وسله وال او پیل لرونکی لښکر ئې درلود.

الیعقوبي عربي مؤرخ د یوه کابلشاه خنجل نوم اخلي، چي د المهدي عباسي خلیفه د ۱۶۴هـ په شاوخوا کي معاصر وو، مګر له مسکوکاتو څخه ښکاري چي په کابل او ګندهاراه کي تر کشمیره یوې کورنۍ د خنجل په نامه حکومت کاوه، چي د دوی نومونه پر مسکوکاتو باندي د خنګل له کورنۍ څخه لیکل سوي دي او دا د کابلشاهانو یوه کورنۍ وه چي د نامه اصل ئې خان + کهول = خانګل = خنجل وو او دا نوم په هندي رسم الخط خن خیله = خان خیل دئ، چي له کابله تر کشمیره پسله ۵۶۵م څخه د دوی شاهي وه او د غزنویانو تر عصره پوري پنځه پېړۍ ئې دوام وکی.

دغه کابلشاهان د اسلامي فتوحاتو پر وخت له کابله پېښور او ویهند او تکسیلا ته پر شا سول او سلطان محمود دوی د اباسین د غاړي له ویهنده هم وایستل او په ۲۹۰هـ کال د سوات او مردان مځکي هم د کشمیر پاچا ګوپاله ورمن ځني ونیولې او د دوی پاته سړي تر ۴۹۰هـ پوري په کشمیر کي شاهي پوتره (شهزادګان) بلل کېده او کله چي موږ په تاریخ کي د دوی نومونه او یادوني شمېرو نو ئې عدد تر (۲۰) پوري رسېږي[1].

له دې مقامي پاچهانو څخه بله کورنۍ د ترکي خاقان ده چي د چیني نوشتو سره سم دوی له ۶۲۰ م څخه تر ۶۳۰م پوري کابل او ګندهارا او د هندوکش شمالي سیمي ونیولې، په اصل کي هم دوی د دغو سیمو خلک ول چي ترکشاهي کورنۍ ئې بولي، دوی له ساساني پاچهانو سره په ۵۶۹م او ۵۸۹م او ۶۱۶م جنګونه وکړل او تر سغد پوري سیمي د دوی وې.

له ترکشاهانو څخه په تاریخ کي د نیزک او شاد او جبغویه د کورنیو نومونه له ګندهارا او تخارستانه تر بادغیس پوري یاد سوي دي او تګین شاهان هم له دوی څخه ښکاري.

له ۶۵۱ تر ۷۰۹م پوري یوه مشهوره ترکي کورنۍ د نیزک طرخان په نامه د

---

[1] د تفصیل له پاره وګورئ: راجه ترنګیني ۸/ ۳۳۳۰، افغانستان بعد از اسلام ۱/ ۷۱.

افغانستان په تاریخ کي یاد ېږي چي د دوی مسکوکات ډېر په غزني او د کابل په شمالي سیمو کي پیدا سوي دي او پاچهي ئې تر مرو او بادغیسه رسېده او په ۹۱ھ کال یوه آخرني نیزک قنیبه عربي فاتح سره سخت جنګونه کړي دي.

د دې کورنۍ سکې د نیزک شاه Nycky-mlk په نامه سته چي دغه نوم پوهانو نېکي ملک هم ویلی دئ، خو صحیح به نیچکي – نیزکي وي[1]. په چیني منابعو کي دا نوم نو – سي No-Se دئ چي د کاپیسه پادشاه وو او په ۷۱۹م ئې یو وفد د چین دربار ته واستاوه او داسي ښکاري چي دغه کورنۍ د (۱۰۰ھ) په شاوخوا کي د اسلامي فتوحاتو سره ختمه سوې وي.

هم له دغو ترکشاهانو څخه یوه سکه د تګین خراسان شاه په نامه سته چي په ۷۰۵ یا ۷۲۵م کال وهله سوې ده او دا هغه پاچا دئ چي په چیني نوشتو کي هو – سن – تي کین – شاهي راغلی دئ او دی په ۷۱۹م د کي – پن پاچا سوی وو او ښایي چي د کندهار د ارغنداو په ناوه کي تګین اباد ښار هم ده ودان کړی وي چي اوس وران سوی او نامعلوم دئ.

د بامیان شیران هم د دې عصر مقامي شاهان دي چي په ۹ھ کال د هیون تسنګ د سفر پر وخت هم دلې حکمرانان ول او لومړی شېر بامیان د منصور عباسي خلیفه په وخت کي (۱۳۶ – ۱۵۸ھ) مسلمان سو او د ده زوی حسن د ۱۷۶ھ په شاوخوا کي د بامیان حکمران وو، چي په عربي تاریخو کي ئې یادونه سوې ده. دغسي هم په غرجستان (غرستان) کي د شار کورنۍ مقتدر حکمرانان ول، د فریغونیانو کورنۍ په جوزجان کي او آل بانیجور په تخارستان کي او د اندراب او چغانیان امیران د یادولو وړ دي، چي د کوشاني هپتالي یا ترکي کورنیو څخه د اسلام په لمړیو درو پېړیو کي پاته ول.

د روزګان په درۀ شالي کي د هغه ځای د زاول شاه نوشتې پر ډبرو باندي په یوناني خط او قدیمه دري پاته دي چي په دغه ځای کي د زاول شاهانو حکمراني راښیي او داسي ښکاري چي د کوشانیانو او هپتالیانو تر امپراتورۍ وروسته د دغو کورنیو پاته شهزادګان د مملکت په هره خوا کي د هغو ځایو د شهزادګانو په نامه پاته ول، لکه چي د غزني په جغتو کي د دې ځای د شاه پورویمه شاه الغ یو ډبرلیک په یوناني خط سته او هم د وزیرستان په توچي کي یو بل ډبرلیک سته چي د ګومل بغپور (شهزاده) هلته یو

---

[1] اکتاانتیکوا – هنګري ۱۹۶۹م.

لوی معبد د نوبخت بهار په نامه په ۲۴۹هـ ۸۶۲م جوړ کړی وو. دغه د گومل شهزاده په دري ژبه (ماه شاه) نومېد، چې په سنسکریت ئې نوم چندره بهوپه وو (چندره = ماه + بهوپه = شاه). دا گومل بغپور په سنسکریت نوشته کې کهوجڼه پتره یعني د کوشان زوی بلل سوی دئ چې ځان ئې د کوشانیانو له لمسو څخه گاڼه.

په هم دغه ټوچي کې یوه بله لیکلې ډبره هم په یوناني خط پیدا سوې ده چې په ۲۵۱هـ ۸۶۵م یعني تر پخواني ډبرلیک درې کاله پس یوه بل کوشان گومل بغپور خاقان خپل هلته یو ساهوسرای (سوداگرخانه) جوړه کړې وه او له دې کورنۍ څخه د لویکانو په نامه د سلطان محمود تر وخته پوري لا هم ډېر مشاهیر په گردېز او غزني کې پاته ول چې د سلطان محمود د دربار سیاسي خلک او سفیران ول[۱].

عربي مؤرخ الیعقوبي یو کابلشاه د خنجل په نامه یادوي، چې د ۱۶۴هـ په شاوخوا کې د المهدي بن منصور عباسي معاصر وو.

دا کابلشاهان د کابل تر پرېښودو وروسته د اسلامي فتوحاتو په اثر د پېښور، ویهند، تکسیلا او پنجاب خوا ته پر شا سول او سلطان محمود دوی د سند د سیند له غاړې ویهند څخه شا ته وشړل او د ۲۹۰هـ په شاوخوا کې د کشمیر پاچا گوپاله ورمن هم د سوات د پېښور د شمال د مردان مځکې له دوی څخه ونیولې او د دوی پایځوړ تر ۴۹۰هـ پوري په کشمیر کې د شاهي پوتره (شهزاده) په نامه اوسېدل[۲].

په همدې دوره کې د افغاني محلي امیرانو یوه کورنۍ د نپکي ملکا = نپکي شاهانو په نامه هم د هغو سکو له مخي پېژندل سوې ده چې له غزنه څخه لاس ته راغلي دي او د یفتلي او کوشاني محلي امیرانو پایځوړ به وي.

د هندوکش په شمال کې هم ځیني پاچهان د تگینانو په نامه ول، چې نیزک او شاد او جبغویه له تخارستانه تر بادغیسه حکومت کاوه او عربي مؤرخان په ۹۱ هـ کال د عربي فاتح قتیبه په مقابل کې د نیزک سخت مقاومت په تفصیل سره راوړی دئ.

---

[۱] د دغو کورنیو د تشریح له پاره دغه کتابونه وگورئ: افغانستان بعد از اسلام د حبیبي لیک، هفت کتیبهٔ قدیم د حبیبي لیک، تاریخ افغانستان دوهم ټوک د کهزاد لیک، یک تحقیق نوین دربارهٔ کابلشاهان، د حبیبي لیک، بقایای حکمرانان کوشانی در افغانستان د حبیبي لیک، هپتالیت او خیونیت په فرانسوي د گیرشمن لیک.

[۲] راجه ترنگیني ۸/ ۳۳۳۰ د تفصیل له پاره دې افغانستان بعد از اسلام ته رجوع وسي.

د بامیان شیران هم د دې عصر حکمرانه کورنۍ وه چي تر ۹ هـ وروسته د هیون تسنګ د سفر په وختو کي او بیا ورپسې په ۱٦۴ه کال ئې هم حکمراني درلودله او په غور کي هم د سوریانو کهول چي د هغې سیمي ځایي خلک ول حکومت کاوه، چي سوري ماهوي د ۳۵ه په شاوخوا کي د حضرت علي معاصر وو او د ۳٦ه په شاوخوا کي شنسب د خرنک زوی او د ۱۳۰ه په شاوخوا کي امیر پولاد او له ۱۳۹ څخه تر ۱۵۴ه پوري جهان پهلوان امیر کروړ د امیر پولاد زوی او د ۱٦۰ه په شاوخوا کي امیر ناصر د امیر کروړ زوی او د ۱۷۰ه په شاوخوا کي امیربنجی د نهاران زوی او د ۲۵۳ه په شاوخوا کي امیر سوري د محمد زوی د دې کهول له قدماوو څخه بلل سوي دي[1] او د غور د پاچهانو کورنۍ هم دې کهول ته منسوب ده.

په دې توګه د افغانستان خلکو د اسلام د پیدایښت په وخت کي د دغو پاچهانو تر حکمرانۍ لاندي د ګڼو ادیانو، افکارو او فرهنګو تر منځ تیت و پرک ژوند کاوه، که څه هم د دوی دیني ژوندون وروست او په چټیاتو ککړ وو، خو د خپلي ملي بنې او آزادۍ او فرهنګ سره ئې مینه او علاقه درلوده.

---

[1] د دې کورنۍ تفصیل په افغانستان بعد از اسلام ۱/ ۱۰۹، او طبقات ناصري او تاریخ فرشته کي وګورئ.

# د افغاني فرهنګ تاريخي مبادي

## تر اسلام دمخه او وروسته

دا عنوان د تاريخ له مخي خوندور تحليل او په زړه پوري شرحه لري. په دې معنا چي موږ ټول هغه فکري او مدني حرکتونه چي د تاريخ په لمنه کي د افغانستان په خاوره کي راغلي دي (افغاني فرهنګ) بولو او دا فرهنګ د افغانستان د تاريخ له لرغونيو وختو يعني د ۱۴۰۰ق م په شاوخوا کي له ويدي دورې څخه شروع او بيا تر هغه وروسته د اوستا په دوره کي يعني د ۱۲۰۰ق م په شاوخوا کي ادامه لري او په دې دوره کي دئ چي آريائي خلک په بلخ کي له بدوي او کوچيتوب له ژونده ښاري ژوند او مدنيت ته رسېږي او زره تشتره (زردشت) په همدې هيواد کي د مزديسنا د دين او د ژوند د درو بنسټو: "ښه انګېرل، ښه کول، ښه ويل" په تبليغ خوله پوري کوي او د پېشداديانو او کيان شاهي کورنۍ د انساني مدنيت په زانګو ښکلي بخدي کي د خپل سلطنت او شاهي برم (فر) بنسټ ږدي.

تر دې وروسته زموږ د هيواد په لمر لوېديځو سيمو کي د آريايي خلکو هخامنشانو او اشکانيانو او ساسانيانو مدنيتونه منځته راځي او خپل خاص او فرهنګي مبادي په دې سيمو کي هم خپروي څو چي د هخامنشي دورې په پای کي يوناني لوی سکندر له ۳۳۱ څخه تر ۳۲۳ ق م پوري د ايران له لاري پر افغانستان يرغل کوي او دا فتح د يوناني ژبې، ادارې، سياست، هنر، رسم الخط او نورو فرهنګي مظاهرو اغېزه افغانستان ته راننه باسي او په ۲۵۰ ق م کال د يودوت په باختر کي د يوناني باختري سلطنت بنسټ ږدي چي د ميلادي عصر تر سره ئې دوام وکی او د افغانستان د يوناني و باختري د خاص فرهنګ او مدنيت په جوړښت کي ئې چي لرغوني ويدي او اوستايي ريښې ئې درلودلې څرګنده اغېزه وکړه.

په دوهمه ميلادي پېړۍ کي د افغانستان کوشاني لوی پاچا کنشکا د لويو کوشانيانو د سلسلې بنسټ کښېښود او د بودايي دين په منلو او خپرولو او تبليغولو

ئې د افغانستان مدنيت او فرهنګ ته يوه خاصه بڼه او مرتبه ورکړه.

د کانيشکا پايتخت په دوبي کې د کابل په شمال کې کاپيسا او په ژمي کې پېښور او ده د مهايانه بودايي لوی مذهب په ټول افغانستان او د آمو په شمالي سيمو او هند کې رواج کی او لويه کوشاني شهنشاهي ئې جوړه کړه.

د کوشانيانو په دوره کې چې تر څلرمې ميلادي پېړۍ پورې ئې دوام درلود د افغانستان د داخلي مدنيت او فرهنګ خاصه بڼه له يوې خوا د زردشتي له پخوانيو وطني عناصرو څخه او له بلې خوا د هندي له بودايي آثارو او يوناني مواريثو څخه جوړه سوې وه.

له هغو اسنادو څخه چې په دې وروستيو وختو کې د بغلان د سره کوتل د کوشاني معبد له کيندنو څخه لاس ته راغلي داسې څرګندېږي چې کوشانيانو د دې هيواد د خاصو افکارو او فرهنګ په پيدا ايښت کې چې وروسته ورته د ګريکو بوديک په نامه يوه خاصه افغاني دوره ويل کېدای سي څرګندي کارنامې پای ته رسولي دي.

فرانسوي لرغون پېژاند او څېړونکي موسيوفوشه کوشاني صنعت د کوشاني دورې له ابتکاراتو څخه بللي او وايي: د دې دورې د ستوپو ډول د آشوکا د زمانې له ودانيو څخه په ډېري آسانۍ بېلېدای سي، که وغواړو چې دا نوی سبک د اروپا د مذهبي ودانيو سره بيان کړو بايد ووايو چې د آشوکا سبک (په فرانسه کې له ۱۰ پېړۍ څخه تر ۱۲ پورې) د ستوپو رومي سبک او د کانيشکا سبک د ګوتيک سبک دئ چې په فرانسه کې له ۱۲ پېړۍ څخه تر ۱۵ ميلادي پېړۍ پورې موجود وو. د آشوکا ستوپې د ايران فلات ته هيڅ وخت نه دي راغلي، خو د کانيشکا او د هغه پر ځای ناستو پاچهانو ستوپې په ډېري آسانۍ سره هند ته لار موندلې ده او حتی د کوشان امپراتور د نوي پايتخت پوروشاپوره (اوسني پېښور) جنوب شرقي خوا ته خورا لوی بودتون (معبد) ودان کړی دئ.

دې بودتون څو واره اور اخيستی وو او اوس يوه کنډواله ده. خو موږ د چيني مسافرانو د يادداشتو د لوستلو په نتيجه کې وکولای سوه اصلي خطونه ئې وپېژنو، چې د دې کنډوالې په آثارو کې د معجزې په توګه د بودايي له مقدسو شيانو څخه يو شی چې د کانيشکا تصوير او لاسليک ورباندې سته راپاته او کشف سوی دئ.

آلماني دکتر هرمان ګويتزچي د هند په باره کې د څېړنو استاد دی د کوشاني

دورې د هنر په باب کې وايي: يوناني هنر په هندي هنرو د شکل په بدلون شروع وکړه او د گندهارا بڼه ئې وموندله، خو ډېر څېړونکي په دې عقيده دي چې نوموړی سبک باید د يوناني او بودايي طرز پراخوالي ته لږ منسوب وباله سي بلکي دا د آريانا د شرق (يعني افغانستان) د هغه طرز پراختيا ده چې د جنوب شرق د سکايانو او کوشان د قبيلو تر واکمنۍ لاندي خپور سوی دئ او په دې ډول په کشمير کي د گوپتا تر دورې (۳ - ۴ ميلادي پېړۍ) پوري لکه چي دهروان د بودايي بودتونو (معبدو) له کنډوالو څخه ثرگندېږي يو بېخي خالص هنر پر ځای پاته سو او د دې خلکو يرغل د يونان او بلخ او د يونان او هند دولتونه له منځه يووړه او هند ته ئې تازه عناصر راوستل چي نور ئې نو په غربي ايران او د هخامنشي په نفوذ اړه نه درلوده او د ايران د فلات په شمال پوري تړلی وو (ميراث ايران: ۱۵۳).

د کوشاني دورې کلتور او تمدن او هنر د خپل بشپړتوب او انحطاط مرتبې تېرې کړې او د اسلامي دورې تر شروع او د عربو د لښکرو تر نفوذ پوري راورسېدل چي بيا ئې په اسلامي لومړۍ پېړۍ او د ٦۵۰م په شاوخوا کي خپل ځای يو بل گډ مدنيت او فرهنگ ته پرېښو، چې هغه ته د افغانستان د لومړۍ اسلامي دورې فرهنگ وايو.

اسلامي او عربي عناصر چي د قبل الاسلام په پخواني مدنيت او فرهنگ کي ورگډ سوه هغو ته ئې بېخي يوه نوې تازه بڼه ورکړه چي وروسته بيا دوی د همدې خراسان او افغانستان له خاوري څخه د شمال او لمرختو خوا ته تر چين او هند پوري خپاره سول.

په همدې سبب د افغانستان خاوره د جغرافي اقليم او وضع له مخي بايد په پخوانيو پېړيو او وختو کي د گډو سوو فرهنگو د پيدايښت ځای وباله سي او له همدې جهته پروفيسور تاينبي د تاريخ انگرېز فيلسوف پخپل نوي کتاب کي چي (د اکسوس او جمنا تر منځ) نومېږي دې نتيجې ته رسېدلی چي د افغانستان خاوره يو Round-About يعني د فرهنگو د انشعاب ټکی او د تشعشع مرکز او څلورلاری وو، چې د څو زرو کالو په تېرېدو ئې څه چي ئې پخپله درلوده او څه چي له دباندي ورته رارسېدلي ول خپل شاوخوا هند، ايران، ماوراء النهر او مرکزي آسيا ته خپاره کړي دي.

د اسلام د لومړۍ پېړۍ په لومړۍ څلرمه (د ۲۴هـ) په شاوخوا کي د عربي بريااليو لښکرو فتوحات د خراسان او مرو تر منځ له سيستانه د ارغنداو تر ناوې پوري

رارسېدلي ول او همدا وخت دئ چي افغانستان په تېره بيا په جنوبي جبهه کي د اسلامي برياليو عسکرو او د عربي نوي دين او افکارو او ثقافت او ژبي د تېرېدو لاره وګرزېده او دا ټول فرهنګي مهم عناصر په افغانستان کي دوې پيړۍ د پخوانۍ تهذيبي او ثقافتي بنې سره ګډ سوه او بيا په ګډه د (سند) د مهران تر څنډو پوري پر مخ ولاړه او دا مطلب له هغي ليکني څخه ثابتېږي چي په عربي او سنسکريت ژبو پر يوه ډبره ليکل سوې او دا ډبره د شمالي وزيرستان په توچي کي لاس ته راغلې ده چي د ليکني نېټه ئې د (۲۴۳هـ = ۸۵۷م) د جمادی الاولی مياشت ده.

د توچي ناوه له غزني او ګردېز څخه د هند خوا ته د فاتحانو او د تجارتي کاروانو د تېرېدو لاره وه او معلومه ده چي اسلامي ژبه او ثقافت د (۲۰۰هـ = ۸۱۵م) په شاوخوا کي هغه ځای ته رسېدلی وو.

اسلامي فرهنګ خاص عربي عناصر درلوده چي د خلفاء راشدينو او امويانو په وختو کي پر همهغو خالصو عربي مبادیو باندي بنا سوی وو او مهم اجزا ئې داسي ول: خالص عربي عنعنات او د ود و دستور، او د قرآن او د اسلام د حضرت پيغمبر ښووني چي توحيد او ښه اخلاق او د افرادو او ټولني اجتماعي فرايض ئې څرګندول. دريم هغه نوی عناصر چي مسلمانانو د مصر او روم او پارس او خراسان څخه د لښکرکښيو او سوداګريو او ادبي او فرهنګي روابطو په ترڅ کي اخيستي ول او په تېره بيا تر ۱۳۲هـ کال وروسته چي د امويانو د واک کمبله ټوله سوه او خراسانيانو په بغداد کي د آل عباس خلافت جوړ کی او له دې انقلابي حرکت سره اسلامي فرهنګ ځانته نوې ښه وموندله او د عباسيانو د دورې په مدنيت او فرهنګ کي ډېر خراساني عناصر ننوتل او ډېر ژر ئې په ډېر قوت د خراسان ټولو فرهنګي او فکري او عقلي مبادیو ته په عربي ثقافت کي ځای ورکی.

دا وخت په افغانستان کي يو خاص اسلامي افغاني فرهنګ تشکيل سو، يعني تر اسلام د دمخه دورو د فرهنګ پر پخوانيو مبادیو اوس يوه نوې مبدا زياته سوه او هغه د قرآن او اسلام اغېزه وه چي د افغانستان له هيواده د مدنيتو د يوې ګذرګاه په توګه د هند او ماوراء النهر او چين خوا ته هم تېره سوه.

اوس خراساني اسلامي فرهنګ يوه خاصه ښه موندلې وه په دې معنا چي خراسانيانو د خپلو فرهنګي پخوانيو عنعناتو سره سره د اسلامي مدنيت مبادي هم

منلي ول، دې خراسانیانو د خراسان او د عباسي خلافت سیاسي او اجتماعي او اداري او علمي مرکزو ته په تېره بیا بغداد ته مخه وکړه او په ټولو فرهنګي برخو کي ئې ښه ثرګند فعالیت وکی. د بلخ د برمکیانو نامتو کهول چي د خراساني او افغاني فرهنګ په زانګو کي روزل سوی وو په عباسي هیواد کي د اداري او علم او فرهنګ واګي په لاس کي ونیولې او د دې خلکو په زیار اسلامي نقلي او عقلي علومو رونق وموند او د خراسان مشهور ښارونه له نیشاپور او مرو ثخه نیولې تر هرات او زرنج او بلخ او بست او بغشور او نورو پوري د اسلامي علومو او افکارو او فرهنګ د روزني ځایونه وګرځېده، ډېر خراساني موالي عربي کورنیو ته ننوتل او خپل افکار او ثقافتي روایتونه ئې د عربو دنیا ته نقل کړه او د خراساني او عجمي فرهنګ اغېزه د بغداد د عباسیانو په دربار او د عباسي ارت هیواد په نورو ښارو کي تر دې درجې وه چي ځینو خلفاوو خراساني ښځي په نکاح کړې او د بغداد د ثو تنو غښتلو خلفاوو مندي له همدې خلکو ثخه وې.

اسلامي خراساني فرهنګ چي په همدې افغاني ښارو او خراسان کي روزل سوی وو دوني وده وموندله او دومره لوړ سو چي حتی عربي ژبو شاعرانو هم خراساني مضامین او افکار او کلمات خپلي ژبي ته ور ننه ایستل او ثنګه چي خراسان د منځنۍ آسیا پر ثلور لاري پروت وو نو له غربه شرق ته او له شرقه غرب ته د افکارو د انتقال ځای وګرځېد، مثلاً ابن ندیم د سمنیه (بودائیانو) او د هغو د پېشوا بوذاسف د حالاتو د بیانولو په وخت کي له یوه کتابه نقل کوي چي هغه یوه خراساني لیکلی وو او له دې ثخه هم ثرګندېږي خراسانیان او د افغانستان او د هغه د ګاونډیو خاورو خلک عربو ته د هندي افکارو د وړلو وسیله وه. ځکه نو باید په لنډه توګه وویل سي چي زموږ په دې هیواد کي تل افغاني فرهنګ موجود وو که ثه هم د زمانې په تېرېدو سره ئې بڼې او صبغې تغیر کړی دئ خو د دې ګذرګاه افکارو او اندېښنو او مدنیت تل خپل افغاني هویت تشخص ساتلی دئ (د دې مخ مربوطي نقشې ته دي رجوع وسي، ۳۶ لمبر).

## مأخذونه:

افغانستان بعد از اسلام لومړی ټوک، آریانا انتیکوا، تاریخ افغانستان لومړی او دوهم ټوک، تاریخ افغانستان (د سرپرسي سایکس)، پټانان (د اولف کیرو)، خروشتهي کتیبې (د ستین کونو)، مادر زبان دری.




له ډېر پخوا څخه د اسلام تر نشره پوري د افغانستان څخه او افغانستان ته د فرهنګ څپې

۳۶ -لمبر عکس

# د افغانستان او ایران تاریخي سنې

## د بخدي پیشدادي لرغونې دوره




۳۷ - لمبر جدول

د افغانستان د حکمدارانو په هکله د سنواتو مقایسوی خرگندونه د اسلام د ظهور په حدود کی

| سالها | دغرنی لویکان | رتبیلان زابل | دبامیان زومیان | کابل شاهان | تگینان | دغور سوریان |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۰۰ - م | شیر وگرگ ۱۰۰ - م | | | برهمتگین | | |
| | لویک نوسر ۱۹۰ - م | | | | | |
| ۲۰۰ - م | | | | | | |
| ۳۰۰ - م | | | | شصت بشت (البیرونی) | | |
| ۴۰۰ - م | | فیروز بن کفایر؟ | | کنگ | | |
| | | | | خودوبلکه | | |
| | | | | سپالپتی | | |
| ۵۰۰ - م | | | | پدمنه | | |
| | | | | وکه او پوا | | |
| | | | | | تونکیه بانو | |
| ۱ - هـ | | رتبیل ۳۰ هـ | | کابلشاه ۳۶ هـ | نادرشاه ۹ هـ | ماهوی الکبر ۳۲ هـ |
| | | ″ ۶۰ هـ | | کابل شاه (غث) ۲۶ هـ | تیزک ۳۱ هـ | ؟ ۳۶ هـ |
| | | ″ منتظم ۱۰۰ هـ | | | ؟ ۸۰ هـ | |
| ۱۰۰ - هـ | وکوین ۱۰۰ هـ | رتبیل پیروز ۱۳۰ | | | تیزک معاصر ابومسلم ۱۳۰ هـ | امیر پولاد ۱۳۰ هـ |
| | | ″ ″ ۱۶۳ | شبیر معاصر منصور و مسلم ۱۶۳ هـ | نجل ۱۶۲ هـ | تگین او وگونک ۱۲۳ هـ | امیر کروړ ۱۳۹ هـ |
| | خانان (ملافران) ۳۰۴ هـ | ″ ″ ۲۰۰ | حسن بن کبیر ۱۲۶ هـ | | | امیر ناصر ۱۶۰ هـ |
| ۲۰۰ - هـ | محمد بن خانان | ″ ″ ۲۳۰ | | لگتورمان ۲۰۰ هـ | | امیر یحیی ۱۷۰ هـ |
| | | ″ ″ ۲۵۰ | | کلر ۲۵۰ هـ | | |
| | الفتح بن محمد ۲۸۰ هـ | ″ ″ ۲۵۸ | | ساعند ۲۸۰ هـ<br>کملو ۲۹۱ هـ | | امیر سوری ۲۵۲ هـ |
| ۳۰۰ - هـ | | | | بهیم ۳۲۰ هـ | الپتگین ۳۲۲ هـ<br>اسحاق ۳۵۵ هـ | |
| | منصور بن افلح | | | جیپال ۳۵۰ هـ | بوتگین ۳۶۵ هـ<br>مرتگین ۳۶۷ هـ | |
| | ابوعلی (ابوبکر) | | | انندپال ۳۶۲ هـ | سبکتگین ۳۶۶ هـ | |
| ۴۰۰ - م | مرسل بن منصور ۴۰۰ هـ | | | تروجنپال ۴۱۰ هـ | ترپتگین زابل او غزنی ۳۷۰ هـ | |
| | سعد بن مرسل ۵۵۰ | | | بهیمپال ۴۱۷ هـ | | |

۳۸ - لمبر جدول

دوهمه برخه:

# افغانستان ته د اسلام راتګ

## او د خلفاوو دوره

د اسلام له پیدا ایښت څخه لا د یوې پېړۍ څلرمه برخه تېره سوې نه وه او ستر خلیفه حضرت عمر د اسلامي خلافت پر مسند ناست وو، چې د عربو زړه ور او جهان نیوونکی لښکر د پارس د ساسانیانو زړه شهنشاهي له پښو واچوله او ساساني وروستنی پاچا دریم یزدګرد د جلولا تر جګړې (۱٦هـ کال) او د نهاوند تر جنګ (۲۰هـ کال) وروسته خراسان ته راغی او د ماوراء النهر له خاقان څخه ئې مرسته وغوښتله خو څه کومک ئې و نه لید.

د اسلام خلیفه حضرت عمر، احنف د قیس زوی په یزدګرد پسي وګوماره او احنف د خراسان مځکه په روغه ونیوله. دا وخت د افغانستان د لمر لوېدیځو سیمو او غور ساتندوی په مرو کي ماهوی سوري وو، چي د فردوسي او طبري په قول د خراسان حکمران ګڼل کېده. د عربو حکمدار احنف چي په یزدګرد پسي وو او یزدګرد په مرو کي ماهوی سوري ته پناه یووړه نو ماهوی د ماورای آمویه د حکمدارانو سره د یزدګرد د روابطو د ټینګېدو څخه وبېرېده او یزدګرد ئې د یوه ژرندګرې په لاس وواژه (۳۱ هـ – ٦۵۱م) او خپله حکمراني ئې د فردوسي په قول تر بلخ او هرات او بخارا پوري پراخه کړه او د ده د لښکر سپه سالار کرسیون بخارا ونیوه او دا سوري کورنۍ د محلي امیرانو خورا نامتو کهول دئ. خو احنف، ماهوي سوري هم له خراسان او مرو څخه د جیحون ها خوا ته وشاړه او د ژوند تر پایه د مروالرود په څلور فرسنګۍ کي ئې د خلافت له خوا د خراسان پر یوه برخه حکمداري کوله، مګر د ماهوی د ماتي سره د سوري امیرانو کهول له منځه ولاړ، چي وروسته به ئې مفصل ذکر راسي.

د جنوب له خوا هم د عربو بریالی لښکر د البلاذري په قول د خراسان تر دروازو

طبسين (د طبس تر کلا او د کرين تر کلا) پوري رسېدلی وو چي د افغانستان د اوسني گرمسير په غربي سرحد پوري نښتی دئ او د هغه لښکر مشر عبدالله د بديل خزاعي زوی وو.

د فاروقي عهد په پای کي (۲۲ – ۲۳هـ کال) د عربو د لښکر يوې برخي د عبدالله بن عامر په مشرۍ د کرمان تر نيولو وروسته پر سجستان (سيستان) باندي هم يرغل وکی او د سيستان ساتندوی د زرنگ (معرب ئې زرنج) په ښار کي چي د سيستان مرکز وو ځان کلابند کی، مگر څنگه چي د اسلام لښکر د کندهار او هند (سند) تر شاوخوا پوري پر مخ ولاړ، نو ځکه د زرنگ ساتندوی روغه وکړه، او زرنگ د مسلمانانو لاس ته ورغی او هغه لښکر چي له سيستانه د شرق خوا ته پر مخ تللی وو، د ارغنداو په ناوه کي د رتبيل د لښکر سره (چي دمخه ئې يادونه سوې ده) ونښت او هغه ئې وواژه، چي البلاذري ئې د هيواد ارتوالی د (هياطله) په نامه تر هراته يادوي (۲۴هـ – ٦۳۳م).

## عثماني خلافت

**(۲۵–۳۵هـ)**

په عثماني وخت کي تر (۲۵هـ) کال وروسته اسلامي فتوحات د افغانستان په خاوره کي پر مخ ولاړه او د عربو د لښکر مشر عبدالله بن عامر تر کابله ورسېد او دا ښار ئې کلابند کی او تر سختي جگړې وروسته ئې ونيو خو د کابل خلکو د عربو د لښکر تر تگ وروسته بيا د خپلواکۍ بيرغ پورته کی او تر نورو پنځو کالو پوري ئې د محلي پاچهانو تر واکمنۍ لاندي خپلواک ژوند کاوه.

د حضرت عثمان له خوا احنف د قيس زوی په مرو کي تر هراته او خبيب د قرة اليربوعي زوی په بلخ او تخارستان کي او عبدالله د عمير ليثي زوی په سيستان کي حکمرانان ول، چي په ټول افغانستان کي د عربو د لښکرو پر خلاف بلوا شروع سوه، خو په کابل کي د سيستان حکمران ياغيان له منځه يووړه او کابل ئې بيا ونيو او مجاشع د مسعود زوی چي د کرمان حکمدار وو د قفص (د کوچ = کفچ او اوسني کوچي) قبيلو او د افغانستان د جنوب دگرمسير د بلوڅو سره ونښت او تر خونړيو جگړو وروسته ئې هغه تابع کړه (د ۲۹هـ = ٦۴۹م شاوخوا). د شمالي له خوا هم احنف د قيس زوی او د هغه ملگرو (تر ۳۲ هـ = ٦۵۳ع) کال پوري ټول بلخ او تخارستان تر سمنگان پوري له

یاغیانو پاک کی او ډېره موده ئې په بلخ او مرو الرود او گوزگانان او تالقان (د افغانستان په شمالي ولایاتو) کي جګړې وکړې او په همدې کال ئې د مروالرود د محلي شهزاده بازان سره چي د ډېرش زره لښکر په ملاتړ جنګېده په قصر احنف کي جګړه وکړه او هغه ئې له منځه یووړ او هم خالد د عبدالله زوی هرات او بادغیس او غور او خراسان ونیول او د سرخس محلي ساتندوی راذویه پناه وغوښته او د هرات او بادغیس او فوشنج د اسلامي حکمدار سره تر جزئې او یو میلیون درهمو منلو وروسته ئې روغه وکړه او هم په (۳۲هـ) کال کي هراتي قارن د څلوېښتو زرو تنو سره د عربو پر خلاف پورته سو، خو دا سړی هم د نیشاپور د عربي حکمران عبدالله د خازم د زوی له خوا تر سختو جګړو وروسته پر سر وټکول سو.

د (۳۰هـ = ٦٥٠م) کال په شاوخوا کي د خلیفه له خوا ربیع د زیاد زوی سیستان ته راغی او د پهره (فهرج)، زالق (جالق) تر نیولو وروسته تر هلمند پوریووت او د زرنج درې میلۍ ته ئې په (زوشت) کي سخته جګړه وکړه او د سیستان ساتندوی یا دهقان اپرویز (یا ایران د رستم زوی) د روغي له لاري ور وړاندي سو، او زرنج ئې مسلمانانو ته وسپاره، خو ربیع پر مخ ولاړ او د سنا رود او قرنین پوري ئې د رستم د آس آخورو ونیول او همداسي تر خواش (خاشرود) او بست پوري ورسېد، مگر سیستانیان تر هغه وخته تابع ول چي ربیع هلته وو، دوه کاله وروسته چي له هغه ځایه ووت، د سیستان خلک بیا وښورېدل او د ربیع نایب چي په زرنج کي وو له هغه ځایه دباندي وشاړه، ځکه نو د خلافت له خوا دا وار د پیغمبر ﷺ له نامتو اصحابو څخه یو تن چي عبدالرحمن رضي الله عنه د سمره زوی نومېد د حسن بصري او ډېرو فقهاوو سره زرنج ته واستول سو او ده په (۳۳هـ = ٦٥۳م) کال کي هغه ښار بند کی او د هغه ځای ساتندوی اپرویز (ایران) اطاعت ته غاړه کښېښووه او دوه ملیونه درهمه او دوه زره نابالغه مریان ئې ومنل، عبدالرحمن د اسلامي فقهاوو په مرسته د اسلام په خپرولو لاس پوري کی، خو په دې کي وخت د حضرت عثمان د شهادت خبر سیستان ته ورسېد، نو عبدالرحمن له خپلي خوا امیر د احمر زوی په زرنج کي پرېښوو او پخپله د بصرې خوا ته ولاړ، دا وخت د سیستان خلکو بیا د عبدالرحمن له غیابه گټه واخیسته او پر امیر ئې بلوا وکړه او دی ئې له هغه ځایه وشاړه او په دې توگه سیستانیانو بیا وکولای سوه چي د عربي حاکمانو د اطاعت له کړۍ څخه خپلي غاړي وباسي.

## د علي رضي الله عنه د خلافت وخت

(۳۵ – ۴۰هـ)

حضرت علي رضي الله عنه په خپل خلافت کي عبدالرحمن د جروالطايي زوی د سيستان حاکم وټاکه او په (۳٦هـ = ٦۵٦م) کال ئې سيستان ته واستاوه، چي دا سړی په یوه جګړه کي چي د حسکه بن عتاب سره ئې وکړه ووژل سو او عبدالله د عباس زوی چي د بصرې والي وو څلور زره تنه لښکر د ربعي بن کاس عنبري په مشرتوب د ابن عتاب د سرکوبۍ له پاره راولېږه.

ربعي بن عتاب ئې وواژه او سيستان ئې ونيو او د ثاغر بن دعور او حارث بن مره په مشرتوب تر قيقان (د بلوڅو اوسنی کلات) پوري پر مخ ولاړه.

شلو زرو قيقانانو سخته جګړه وکړه او تر خونړيو جګړو او کلابندۍ وروسته په داسي حال کي چي په زرو تنه ئې د مسلمانانو په لاس کي بنديان ول نور تيت او پرک سول (۳۸ هـ = ٦۵۸م کال) په ۳٦هـ کال د عربو يو لښکر د عبدالرحمن بن سمره په مشرتوب د سيستان او ارغنداو د ناوې له لاري پر مخ ولاړ او کابل ئې ونيو، په دې جګړه کي پخپله کابلشاه ګډون درلود، خو په پای کي ئې د عربو لښکر ته ځان وسپاره.

همدا راز د حضرت علي رضي الله عنه د خلافت په وخت کي د مرو ساتندوی ماهوي کوفې ته ولاړ او د اطاعت غاړه ئې کښېښوه، حضرت علي رضي الله عنه ده ته فرمان ورکی چي: د خراسان دهقانان او ده سالاران دي ده ته جزيه ورکي، خو خراسانيانو بلوا وکړه څو چي جعده د هبيرهٔ مخزومي زوی (چي مور ئې هاني د ابو طالب لور وه) د دوی د سرکوبۍ له پاره راغی، مګر دې سړي هم خراسان فتح نه کړای سو.

## اموي دوره

(۴۱ – ۱۳۲هـ)

په (۴۰هـ = ٦٦۰ع) کال چي حضرت معاويه د ابو سفيان زوی د حجاز له بني اميه څخه پر اسلامي هيواد بری وموند نو ده اسلامي لښکر د خراسان شمالي او جنوبي خواوو ته پر دوو جبهو راوخوځاوه، په شمالي جبهه کي د هرات خوا ته قيس بن الهيثم سلمی بادغيس او فوشنج ونيول بلخ ته ورسېد او د هغه ځای د نوبهار بودتون (معبد)

ئې وران کې او د ده تر لاس لاندې حاکم عطا خشک د بلخ پر درو سيندو ئې درې پلونه جوړ کړه، چې د عطا په پلو مشهور ول او تر هغه وروسته تر ۴۵ هـ = ٦٦٥ع کال پورې د بلخ په شاوخوا کې عبدالله د خازم زوی او په هرات او بادغيس او فوشنج او قادس کې نافع د خالد زوی او په تالقان او فارياب او مروالرود کې قيس د الهيثم زوی او په مرو کې امير د احمر زوی او د خراسان په نورو برخو کې حکم د عمرالغفاري زوی د اموي دربار له خوا اميران ول او په ۵۱ هـ = (٦٧١ع) کال چې ربيع د زياد حارثي زوی د خراسان والي سو، پنځوس زره عرب ئې د آمو پر دې غاړه ميشته کړه او تر هغه وروسته سعيد د عثمان ﷺ زوی د خراسان والي وټاکه سو، چې د عربو لښکر ئې د لومړي ځل له پاره د آمو پورې غاړې ته وخوځول او تر سعيد وروسته عبدالرحمن د زياد زوی د خراسان حکمران سو چې د معاويه تر مړيني پورې همدلته وو.

د معاويه تر مړيني وروسته د يزيد له خوا اسلم د زياد زوی د خراسان په امېرۍ وګومارل سو او ده د يزيد تر مړيني وروسته مهلب د خراسان امير کی، خو چې دی له دې ځايه ووت خلکو پر مهلب بلوا وکړه، ځکه نو سليمان د يزيد زوی پر مرو او تالقان او ګوزګان او عبدالله د خازم زوی د خراسان پر نورو برخو اميري ومونده. خو په دې وخت کې د عربو مشرانو تر منځ شخړه پېښه سوه او عبدالله خپل زوی موسی پر خپل ځای کښېناوه او پخپله ده په هرات کې بني ربيعه او بني تميم کلابند کړه او تر يوه کال جګړې وروسته چې اته زره تنه ووژل سوه هرات ئې په زور ونيو او خپل زوی ته ئې وسپاره (تر ۶۴ هـ = ٦٨٣م وروسته). عبدالله د خازم زوی د عبدالملک اموي تر وختو پورې په خراسان کې پاته سو او په (۷۲هـ = ٦۹۱م) کال وکيع د عميره زوی د خليفه له خوا وګومارل سو چې عبدالله ووژني، ده د عبدالله سر پرې کی او پر خراسان مسلط سو، مګر په (۷۸ هـ = ٦۹۷م) کال خراسان د عراق د والي حجاج له خوا مهلب ته وسپاره سو او مهلب تر مروالرود راتېر سو تر بلخه پر مخ ولاړ او له هغه ځايه تر آمو پورې ووت او تر دوو کالو پورې په ماوراء النهر کې په جګړه بوخت وو او بيا بيرته بلخ ته راوګرزېد.

په ۸۲هـ کال چې مهلب د مروالرود په زاغول کې مړ سو حجاج د ده زوی يزيد بن مهلب د خراسان په حکمرانۍ وګوماره او تر هغه وروسته ئې ورور مفضل د ابي صفره زوی د خراسان امير وو او ده په ۸۵ هـ = ۷۰۳م کال بادغيس ونيو، او په ۸٦ هـ = ۷۰۵ع کال د عربو نامتو بريالی قتيبه د مسلم زوی له سيستانه راوګرځېد او حجاج خليفه

عبدالملک ته واسطه سو څو چي قتیبه ئې د خراسان حکمران وټاکه، قتیبه مرو ته راغی او له هغه ځایه ئې بلخ او تالقان او تخارستان فتح کړه او له بلخ څخه ئې ډېر مریان ونیول او تر هغه وروسته ئې په ماوراء النهر کي په خپلو فتوحاتو لاس پوري کی. قتیبه خراسان او تخارستان او بلخ د خپلو لویو لښکري سوقیاتو مرکز وټاکه او هر وخت چي د ماوراء النهر له پرله پسې یرغلو څخه راګرځېد په بلخ او مرو او خراسان کي ئې خپل قوت نوی کاوه (۸٦ تر ۹٦ھ پوري) قتیبه کلک او کروړ سړی وو، چي د خراسان په ولایت کي ئې د تخارستان تر پایه پوري ټول مخالف عناصر د ۵۳ زرو تنو لښکر په واسطه له پښو واچول او پر سر ئې وټکول، د افغنستان د شمالي سیمو له مدافعینو څخه یو هم بادغیسی نېزک دئ چي د تخارستان د ییغو امیر له خوا حکمران وو (۸۴ھ). دی څه وخت د آمویه د دواړو غاړو په فتوحاتو کي د قتیبه ملګری وو خو چي د بلخ نوبهار ته ورسېد د خپلواکۍ بیرغ ئې پورته کی او د بلخ او مروالرود او تالقان او پاریاب (اوسنۍ میمنه) او ګوزګانان (اوسنی سرپل) خلک ئې د قتیبه پر خلاف پر ځان راټول کړه او له کابلشاه څخه ئې هم د مرستي وعده واخیسته.

قتیبه د دا بل کال (۹۱ھ) په پسرلي کي له بلخ څخه پر تخارستان یرغل وکی او په تالقان کي ئې د نېزک د لښکر سره جګړه وکړه، نېزک ماته وکړه او قتیبه د ده لښکر پوپنا کی او د نیزک ملګري ئې تر څلورو فرسخو پوري په دار وځړول، او د نیزک دوه زامن ئې ووژل، پخپله نېزک په بغلان کي خپل مرکز ته راغی او قتیبه سمنګان ونیو او تر دوو میاشتو ئې نیزک په (دژکزر) کي کلابند کی، خو وئې نه نیولای سو، څو چي په پای کي ئې سلیم نامی د روغي له پاره نېزک ته ولېږه او نېزک ئې په بې ځایه وعدو قتیبه ته بوت، خو قتیبه نېزک او د ده دوه ورېرونه سول او عثمان سره له ۱۲ زرو ملګرو ووژل او په دې توګه ئې د افغانستان ټول شمالي ولایات له اغتشاشه پاک کړه (۹۱ ھ = ۷۰۹م). خو قتیبه د اموي سلطنت د مرکز او ولید بن عبدالملک مخالف سو او په خراسان کي ئې په بغاوت لاس پوري کی. اموي دربار تر ډېر زیار وروسته دی د خپل لښکر د یوه مشر وکیع نامي په واسطه وواژه (۹٦ ھ = ۷۱۴م) تر قتیبه وروسته تر ډېري مودې پوري څه مهمه پېښه و نه سوه، خو خلګ تل د بني امیه مخالف ول او غوښتل ئې چي خلافت بیرته آل رسالت ته په لاس ورسي، څنګه چي بني امیه د بني هاشم او د امامت له کورنۍ سره دښمني درلوده، ځکه نو حضرت یحیی د زید زوی (د علي رضي الله عنه له اولادې) له کوفې

ځخه د بلخ په نیت راوخوځېد، د بلخ امیر چي د اموي دربار ګومارلی سړی او نوم ئې عقیل د مفضل زوی وو دی ونیو او بندي ئې کی، خو په دې وخت کي (۱۰۵هـ = ۷۲۳ع) اموي هشام مړ سو، او ولید د یزید زوی د خراسان امیر نصر سیار ته لیک واستاوه چي یحیی ایله کي، مګر یحیی تر ایله کېدو وروسته په ګوزګانان کي د اویا تنو سره د اموي ګومارل سوو کسانو په لاس کښېووت او تر یوې سختي جګړې وروسته شهید سو (د ۱۲۵هـ د برات میاشت) او د ده مړی د ابو مسلم تر منځ ته راتلو پوري په دار وو.

د (۱۰۷هـ = ۷۲۵ع) تر شاوخوا پوري له نورو پېښو ځخه په غور او غرجستان کي د خراسان د عربي حکمران اسد د عبدالله د زوی پرمختګ او د غرجستان د محلي حکمدار (نمرون) او د غور د خلکو سره د ده جګړه وه، چي په دې جګړه کي د دې سیمي ښوربښت آرام او نمرون ئې د اسلام په دین کي داخل کی.

## خو په جنوبي جبهه کي:

په (۴۳ هـ = ٦٦٣ع) کال معاویه بیا عبدالرحمن بن سمره د دوهم ځل له پاره د سیستان د حکمدار په حیث راواستاوه او نوموړی تر ۴۴هـ کال پوري د دې سیمي ټولي ناآرامۍ آرامي کړې او تر هغه وروسته د بست او کش (د کندهار کشک نخود) او داور (هلمند پر غاړه زمینداور) او رخج (اراخوزیا، د ارغنداو د ناوې) خوا ته پر مخ ولاړ او د زور غره ته (د زمینداور او غور تر منځ) او د هغه ځای لوی بودتون ته ورسېد او هغه لوی د سرو زرو بت چي سترګي ئې د یاقوت وې د عبدالرحمن په لاس مات کړه سو، تر هغه وروسته عبدالرحمن د زابل او ترنک ناوې ته تر غزني او کابل پوري ولاړ او دا ښار ئې تر کلابندۍ وروسته د منجنیق د ډبرو په ویشتو ونیو او تر څه مودې هلته پاته سو. په دې جګړو کي په ۴۴هـ کال یو فاضل صحابي ابو رفاعه عبدالله عدوي تمیم د اسید زوی (او په بل روایت ابو قتادة العدوی) په کابل کي شهید سو، چي قبر ئې په کابل کي مشهور دئ.

په همدې کال ابن سمره یو لښکر د فارس الفرسان مهلب د ابي صفره د زوی په مشرتوب شرقي ولایاتو ته وګوماره، مهلب له کابله پېښور ته پر مخ ولاړ او کابلشاه ئې چي په لار کي ئې د اوو ژنده پیلو په قوت (چي د هر پیل سره څلور زره سپاره ول) شخصاً دفاع کوله مات کی او بنه او لاهور ئې د سند د سیند راسته غاړې ته د مردان په ناوه کي ونیول، بیا نو عبدالرحمن، مهلب د سپه سالارۍ په منصب سرلوړی کی او ده د سند ها

غاړې ته ګام واخیست او تر ملتان تېر سو، قندابیل (ګندهابهیل د بلوچستان د کلات په شاوخوا کې د قصدار په پنځه فرسخې کې پروت دئ) او قیقان (کلات) ئې ونیول او دا د خیبر ها خوا ته د کابل له لارې د عربو لومړی لښکرکښي وه.

په ۴٦ هـ کال ربیع الحارثي د سیستان والي سو او په ۴٦ هـ کې ئې پر بست او رخج (رخذ) یرغل وکی او د رتبیل (د زابلستان د پاچا) سره ونښت، او هغه ئې مات کی. ربیع په زابلستان او د ارغنداو په ناوه او سیستان کې د خراج او محاسبې دېوان جوړ کی او دا هیواد ئې د حسن بصري په مرسته تر اسلامي ادارې او قوانینو لاندې راووست، تر هغه وروسته په ۵۱ هـ = ٦۷۱ ع کې عبدالله د ابي بکرة زوی سیستان ته راغی او د هغه ځای د ګبرګانو (زردشتیانو) سره ونښت او بیا تر بست او رخج او کابل پورې پر مخ ولاړ او د رتبیل سره ئې جګړه وکړه او په دوه ملیونه درهمه ئې ورسره روغه وکړه او رتبیل ورتسلیم سو، دی بیرته سیستان ته ولاړ.

په ۵۹ هـ = ٦۷۹ ع کال د معاویه له خوا عباد د زیاد زوی د سیستان حکمران وټاکل سو، دی هم له هلمنده تېر او تر کندهار او کابله ورسېد او دا عباد د معاویه د وختو تر پایه د سیستان حکمران وو، هغه وخت چې یزید د شاهۍ پر تخت کښېنوست عباد د ۲۰ ملیونه درهمو او نورو مالو سره چې د کابل له غنایمو څخه ئې د سیستان په خزانه کې راټول کړي ول، بصرې ته ولاړ او د ٦۲ هـ = ٦۸۱ ع کال په لومړیو میاشتو کې یزید د زیاد زوی د سیستان په امیرۍ او ابو عبیده د زیاد زوی ئې په سپاه سالارۍ وګومارل سوه او سیستان ته راغله، په دې وخت کې بیا د افغانستان خلکو د کابل د پاچا په مشرۍ پر عربي ګومارل سوو بلوا وکړه او د خپلواکۍ د بیرته اخیستلو له پاره پاڅېدل، یزید او ابو عبیده پر کابل یرغل وکی خو د ډېر سخت مقاومت سره مخامخ او پخپله یزید د ډېرو مسلمانانو سره ووژل سو او سپه سالار ابو عبیده په کابل کې بندي سو، نو ځکه د اموي له درباره طلحة الطلحات او ورور ئې عمر د سیستان د تنظیم له پاره راغله او د عربو هر یو سردار د افغانستان د یوې یوې غربي ناحیې واګې په لاس کې واخیستلې او هغه وخت چې مروان الحکم په شام کې د اموي پاچهۍ پر تخت کښېنوست، عبدالعزیز د عبدالله عامر زوی ئې چې د پلار او نیکه څخه ئې د سیستان په چارو کې تجربه درلوده د سیستان حکمران کی او ده تر ٦۴ هـ وروسته په سیستان کې د طلحه لښکر راغونډ کی او څنګه چې د افغانستان خلکو د عربي حکمرانانو له اطاعت

څخه غاړه غړولې وه نو د بست او کابل خوا ته ئې مخه کړه او د زابل د پاچا رتبیل سره بیا ونښت او هغه ئې مات کی او د کابل او زابل تر نیولو وروسته د ډېرو ولجو او زیاتو مریانو سره سیستان ته راوګرځېد او دی تر ۷۲ هـ = ٦۹۲ع کال او اموي عبدالملک تر وختو پوري په سیستان کي امیر پاته سو، څو چي عبدالملک په همدې کال حجاج د سیستان امیر وټاکه او حجاج له خپلي خوا امیه د عبدالله زوی سیستان ته واستاوه، ده په ۷۴هـ کال پر بست یرغل وکی او د زابل د پاچا رتبیل سره ئې جګړه وکړه او دی ئې په یو خروار زرو او دوه میلیونو درهمو مجبور کی او هم ئې له هغه څخه د ځان له پاره درې سوه زره درهمه واخیستل، په ۷۵ هـ = ٦۹۴م کال کي عبدالملک اموي عبدالله د سیستان له امیرۍ څخه معزول کی او د ده پر ځای ئې موسی د طلحه زوی واستاوه، خو څنګه چي د سیستان چاري ګډي وډي سوي، بیا همغه عبیدالله د ابي بکره زوی (عبیده بن بکره) چي د سیستان په چارو ښه خبر وو د نیمروز چارو ته وګومارل سو. ده په ۷۸هـ کال یو لوی لښکر د حریش بن بسطام په سپه سالارۍ سیستان ته راووست او د زرنج ښار ئې ونیو او د بکوا د دښت له لاري ئې پر بست او زابل او کابل یرغل وکی، خو رتبیل دا لښکر له منځه یووی او د جیش الفنا په نامه یاد سو، او عبیدالله ئې د ۷۰۰ زرو درهمو په ورکولو مجبور کی او روغه ئې ورسره وکړه (۷۹هـ). څنګه چي عبیدالله د دې ماتي له ویره په بست کي مړ سو نو د ده زوی بوبر دعه د رتبیل سره ونښت او له هغه څخه ئې ۷۰۰ زره درهمه واخیسته او سیستان ته ولاړ او له هغې خوا حجاج لس زره مجهز سپاره (جیش الطواویس) د عبدالرحمن بن اشعث په امیري په ۸۰ هـ = ۷۰۰م کال سیستان ته راولېږل.

عبدالرحمن چي سیستان ته راورسېد، د خوارجو ستر سالار همیان د عدی زوی د غښتلي لښکر سره په سیستان کي له ده سره جګړه وکړه، خو همیان مات سو او عبدالرحمن د خوارجو زیات مشران ووژل او بیا ئې پر بست حمله وکړه او تر هغه وروسته ئې د زابل د رتبیل سره سخت جنګ وکی او د زیاتو اولجو سره سیستان ته ولاړ او څنګه چي عبدالرحمن ته په سیستان او زابل او کابل او سند کي لوی قوت په لاس ورغی نو یاغي سو او د حجاج سره د جنګ له پاره عراق ته ولاړ (۸۲هـ). خو ماته ئې وکړه او بیرته د سیستان زرنج ته راغی، په دې وخت کي حجاج د شمالي خراسان امیر مهلب ته لیک واستاوه او هغه مفضل د لوی لښکر سره د عبدالرحمن د سرکوټلو له پاره

وگوماره، عبدالرحمن له سیستان څخه د بست خوا ته پر شا سو، او د مفضل لښکر ورپسې ولاړ او د بست او رخد تر منځ ئې سخته جګړه وکړه، عبدالرحمن مات سو او د زابلستان رتبیل ته ئې پناه یووړه، خو حجاج، عماره بن تمیم رتبیل ته استازی واستاوه او ټول مالي تکلیفونه ئې هغه ته وبخښل او د تل له پاره ئې د دوستۍ وعده ورکړه. رتبیل عبدالرحمن او د هغه ملګری ابوالعنبر ئې ونیول او غوښتل ئې چي د حجاج استازي ته ئې وسپاري، خو هغو دواړو ځانونه له بامه راواچول او مړه سول. دا پېښې د کندهار د ارغنداو د ناوې په رخج (رخد) کي تر (۸۴ – ۸۵ھ) کال پوري پېښې سوې.

تر دې وروسته په ۸٦ ھ = ۷۰۵ع کال مسمع د مالک زوی سیستان ته وګومارل سو، ده د ابو خلده خارجي سره جګړې وکړې او هغه ئې ونیو، خو څنګه چي مسمع په همدې کال مړ سو د ده پر ځای قتیبه د مسلم زوی راغی او چي قتیبه شمالي خراسان ته مخه وکړه، اشعث د بشر زوی ئې په سیستان کي پرېښوو، ده په ۸۸ ھ = ۷۰٦ع کال په بست کي د رتبیل سره جګړه وکړه او تر ده وروسته عمرو د مسلم زوی (د قتیبه ورور) همدغه کار تکرار کی او په اته سوه زره درهمه ئې روغه وکړه، څو کاله وروسته په ۹۴ھ کي قتیبه د مسلم زوی له خراسانه سیستان ته مخه وکړه او رتبیل له ده څخه وبېرېد او د کاله ئې یو میلیون درهمه خراج ومانه.

تر دې وروسته تر ۱۰۸ھ = ۷۲٦ع کال پوري یو شمېر کسان د سیستان په امیرۍ وټاکل سوه خو تر سیستان پر مخ نه ولاړه، د هشام اموي په وخت کي اصفح د عبدالله زوی د محمد بن جحش په سپه سالارۍ دلته راغی، دی په ۱۰۹ھ کال له سیستانه ووت او د زابلي رتبیل سره ئې سختې جګړې وکړې، چي په هغو کي پخپله اصفح او نور ډېر مسلمانان ووژل سوه او تر هغه وروسته په سیستان کي د عربي قبیلو تر منځ نزاع ولوېده او تر ۱۳۰ھ = ۷۴۷ع پوري ئې دوام وکی او د اموي دولت له مرکزه هم ډېر خلک د دې ځای د امیرانو په صفت راغله او دا دوره په سیستان کي د اموي دولت تر سقوطه په کورنیو جنګو کي تېره سوه، مګر اسلامي لښکرو د دریاب له لاري د سند پر مځکه یرغل وکی او د اموي په عصر کي ئې تر ۹٦ ھ = ۷۱۴ع کال پوري د هغه ځای مشهور ښارونه لکه ارمابیل، دیبل، نیرون، سیوستان، اشبهار، برهمن آباد، ارور (روهری) بابیه، ملتان او نور د لوی فاتح محمد بن قاسم په مشرۍ ونیول او تر هغه وروسته هم د سند مځکه د ملتان تر پایه او د پېښور تر شاوخوا پوري د اسلامي سالارانو تر امیري

لاندي پاته سوه او په دې توګه مسلمانانو د افغانستان د جبهې شا ته هم خپلو فتوحاتو ته دوام ورکړی وو، خو لکه پورته چې مو ولیدل د افغانستان خلکو له مرو او سیستان څخه نیولې تر کابل او پېښور پوري څه دپاسه یو سل کاله د عربو د بریالیو لښکرو په مقابل کې مقاومت وکی او دا غرونه تل د خونړیو جګړو ډګر وو او هغه وخت چې رتابله او کابلشاهانو په زابل او کابل کې د عربي بریالیو څخه ماته کوله، د جبهې شاته یعني ګردیز او پېښور او ویهند ته پناه وړه او د خپل قوت تر نوي کولو وروسته ئې بیرته پر کابل او زابل یرغل کاوه او د عربو ساخلوګان ئې پوپنا کول، څو چې یوه پېړۍ په دې ګیرودار کې تېره سوه او د افغانستان خلکو په دې مقاومتو کې په ډېره مړانه له خپلې خپلواکۍ څخه دفاع وکړه، خو د اسلام دین ئې هم ورو ورو ومانه، په دې وختو کې د ګندهارا ولایت له کابله تر پېښور او ویهند، کندر، سند او تکسیلا پوري د ګریکو بودیک د مدنیت او صنعت مرکز وو او په دې هیواد کې بودایي او برهمني لوی بودتونونه (معابد) موجود ول.

مآخذ: د البلاذري فتوح البلدان، طبري، چچ نامه، تاریخ سیستان، الاصابه، افغانستان به یک نظر، جغرافیای تاریخی ایران، دائرة المعارف اسلامی فتوحات عرب در آسیای میانه، خلافت د میور په قلم، معجم الانساب زمباور، تاریخ یعقوبی، د ابن اثیر الکامل، د یعقوبي البلدان، د ګردیزي زین الاخبار، مجمل فصیحی، سی – یو – کي د هیون تسنګ، راجه ترنګیني د کلهنه، د ایلیت د هند تاریخ، د افغانستان ۱ – ۲، کتاب الهند، مروج الذهب، مادر زبان دری، طبقات ناصری، د ندوی د سند تاریخ.

## د عباسیانو زمانه

**(۱۳۲ – ۲۰۵هـ)**

په افغانستان کې د راشده خلافت او د اموي امارت یو سل او دېرش کاله اسلامي دوره په کشمکش او جګړو تېره سوه او د دې هیواد خلک لومړی د عربي دولت د سیاسي او لښکري واک د خپرېدو سره مخالف ول او دوهم دا چې د بني هاشم او بني امیه تر منځ په اختلاف کې د آل هاشم پر خوا ول او وروسته تر هغو چې اسلام ئې ومانه او وسله ئې له لاسه کښېښووه تل ئې دا فرصت لټاوه چې خلافت دي بیرته بني هاشم ته ورکړه سي او د دې انقلاب په ترڅ کې ئې زیار ویوست چې خپله خپلواکي او واکمني بیا

ټينګه کړي او د همدې مقصد له پاره د خراسان يو نامتو نوميالی عبدالرحمن مشهور په ابومسلم مروزي (چي په ۱۰۰هـ کي زېږېدلی) د بنداد هرمز د زوی له مرو څخه درې فرسخه ليري د ماخان له خلکو څخه د دې بلني مخکښ (پېشوا) سو او په (۱۲۴هـ = ۷۴۱ع) کال په ۲۳ کلنۍ کي کوفې ته ولاړ او په مکه کي ئې د امام ابراهيم عباسي سره وکتل، او خلک ئې د آل عباس د بلني تايدولو ته راوبلل چي له هغه سفره بيرته وطن ته راغی، په ۱۲۹ هـ = ۷۴۹ع کال ئې د افغانستان په شمالي سيمو کي له مرو څخه نيولې تر تخارستان پوري خلک پر ځان راټول کړه او د آل عباس خلافت ئې اعلان کی او تور بيرغ ئې چي د دې بلني نخښه وه ورپاوه او پخپله لښکري چوڼۍ کي ئې د لوی اورلمبې پورته کړې، او خپل ځان ئې د (شهنشاه) په لقب ياد کی. د خراسان د اموي حکمران نصر د سيار د زوی او ابو مسلم تر منځ سخته دښمني پېښه سوه او مروان اموي په (۱۳۱ هـ = ۷۴۸ع) کال د امام ابراهيم سر د آهکو په بنۍ کي وپېچه او هغه ئې وواژه او ورور ئې عبدالله سفاح کوفې ته وتښتېد، خو ابو مسلم تر خراسان پر مخ ولاړ او د خراساني لښکرو سره په کوفه ورننووت او په ۱۳۲هـ کال ئې د کوفې په مسجد جامع کي د عباسي عبدالله سفاح په نامه خطبه وويله او د امويانو د دولت له منځه تله ئې اعلان کړه او د دې مهم کار او د آل عباس د خلافت تر بنسټ ايښوولو وروسته بيرته مرو ته راغی. ده تر (۱۳۵هـ = ۷۵۲ع) پوري خراسان منظم کی او ماوراء النهر ئې هم ونيو او په ۱۳٦هـ کال په ډېر شاهانه جبروت او برم مکې ته رهي سو، خو د سفاح ورور خليفه منصور دوانيقي د ابومسلم له ستر شخصيت څخه وبېرېد او دی ئې په (۱۳۷هـ = ۷۵۵م) کال په ۳۷ کلنۍ وواژه او خراسان ئې د عباسيانو په امپراتورۍ کي دننه وساته. خو په همدې کال د ابو مسلم د سکروټو له ډک نغري څخه بيا لمبې پورته سوې او د هرات د لمر لوېدو خوا ته د اهرواته له کلي څخه زردشتي فيروز سنباد د سلو زرو تنو لښکرو سره د ابو مسلم د خون او د خپلي خپلواکۍ د اخيستلو له پاره د عباسيانو پر ضد پورته سو او د تاري د غرب او تبرستان خوا ته پر مخ ولاړ، عباسي خليفه منصور، جهور د مرارعجلي زوی د ده جنګ ته د لوی لښکري قوت سره راواستاوه او سنباد په دې جګړه کي د خپلو شپېتو زرو پيروانو سره ووژل سو، د خراسانيانو بله هڅه په ۱۴۱هـ کال د برازبنده په مشرۍ تر سپين بيرغ لاندي وه، چي خليفه منصور خپل زوی المهدي د هغه دفع ته وګوماره، او د برازبنده قواوي ئې له منځه يوووړې او پخپله ئې هغه د جګړې په ډګر کي

وواژه او دا ماته د ۱۴۲هـ کال د ربیع الاول په ٦ د دوشنبې په ورځ وه.

په (۱۴۴ هـ = ۷٦۱ع) کال د بست او کندهار خلک هم د منصور پر خلاف وښورېدل او د سیستان د حکمران زهیر د محمدازدي د زوی سره ئې سخته جګړه وکړه او بیا په ۱۵۰ هـ = ۷٦۷ع کال د استاد سیس هروي له بادغیسه د حریش سیستاني په ملاتړ پاڅېد، خلیفه ۲۴ زره تنه لښکر د خازم بن خزیمه سره د دوی مقابلې ته راواستول، و عمرو او ابي عون د قتیبه زامنو هم د خلیفه په امر له تخارستانه پر دوی یرغل وکی او د (۷۰ زرو) په شاوخوا کي ئې د سیس پیروان ووژل او پخپله دی ئې بندي کی چي په بغداد کي ووژل سو، او د ده لور (مرجیله) هارون وکړه چي د مامون مور وه، په ۱۵۱هـ کال د زرنج ښار هم بلوا وکړه او د سیستان خلک د خپلو محلي مشرانو محمد د شداد د زوی او آذرویه د مرزبان زردشتي د زوی په مشرۍ د خلیفه منصور پر ضد وجنګېدل او د سیستان والي یزید د منصور خلیفه زوی ئې مغلوب کی، تر هغه وروسته په ۱٦۱هـ = ۷۷۷م کال یو بل سړی مشهور په مقنع د هاشم بن حکیم په نامه د مرو له دیه کازه څخه پورته سو او په هرات او بادغیس او مرو کي ئې د سپین کالیو (سپید جامګان) په نامه یوه ډله پر ځان راټوله کړه او تر آمو ها خوا ته پوري وتل او همهلته د خپلو (۳۰ زرو) تنو سره د عباسیانو د لښکرو له خوا پوپنا سول (۱٦۳هـ) او هم د (۱٦۰ هـ = ۷۷٦م) په شاوخوا کي په خراسان کي یوسف البرم پورته سو او په میمنه او مرغاب او پوشنج کي ئې د بلوا بیرغ ورپاوه، خو په یوه جګړه کي د خراسان د حکمدار یزید بن مزید له خوا بندي او په بغداد کي ووژل سو.

د سیستان په جبهه کي د سفاح په وختو کي یوه بستي سړي چي بوعاصم نومېد د سیستان امیر سو، دا وخت د عباسي دربار له خوا سلیمان کندي له خراسانه راغی او بوعاصم ئې له منځه یووی او په بست کي ئې هم د رتبیل سره جګړه وکړه او هغه ئې مات کی (۱۳۸هـ = ۷۷۵ع)، خو بیا د سیستان خلک د حضین بن رقاد په مشرۍ په (۱۴۱هـ = ۷۵۸ع) کال کي بلوا وکړه، چي لومړی د عباسي منصور له خوا هنادي السری وو تر هغه وروسته په (۱۴٦هـ = ۷٦۳ع) کي د المهدي ماما یزید د منصور زوی د سیستان د حکمران په حیث راغی، خو تر څو مودې وروسته بیرته ولاړ او د ده پر ځای په (۱۵۱هـ = ۷٦۸ع) کال معن د زایده زوی سیستان ته راغی او تر رخج (د ارغنداو تر ناوې) پر مخ ولاړ او په هغه جګړه کي چي د رتبیل سره ئې وکړه د هغه زوم ئې چي (ماوند یا ماوید)

نومېد د دېرشو زرو تنو لښکرو سره بندي ونيو او بغداد ته ئې واستاوه، خو په ۱۵۲ھ کال د سيستان خلکو د معن نس ځيري کی، په دې وخت کې په سيستان کې د خوارجو ښورښت ډېر شدت درلود او په ۱۵۹ ھ = ۷۷۵ع کال د حمزه د مالک زوی د مهدي خليفه له خوا سيستان ته راغی او سيستانی خارجي نوح ئې له پښو واچاوه، د سيستان له نورو مهمو پېښو څخه د تميم د سعيد د زوی اميري وه، چې دمهدي له درباره په (۱٦۹ھ = ۷۸۵ع) کال سيستان ته راغی او د بست او رخج خوا ته ئې لښکر ويوست او د رتبيل سره ئې جگړه وکړه او د هغه ورور ئې بندي کی او عراق ته ئې واستاوه.

خو د هارون الرشيد په وختو کې له (۱۷۱ھ = ۷۸۷ع) کال څخه جعفر د محمد طوسي زوی او تر هغه وروسته عباس د جعفر زوی په (۱۷۳ھ) کال د خراسان حکمرانان ول او بيا په (۱۷۴ھ) کال خالد الغطريف او په ۱۷٦ھ کال حمزه د مالک زوی د خراسان په اميرۍ وټاکل سوه او په (۱۷۷ھ) کال فضل د يحيی برمکي بلخي زوی د بغداد د دربار له خوا د خراسان حکمران سو او په دې ځای کې ئې يو غښتلی لښکر د خراسان د لښکر په نامه جوړ کی، چې شمېر ئې يو نيم ميليون تنو ته رسېده او ډېر نفوذ ئې پيدا کی، او په (۱۷۹ھ = ۷۹۵ع) کال له خراسانه بغداد ته وگرزېد، دی د خراسان د خلکو په قوت د عباسي د دربار له سپين روبو نوميالیو څخه سو او همدا د بلخي برمکيانو نامتو کورنۍ د يحيی بن خالد برمکي له اولادې څخه وه، چې د هارون الرشيد په وختو کې ئې دوه زامن فضل او جعفر په عباسي دربار کې وزارت ته ورسېدل، خو په پای کې د خلافت دربار د دوی له ډېر نفوذ څخه وبېرېده او څنگه چې خراسانيانو تل د خپلې خپلواکۍ د اخيستلو له پاره هڅې کولې، ځکه هارون الرشيد دا ستره کورنۍ چې د عباسي دولت ټول واک ئې په لاس کې اخيستی وو د قتل عام په واسطه پوپنا کړه (۱۸۷ھ = ۸۰۳ع). د فضل برمکي تر امارت وروسته علي د عيسی زوی او ماهان نمسي په ۱۸۰ھ کال او بيا هرثمه د اعين زوی په ۱۹۱ھ کال او عباس د جعفر زوی په ۱۹۳ھ کال د خراسان اميران ول، خو په سيستان کې د هارون د جلوس په کال بلوا وسوه، او کثير د سالم زوی د هغه ځای عربي حکمران بغداد ته وتښتېد، تر هغه وروسته عثمان د عماره زوی سيستان د ځان تابع کی، او د رتبيل سره ئې په رخج کې جگړه وکړه، او د بشر د فرقد د زوی او د سيستاني حصين سره چې د خپلو سپرو سره په بست او سيستان کې ياغي سوي ول سختي جگړې وکړې او تر هغه وروسته په (۱۷٦ھ = ۷۹۲ع) کال

داود د بشر سیستاني زوی د سیستان امیر سو او د خلافت دربار مجبور سو چي د سیستان د ښوربنتو د آرامولو له پاره پخپله له سیستاني لیاقت څخه کار واخلي، داود لومړی حصین له منځه واخیست، او سیستان ئې آرام کی خو د دې له پاره چي داود په نیمروز کي نفوذ پیدا نه کي ژر ئې موقوفه کی او د ده پر ځای په ۱۷۸ھ کال یزید د جریر زوی د سیستان په حکمراني وګومارل سو، دې سرې پر زابل او کابل یرغل وکی او تر هغه وروسته په ۱۸۲ھ کال د سیستان حکمران عیسی نامي تر کابله پر مخ ولاړ.

د دې عصر له خورا مهمو پېښو څخه یوه هم دا ده چي په ۱۸۲ھ کال په سیستان کي یو نامتو پهلوان چي امیرحمزه د عبدالله سیستاني زوی (د زوطهماسپ له نسله) وو، میدان ته راووت. دې نابغ او اتل شخصیت د خراسان د پخوانیو آزادۍ غوښتونکو او استقلال طلبو نومیالیو په پیروۍ په سیمه کي د آزادۍ ولوله توده کړه او عیسی د علی زوی د هارون الرشید حکمران ئې وشاړه او پر زرنج ئې بری وموند او په عیسی پسي تر هرات او پوشنج پوري پر مخ ولاړ، خو عیسی بیرته دی د سیستان خوا ته پر شا کی، حمزه په نیمروز کي تازه قوت واخیست او بیا ئې پر نشاپور یرغل وکی او سختي جګړې ئې وکړې او په ۱۸۸ھ کال بیرته سیستان ته وګرځېد. څنګه چي د دې نیمروزي پهلوان میدان ته راتله د عباسیانو د واکمنۍ بنسټ رېږدولی وو، او خراسانیانو او نیمروزیانو بیا د خپلواکۍ غوښتلو آسمان لړزوونکي نارې پورته کړې وې، ځکه په (۱۹۳ھ = ۸۰۸ع) کال خلیفه هارون الرشید پخپله خراسان ته راغی او حمزه د دېرش زره جرار لښکر سره د نشاپور خوا ته وخوځېد، خو څنګه چي د ۱۹۳ھ کال د دوهمي خور په میاشت خلیفه د خراسان په طوس کي مړ سو، حمزه د عباسیانو د ویر ژړلو پاته کسانو سره جګړه و نه کړه او بیرته سیستان ته ولاړ او د بلوچستان او سند خوا ته ئې مارش وکی او په ډېرو فتوحاتو بریالی سو او په (۱۹۹ھ = ۸۱۴ع) کال له دې سفره بیرته راغی او په ۲۱۳ھ کال ووژل سو. خو د ده د مړاني او پهلوانۍ نکلونه تر ډېرو پېړیو پوري د خلکو په خولو کي ول او د ملي پهلوان په حیث پېژاند کېده او د ده په پیروۍ حرب د عمیده زوی له بسته پاڅېد، دی د سیستان د خاش له خلکو څخه وو او تر ۹۹ھ پوري ئې د عباسي حکمرانانو سره جګړې وکړې او د آزادۍ غوښتلو نغری ئې تود وساته او تر هغه وروسته عباسي حاکمان سیستان ته راتله، خو حقیقي واک د آل طاهر په لاس کي وو.

مگر د افغانستان له هغو واکمنو کورنیو څخه چي د آل عباس د خلافت په جوړښت کي ئې د ابو مسلم خراساني سره ملگري وکړه د غور د سوريانو کورنۍ وه، چي د ماهوي د همهغه کهول پایځوړ وو چي دمخه ئې یادونه وسوه، له دې کهاله څخه د امويانو د دورې په پای کي شنسب د خرنک زوی د غور په غرو کي امارت درلود، او زوی ئې امير پولاد د (۱۳۰ هـ = ۷۴۷ع) په شاوخوا کي د خراسان په هڅو کي د ابو مسلم پر خوا وو، چي تفصيل به ئې د غوريانو د حالاتو په شرح کي راوړه سي.

ماخذ : طبري، البلاذري، تاريخ سيستان، طبقات ناصري، پټه خزانه، يعقوبي، تاريخ برامکه، البرامکه، انسيکلوپيډی اسلامی، ابن اثير، مروج الذهب، معجم الانساب، زين الاخبار گرديزی، افغانستان بعد از اسلام – لومړی ټوک، الکامل ابن اثير، مجمل فصيحی، ابن خلدون.

# په اموي او عباسي دوره کي

## د افغانستان اجتماعي او مدني احوال

لکه په تېرو فصلو کي چي مو وویل د خلفای راشدینو او امویانو په وختو کي ځو ځو واره د خراسان خلکو له هرات او مرو او سیستان څخه نیولې تر زابل او کابل او تخارستان پوري د عربو د سیاسي واک د خپرېدو پر خلاف وښورېدل، برهمني کابلشاهانو او رتبیلانو حتی تر هجرت وروسته د ۱۸۰ کالو په شاوخوا کي هم په کابل او زابل کي مقاومت کاوه او د بودایي او برهمني مدنیت اغېزه په کابل او زابل او تخارستان او بلخ کي پاته وه او د افغانستان د هیواد په لمر لوېدیځو سیمو لکه سیستان او هرات او گوزگانان او مرو کي هم د زردشتي ثقافت نخښي لیدلي کېدلې.

خو د خلکو مقاومت که بودایي ول او که زردشتي ډېر کلک او سخت وو او د دې هیواد خلکو نه غوښته چي د نورو د اطاعت رسۍ په غاړه کي پرېږدي. د امویانو په وخت کي د خراسان مشرانو دې مقاومت ته اسلامي بڼه ورکړه. په دې معنا چي د امویانو د امپراتورۍ برخلاف ئې د آل هاشم په طرفدارۍ وسلې ته لاس واچاوه او خراسان د آل هاشم د پناه غوښتونکو ټاټوبی سو. خو دا نکته باید هېره نه سي چي دې مقاومت که څه هم د هاشمیانو د طرفدارۍ بڼه پیدا کړې وه مگر په حقیقت کي د دې خلکو د خپلواکۍ غوښتنو پر پټ حس ولاړ وو او دلیل ئې دا دئ چي همدې خلکو د امویانو د امپراتورۍ بنسټ له بېخه ویوست او د عباسیانو د امپراتورۍ بنسټ هم د خراسانیانو په لاس کښېښود سو او یو مسلم خراساني ابراهیم امام او سفاح د بغداد منبر او تخت ته ورسول، خو څنگه چي ومو لیدل په خراسان کي پرله پسې ښورېښتونه او اضطرابونه آرام نه سوه او خراسانیان لکه چي د امویانو سره جنگېدلي ول د آل عباس سره ئې جگړه وکړه او د خپلواکۍ د گټلو له پاره په دې هیواد کي ملي پهلوانان پیدا سوي دي او که د امویانو سره د خراسانیانو جگړې یوازي د آل هاشم په طرفدارۍ پوري

تړلي وای نو په بغداد کي د آل هاشم او عباسیانو تر استقرار وروسته باید په دې هیواد کي د خونړیو جګړو د اور لمبې مړې سوي وای.

خو خراسانیانو او د افغانستان خلکو یو وخت له پخوانیو ادیانو څخه د دفاع په نامه او بل وخت د شعوبیه په نوم او کله د آل هاشم د دوستۍ په نامه او یو زمانه بیا د خوارجو او نورو په نامه یوازې یو مقصد پر مخ بیوه چي هغه د پردۍ سلطې له منځه وړل او د خپلواکۍ ګټل وه، چي وروسته ئې د آل طاهر او آل سامان او نورو محلي واکمنانو په واسطه هغه ستر مقصد لاس ته راووست.

د افغانستان د خلکو له پاره دا دوه سوه کلنۍ جګړه ګټوره وه، په دې معنا چي د اسلام دین ئې د هغه د نوي ترقۍ خوځښوونکي روح سره ومانه، خو د پرله پسې جهاد په نتیجه کي د محلي حکومتو خاوندان هم سوه او خراساني ثقافت ئې د اسلامي او عربي روایاتو سره ګډ کی او راتلونکي وخت ته د اسلام د خپرولو او دفاع له پاره قوي او غښتلي عناصر سول. حال دا چي پخواني دینونه ئې زاړه سوي او له خرافاتو او اوهامو ډک ول او په هغه عصر کي ورځني ګټه اخیستل ممکن نه وو.

په لومړیو دوه سوه هجري کلو کي د اسلام دیانت د زردشتي او بودایي او برهمني ادیانو ځای په افغانستان کي ونیو او عربي ژبه هم د خپل رسم الخط سره په ټول افغانستان کي خپره سوه او تر دوه نیم سوه کالو پوري هم د افغانستان په لمر ختیځو سیمو کي د سنسکریت ژبه او رسم الخط د عربي کوفي لیک سره یو ځای موجود ول، لکه چي هغه ډېره پخوانۍ کتیبه چي په توچي (لمر ختیځ افغانستان) کي (۲۴۳ هـ = ۸۵۷ع – جمادی الاولی) پر یوه ډبره لاس ته راغلې په عربي او سنسکریت دواړو ژبو ده او اوس د پېښور په موزیم کي خوندي ده.

په خراسان او هرات او سیستان کي هم پهلوي ژبي خپل ځای په همدې وخت کي دري ژبي ته پرېښوو او اسلامي علومو تفسیر، حدیث، رجال او سیر هم په افغانستان کي رواج وموند او په زرنج او بلخ او هرات او مرو او نورو کي لویي اسلامي مدرسې منځ ته راغلې او هم لوی اسلامي پوهان او نامتو زاهدان لکه امام اعظم ابو حنیفه د ثابت زوی او د زوطي نمسی (د کابل د شمال) او ابن المبارک مروزي او محمد د کرام سیستاني زوی (د کرامي مذهب مؤسس)، او ابراهیم بن طهمان باشاني (هراتي) محدث او ابو اسحق ابراهیم بن یعقوب جوزجاني محدث او ابراهیم ادهم بلخي صوفي

او ابو سليمان موسی جوزجاني حنفي فقيه او ابراهيم بن رستم مروي د بو حنيفه له ملگرو څخه او ابو داود سجستاني د مشهور سنن خاوند او ابو حاتم سهل بن محمد سيستاني محدث او ابو جعفر بلخي منجم او ابو قتيبه مروزي مؤرخ، او بشار بن برد تخارستاني عربي شاعر او علي بن الجهم خراساني عربي شاعر او نور له دې هيواده پاڅېدل او د عباسي خلافت دربار ته عجمي مدنيت، آداب او د ادارې اصول هم د خراسان خلکو لکه برمکيان او نورو يووړه او د عربي ژبې کلمات په دري ژبه ګډ او دا اوسنۍ پارسي ځني جوړه سوه او په دې مځکه کي عربي او خراساني ګډ مدنيت منځته راغی او يو زيات شمېر بريالي عربان د دې مځکي په لويو ښارو کي لکه هرات او زرنج او بلخ او مرو او نورو کي مېشته سول او په دې توګه د افغانستان د آريايي نژاد سره د عربي (سامي) نسل ګډون او په دې هيواد کي د عربي آدابو او دود او دستور خپرېدل شروع سوه، د دې ځای پر اوسېدونکو عربانو سربېره خورا ډېر عربي وسله وال عسکر هم په خراسان کي په جګړه اخته ول، چي د ابن اثير په قول د اموي په وختو کي د قتيبه په مشرۍ نه زره د بصرې خلک، لس زره د بکر له ټبره او لس زره د تميم له قبيلې څخه او څلور زره له عبد قيسه او لس زره له ازد څخه او اووه زره د کوفې له خلکو ول، چي ټوله اووه څلوېښت زره خالص عربي نژاده لښکر او اووه زره هم موالي د حيان بنطي تر مشرۍ لاندي ول، قتيبه له وطني خلکو څخه هم تل لښکر جوړاوه، لکه چي د خراسان له خلکو څخه ئې هم له لسو څخه نيولې تر شلو زرو تنو پوري لښکر راغونډ کړی وو چي د عربي لښکرو سره ئې خدمت کاوه، او له دې څخه ښکارېږي چي په خراسان کي د عربي دولت وسله وال عسکر تر سلو زرو زيات نه ول او همدې شمېر اسلامي فتوحات په ماوراء النهر کي د چين تر حدودو پوري رسولي ول.

په اموي او عباسي عصر کي اسلامي فتوحات د سند او غربي هند زياترو ښارو ته رسېدلي ول، ځکه نو د هند زياتره پيداوار لکه دواوي او عقاقير او اودلي شيان او هندي مصنوعات د ملتان او ديبل او منصوره او ويهند او ارور (رهري) او قندابيل (ګنداوي) او قزدار (اوسنی خضدار) او د توران او د سند د ناوې د نورو ودانو ښارو له تجارتي مرکزو څخه له کشميره نيولې د (سند) د مهران د سيند تر مجری پوري د زابل او سيستان او هرات له لاري ايران او عراق او عربي متمدنو ښارو ته لکه بغداد او دمشق او نورو ته د تجارت په توګه وړل کېده او د اصطخري او ابن حوقل په وينا د

قزدار او مکران او توران (اوسني بلوچستان) د فانیذ (سپیني شکري) تجارت په ټول خراسان او عراق کي کېده او لکه البشاري مقدسي چي وایي په توران کي د دانه داري سپیني شکري د اعلی ډول لویي کارخانې وې، همدا راز د پنجاب تجارتي کاروانونه د اوسني پښتونستان له لاري کابل او غزنه او خراسان او بخارا او ماوراء النهر ته هم تله او له هغې خوا ئې چیني مالونه هند ته وړه. د خراسان او مرو وربښمین ټوکران د تجارت مشهور مالونه ول چي کاروانونه به ئې چین ته هم تله او د هید په وینا دې تجارت په عباسي عصر کي بشپړه پراختیا موندلې وه، چي هندي لوښي او د خراسان وسپنه او د هند او سند عود او قرنفل او نارکیل او د سپښسو کالي او پیلان د افغانستان له لاري د عربي هیواد لمر لوېدیځو سیمو ته وړل کېده، څنګه چي په خراسان کي د اسلامي حکومت د ټینګښت په سبب امنیت ټینګ وو نو ځکه د سامانیانو په ښارو کي د چین تجارت هم زیات سو او هم له بلي خوا څنګه چي د سلطان محمود فتوحاتو د هند ارت هیواد د عربي هیوادو سره ونښلاوه نو د منځنۍ آسیا د هیوادو او ټول خراسان تجارتي اوضاع هم ځرګند پرمختګ وکی.

ابو زید سیرافي وایي چي: له هندوستانه پرله پسې کاروانونه خراسان ته او له هغه ځایه هند ته ځي او راځي، د دې لویو کاروانو لار پر زابلستان ده چي له همدې ځایه قزدار او کیزکان (قلات) او مکران ته تله، او د شال (کویته) او بولان د درې او سیبۍ (سیوی) له لاري ئې د سند سره تجارت کاوه او د ابن اثیر په قول د هرات اودلو شیانو ډېر شهرت درلود، چي په همدې سبب ئې په عربي ژبه د هراتي کالو سوداګر ته (هراء) وایه او هغه وخت چي مقریزي د مصر د مشهورو منسوجاتو د ډولو نومونه اخلي یوه ټوټه د خراساني ټوټې په نامه هم د هغو ښکلو زربفتو او مخملو او نورو ټوټو په ردیف کي یادوي او له دې څخه ځرګندېږي چي په مصر کي عربي صنعتګرانو هم په همغه خراساني نامه او جنسیت د خراساني منسوجاتو تقلید کاوه.

د جوزجاني په قول: بلهاري هم د هند له تجارتي مرکزو څخه وو، چي هلته د هند او خراسان سوداګر اوسېدل او د مشکو سوداګري ئې مشهوره وه او همدا راز جلوت او بلوت او لمغان او دینور او ویهند د هند او خراسان تجارتي مرکزونه ول، چي د لومړي یاد سوي ښار تجارتي مالونه ګنی (نیشکر) او غوایي او پسونه او د وروستي یاد سوي ښار تجارتي مالونه مشک او مرغلري او ګران قیمته کالي ول.

خو د حدودالعالم د مؤلف جوزجاني په قول خراسان يو ودان او د نعمتو ډک ملک وو چي د سرو او سپينو زرو او جواهرو کانونه پکښې ول او د اسانو او جامو او پېروژو او داروګانو او ورېښمو او مالوچو د پيدا کېدو ځای او تجارتي لوی مرکز ئې نيشاپور وو، خو د خراسان د ښارو نامتو پيداوار دا ول: له هراته کرباس او شيرخشت او دوښا، له مالن څخه طايفي وڅکي (مويز)، له کروخه کشمش، له مرو څخه اعلی مالوچ (پنبه) او قزين جامونه او سرکه، له ګوزګانان څخه ښه آسان او کراستي او د آس تانګونه او زيلو او پلاس، له تالقانه وڅکي او کراسته، له کندرمه کراسته، له بلخه ترنج او نارنج او ګنی (نيشکر) او نيلوفر، له تخارستانه پسونه او غله او راز راز مېوې، له سمنګانه (اوسني ايبکه) وڅکي او مېوه، له بنجهيره (اوسني پنجشېره) سره زر او سپين زر، له غوره پرده او زغره او ډال او ښه وسله، له سيستانه فرشونه او زيلو او خرما او انکوزه، له بسته (د هند لوی تجارتي مرکز) وچي مېوې او خمتا (کرباس) او صابون، له درغشه (زميندا ور) زعفران، له بدخشانه سپين زر او سره زر او بيجاده او لاجورد.

الماني فون کريمر وايي چي: د شبرقان (اوسنی شبورغان) توري د عباسيانو په هيواد کي ډېري مشهوري وې او د هندي تورو (مهند) تجارت هم له دې لاري کېده، د تالقان کراستي او نور د اوارېدو وړين شيانو او قالينو شهرت درلود او د هغه ځای تاوده اودلي شيان په تېره بيا چوخه او پټو ډېر مستعمل ول، هغه لوی ښارونه چي په خراسان او سيستان او زابل کي د تجارت مرکزونه ول د دې هيواد د کرهڼي او تجارت او صنعت پر پرمختګ دلالت کوي.

تر کمه ځايه چي د تاريخ له پاڼو څرګندېږي د بغداد اموي او د آل عباس دولت له دې سيمو څخه دا لاندي عايدات د خراج، جزيې، زکاة، د غنايمو د خمس او د دولتي مځکو د عايداتو او عشور په نامه درلودل:

د جهشياري او ابن خلدون په قول:

له خراسانه: (۲۸۰۰۰۰۰) درهمه، (۲۰۰۰) د زرو ټوټې، (۴۰۰۰) غاتري، (۱۰۰۰) مريان، (۲۰۰۰۰) کالي، (۳۰۰۰۰) رطله هريړه.

له سيستانه: (۴۰۰۰۰۰۰) درهمه، (۳۰۰) کالي، (۲۰) زره رطله فانيذ (سپينه شکره).

له توران او مکران څخه: (۴۰۰۰۰۰) درهمه، خو د قدامه بن جعفر په قول د روغي

په وخت کې د عباسي دولت عايدات په دې توګه ول:

له خراسانه: (۳۷۰۰۰۰۰) درهمه.

له سيستانه: (۱۰۰۰۰۰۰) درهمه.

له توران او مکران څخه: (۱۰۰۰۰۰۰) درهمه. خو د سيستان د تاريخ مؤلف تر اسلام وروسته د سيستان عمل د پخوانۍ روغې په اساس داسې ليکي:

د سيستان له کورتانو: بست، رخد، کابل، زابل، نوزاد، زمينداور، اسفزار، خجستان، زر زر درهمه (يو مليون).

د خراسان عمل د اسلام د حد تر پايه د ۲۰۰هـ په شاوخوا کې: اته دېرش مليونه درهمه.

بيا همدا مؤلف د سيستان د خراج په شرح کې وايي چې: د سيستان ټوله ماليه (۵۳۹۷۰۰۰) درهمه دي، چې له هغې جملې څخه (۸۵۰۰۰) درهمه خالص عايدات او جزيه، او پاته (۵۳۱۲۰۰۰) درهمه د خراج ډولونه دي.

خو ابن خرداذبه د (۲۳۲هـ) په شاوخوا کې له معتبرو رسمي اسنادو څخه مهم معلومات راټول کړي دي چې د خلافت اداري او مالياتي نظام همهغه وو، چې په خراسان کې تر اسلام دمخه رواج درلود.

د طلا پيسې دينار وې، چې ۲۵، ۴ طلا ئې درلوده او د سپينو زرو پيسې درهم وې چې ۹۷، ۲ سپين زر ئې درلوده. په جنسي مالياتو کې کيلی رواج وو، چې کر (د لومړي توري په پېښن) ئې ورته ويل او د شپږ خروارو سره برابر وو.

ابن خرداذبه د خلافت د شرقي مځکو حاصلات داسې ليکي:

سيستان: (٦٧٧٦٠٠٠) درهمه.

رخج او زابلستان او زميندا ور تر تخارستان پورې (۱۴۷۰۰۰) درهمه.

سرخس: (۳۰۷۴۰۰) درهمه.

مروشاهجان: (۱۱۴۷۰۰۰) درهمه.

مرو رود: (۴۲۰۴۰۰) درهمه.

بادغيس: (۴۴۰۰۰۰) درهمه.

هرات او اسفزار او کنج رستاق: (۱۱۵۹۰۰۰) درهمه.

پوشنګ: (۵۵۹۳۵۰) درهمه.

تالقان د مروالرود او بلخ ترمنځ: (۲۱۳۰۰) درهمه.

غرجستان د هرات او مرو رود او غزنه ترمنځ:

(۱۰۰۰۰۰) درهمه او دوه زره پسونه.

د تخارستان سیمي د بلخ او جیحون ترمنځ:

زم: (۱۰٦٦۰۰) درهمه.

فاریاب: (۵۵۰۰۰) درهمه.

قبروغن (قته غن؟): (۴۰۰۰) درهمه.

کوزګانان: (۱۵۴۰۰۰) درهمه.

بونذه: (۲۰۰۰) درهمه.

برمخان او بنجار: (۲۰٦۵۰۰) درهمه.

ختلان او بلخ او غرونه ئې: (۱۹۳۳۰۰) درهمه.

مندجان: (۲۰۰۰) درهمه.

خلم: (۱۲۳۰۰) درهمه.

روب او سمنګان: (۱۲٦۰۰) درهمه.

بامیان: (۵۰۰۰) درهمه.

کابل: (۲۰۰۵۰۰) درهمه نغد او دوه زره مینځي د شپږ سوه زرو درهمو په قیمت).

ریوشاران: (۱۰۰۰۰) درهمه.

مکران: (۱۰۰۰۰۰۰) درهمه.

شغنان: (۴۰۰۰۰) درهمه.

وخان: (۲۰۰۰۰) درهمه.

کست (خوست): (۱۰۰۰۰) درهمه.

اخرون: (۳۲۰۰۰) درهمه.

په دې عایداتو کي هغه پیسې چي له جزیې څخه لاس ته ورتلې له هندوانو او بې له اسلامه د نورو آسماني ادیانو له خاوندانو څخه اخیستلي کېدې، او د امام ابو یوسف رحمة الله علیه په قول په خراسان کي د هر یوه سړي پر سر درې دیناره ټاکل سوي ول، چي بېوزلي او غریبان پکښې شامل نه ول او دا مبلغ د اموي عبدالملک په وختو کي ټاکل سوی

وو، خو د خراج په ډول کې د مقریزي په قول په اموي عصر کې له تاکستاني یو جریب څخه لس درهمه او له نخلستان څخه اته درهمه او د ګنیو (نیشکر) له کښت څخه شپږ درهمه او له مېوه لرونکي مځکي څخه پنځه درهمه او د غنمو د کښت له مځکو څخه څلور درهمه او د اوربشو له مځکې څخه دوه درهمه اخیستل کېدل.

اوس موږ له پورتنیو تاریخي کتنو څخه یوه نتیجه راباسو، او هغه دا چې د خراسان له مځکو څخه له نیشاپوره نیولې د سند تر سینده او له جیحونه تر بحیرهٔ عرب پوري د عربي دولت ټوله مالي عواید د قدامه او د سیستان د تاریخ د نامعلوم مؤلف په قول د ۴۴ ملیونو درهمو په شاوخوا کې او د ابن خرداذبه په قول د ۴۵ ملیونو درهمو په شاوخوا کې ول او که د مقریزي د قول په اساس د هرو لسو درهمو وزن له ٦ څخه تر ۷ مثقالو پوري سپین زر وګڼو او هر مثقال پنځه افغانۍ قیمت ولري نو ټوله به ۲۲۵ ملیونو افغانیو په شاوخوا کې وګڼل سي.

د عربي دولتو د مالي درامد په باب کې راز راز معلومات سته، خو د مصارفو څخه ئې خبر نه یو، یوازي د سیستان د تاریخ نامعلومه مؤلف په سیستان کې د دولت د مصارفو یو دقیق فهرست لیکلی دئ چې له هغه څخه په هغه وخت کې د حکومت د مصارفو ډولونه او اندازه معلومېدای سي، او موږ هغه راوړو څو چې د عربي حکومت د ولایاتو په یوه ولایت کې د دولتي عوایدو او مصارفو څه نه څه یوه کوچنۍ موازنه د اوسني عصر د مروجو بودجو پر اساس لاس ته راسي:

نوموړی مؤلف د سیستان د خراج عمل د (۵۳۹۷۰۰۰) درهمو په شاوخوا کې لیکي او مصارف ئې داسي بیانوي:

خاص د سلطان له پاره: (۲۰۰۰۰۰۰) درهمه.

د تیموق؟ جوړول: (۲۰۰۰۰۰۰) درهمه (ښایي چې د هلمند د رود بند وي).

د باړې جوړول: (۱۲۰۰۰) درهمه (د ښار د کلا جوړول مقصد دي).

د نورو کلاوو جوړول: (۵۰۰۰۰) درهمه.

د بندیانو له پاره: (۳۰۰۰۰) درهمه.

په جامع جومات کې د روژې مصارف: (۳۰۰۰۰) درهمه (هر قاري او د مسجد خادم ته د روژې په میاشت ۲۰ درهمه).

د مؤذنانو له پاره: (۲۰۰۰۰) درهمه.

په هر کال کې د سلو مریانو آزادول: (۵۰۰ درهمه).

د روغتون له پاره: (۱۰۰۰۰) درهمه.

د بندو تړل: (۲۵۰۰۰) درهمه.

د شرط (پولیس) له پاره: (۲۵۰۰۰) درهمه.

د خراج د بندار (د مالیې رئیس) او د هغه د منشیانو له پاره: (۵۰۰۰۰) درهمه.

د صاحب مظالم (عدلیه) له پاره: (۲۰۰۰۰) درهمه.

د ریګو او شګو د تړلو له پاره: (۳۰۰۰۰) درهمه.

پرت (د رودو د خاورین بند له پاره): (۵۰۰۰۰) درهمه.

د هلمند د پلو، لارو او کښتو د ویالو له پاره (۳۰۰۰۰) درهمه.

پر پورتنیو ټاکل سوو مصارفو سربېره د سیستان د تاریخ مؤلف دا اشاره هم کوي چي نور پاته عایدات ئې د ابناء سبیل او ضعیفانو او غریبانو د کالو او نفقې او نورو هغو مصارفو له پاره سپمول او ساتل چي د والي په اختیار ول.

سربېره پر هغو سکو چي په اموي او عباسي دولتو کي د خلفاوو په نامه په ټولو اسلامي ولایاتو کي وهلي کېدلې په خراسان کي د سند تر سینده د پخوانیو غیر اسلامي دولتو ځیني سکې هم رایجي وې او کله هم د ګندهارا او پنجاب او باختر د ساساني پاچهانو یا بودایي شاهانو پر پخوانیو سکو د خلیفه نوم او کلمۀ طیبه هم وهل کېده.

د خلافت والیان چي خراسان ته راتله دوی حق درلود چي په خپل نامه سکه ووهي. لکه حمید د قحبه زوی (د ۱۵۱ هـ په شاوخوا کي) او عبدالملک د یزید زوی (د ۱۵۹هـ په شاوخوا کي) او جعفر د محمد زوی (د ۱۷۱هـ په شاوخوا کي)، او علي د عیسی زوی (د ۱۸۰ هـ په شاوخوا کي) او هرثمه د اعین زوی (د ۱۹۱هـ په شاوخوا کي) او غسان د عباد زوی (د ۲۰۲هـ په شاوخوا کي).

د بغداد د عباسیانو د وخت هغه والیان ول چي په نیشاپور کي ئې په خپلو نومو سکې وهلي دي، چي نوموني ئې سته او هم ابو مسلم خراساني د (۱۳۲هـ په حدودو کي) د ابو مسلم عبدالرحمن بن مسلم په نامه په مرو کي سکه وهلې ده چي تر اوسه سته.

د اسلامي لښکرو د فتوحاتو سره سم طبعاً د عربي دولت سکې په ټولو مفتوحه هیوادو کي رواج سوې او لکه مقریزي چي لیکي په اسلامي عصر کي حضرت عمر

فاورق ﷺ د لومړي ځل له پاره د (ساساني) کسروي درهمو په وزن او شکل او صورت سکې خپرې کړې او پر هغو باندې ئې لااله الا الله وحده و محمد رسول الله وليکه، د دې درهمو وزن هر لس درهمه شپږ مثقاله سپين زر او حضرت عثمان ﷺ پر هغو باندې الله اکبر وليکه، د امير معاويه په وخت کې زياد د ابو سفيان زوی په بصره او کوفه کې داسې درهمونه رواج کړل چې هرو لسو درهمو ئې اووه مثقاله سپين زر وزن درلود او پر هغه سکه چې په دمشق کې د امير معاويه له خوا وهلې سوې د داسې انسان بڼه ليده کېږي چې توره ئې په غاړه ده، په اموي عصر کې مصعب د زبير زوی هم په عراق کې د اموي درهمو پر اساس سکه ووهله او عبدالملک اموي هم په عراق کې د حجاج په ذريعه مصورو درهمونو رواج درلود چې د هر درهم وزن شپږ دانگ (دوانيق) وو او پر هغو باندې ئې قل هو الله احد هم ليکلې وه.

تر (۲۰۰هـ) وروسته په خراسان کې د دې ځای د داخلي پاچهانو سلسله منځ ته راغله، او د خراسان پاچهانو لکه طاهريانو او سامانيانو او صفاريانو او غزنويانو چې د عباسي خليفه گانو معاصران ول، يوه په نشاپور، طوس، هرات، زرنج، بست، غزنه، بخارا، سمرقند، مرو، بلخ، ري او د خپلو هيوادو په نورو ښارو کې دارالضرب درلود او د سپينو او سرو زرو سکې ئې په کوفي رسم الخط رواج کړي وې چې د پاچا او خليفه دواړه نومونه ورباندې وهل کېده، د سلطان محمود ځيني سکې د سنسکريت په رسم الخط وهلي سوي دي او ښايي چې دا سکې د هند په هغو ښارو کې وهلي سوي وي چې سلطان محمود فتح کړي ول.

د اصطخري او ابن حوقل په وينا د افغانستان په لمرختيځو سيمو کې تر سنده پوري يوه سکه د قنهري قنهريات (گندهاري) په نامه وه چې د کابل او راولپنډۍ تر منځ (گندهارا) ته منسوبه وه او اسماعيليه او لوديه حکمرانانو په ملتان کې وهلې وه، دا سکه د عراقي پنځو درهمو سره برابره وه، او همدا شان د خالصو سرو زرو سکه د هندي درو درهمو سره مساوي وه.

لکه مقدسي چې اشاره کوي په منصوره او ملتان او کندهار او توران کې د (من) تول د مکي منه سره يو وو او بلي پيمانې ته ئې (کيجي) ويل چې په کيج او توران کې ئې تول د څلوېښتو منو سره برابر وو.

خو د اموي هيواد سياسي وېش داسي وو چې: د خراسان او ماوراء النهر ټولو

مفتوحه مځکو تر کابل او پنجاب او سنده په عراق عجم پوري اړه درلوده، او د عراق د والي له خوا دوه تنه غلامان را استول کېده چي د يوه مرکز د خراسان له پاره مرو او بل مرکز د کابل او پنجاب او سند له پاره وو، خو دې وېش په عباسي دوره کي چي په افغانستان کي اسلامي فتوحات پراخ سوه تغير ومونډ او پر څو نورو مهمو او اساسي ولايتو ووېشل سو: لومړی د خراسان ولايت چي له مرو او هرات څخه تر بلخ او تخارستان پوري پروت وو (۳۹ – د خراسان نقشه دي وکتله سي).

دوهم د سجستان ولايت چي تر کابله پوري رسېده.

دريم د توران ولايت چي تر مکران او سند پوري رسېده او په دې ولايتو کي مالي نظام او د ماليو د اخيستلو دفترونه د هغه وخت د خاصو اداري اصطلاحاتو سره موجود ول او خوارزمي په دې باب کي يوه گټوره شرح ليکلې ده او د مځکو خراج ئې هم پر درې ډوله:

لومړی محاسبه (نغدي يا جنسي).

دوهم مقاسمه (پر پيداوار ماليه).

دريم مقاطعه (هغه ماليه چي د حکومت او جاگيردار تر منځ ټاکله کېده) حکومت ته ورکاوه او په ټولو ولاياتو کي د خراج (مالياتو) او بريد (پوسته) او جيوش (عسکر) او نفقاتو دېوانونه او رسايل (مکاتبات) او صدقات او مصادرات او اوقاف او روانب (تنخواه) شرط (پيولس)، قضا (عدل) او نور موجود ول او د ابن خلدون په قول کاتب مهمه عهده درلوده چي د عربي حکمدارانو خاص باوري سړی او صاحب السر وو او څو تنه ئې په يوه وخت کي دې کار ته گومارل، رسمي فرمانونه او اسناد ټول د کاتبانو له خوا ليکل کېده او استول کېده او هغه کار چي نن ئې وزير او سکرتري کوي هغه وخت کاتبانو ته سپارل کېده، تر کاتب وروسته حاجب د وزير دربار وظيفه درلودله، چي زياتي چاري د حاجب په واسطه اجرا کېدلې، او عساکر چي د ديوان الجند يا ديوان الجيش له خوا اداره کېدل عموماً د الفرسان (سپاره) او الرجاله (پلي) پر ټولگيو وېشلي سوي او وسله ئې توري، زغره، خول، نېزه، غشی، لېندی، منجنيق، دبابه او ضبور (يو ډول ټانک) ول، د عسکرو کالي کميس او لنډ پرتوگ او څپلۍ (لکه د غرو د پښتنو کالي) ول او د لښکر کتارونه پر پنځه ډوله ول:

لومړی قلب (منځ): چي په هغه کي لوی مشر او قايد وو.

دوهم میمنه (ښی خوا).

دریم میسره (کیڼه خوا).

څلرم کتیبه یا مقدمه (دمخه خوا) له بریالیو سپرو.

پنځم ساقه تر لښکر وروسته او د لښکرو مشران هم زیاتره عربان ول.

**خود قضا نظام:**

په اموي عصر کي داسي وو، چي:

د صحابه وو او تابعینو، عالمان او صالحان د خلیفه له حضوره او یا د ولایت د حکمرانانو له خوا په مهمو ښارو او مرکزو کي د قاضیانو په حیث مقررېدل او دې قاضیانو د قرآن او سنت او اجماع او قیاس یعني د څلور گونو ادله وو سره سم د خلکو تر منځ شخړي حلولې او په خپل اجتهاد کي آزاد او د شریعت د احکامو په نافذولو کي د امیرانو د سیاست له اغېزې څخه خپلواک ول او د خلیفه عمر بن عبدالعزیز رحمة الله علیه په قول ئې دا پنځه صفات (پوهه، بې تمه والی، زغم [حلم]، په آئیمه پسي اقتدا او د پوهي او رایي د خاوند سره گډون) درلود او پر مدونو سجلو ئې د قضا فیصلې لیکلې او ځینو قاضیانو د حکومت تنخا نه اخیستله او هغه چا چي اخیستله د کاله تر زرو دینارو او د میاشتي تر لسو دیناور پوري رسېدل. همدا راز د امر معروف او نهي منکر او د تول او وزن او د بازار د معاملو د نگرانۍ او د دیني احکامو د تبلیغ له پاره محتسبان مقرر ول او په تېره بیا عربي پوهان او د امت صالحان د اسلام د دین د تبلیغ له پاره د خراسان مفتوحه هیوادو او په هغو پوري تړلو سیمو ته راتله، لکه چي د ۴۷هـ په شاوخوا کي ربیع الحارثي عربي حکمران په سیستان او زابلستان کي د حسن بصري (د خپل وخت د لوی عالم) په مرسته اسلامي قوانین نافذ کړي ول.

**مأخذونه:**

حدودالعالم، د السیایي تاریخ الاسلام - عربي - درې ټوکه، البشاري اصطخري، د البلاذري فتوح، کتاب الوزراء والکتاب، د ابن خلدون مقدمه، د سیرافي سفرنامه، د اموي عصر د تجارت تاریخ، ابن حوقل، حضارة الاسلام کتاب الخراج ابن قدامه، کتاب الهند والسند، د امیر علي مختصر تاریخ عرب، فتوحات عرب در آسیای میانه، الکامل ابن اثیر، تاریخ ادبیات فارسی د صفا، د ابن ندیم الفهرست، د پېښور د

موزیم کتیبې، تاریخ سیستان، تاریخ تمدن ایران ساسانی د نفیسي، د امام ابو یوسف کتاب الخراج، د خلفاوو په عصر کي د مشرق تهذیب (اردو)، معجم الانساب زمباور، طبقات ناصری، مفاتیح العلوم، تاریخ التمدن الاسلامی د جرجي زیدان، تهذیب و تمدن اسلامی – دري ټوکه – اردو، نفوذ الاسلامیه د مقریزي، شرق در تحت ادارهٔ خلافت، تاریخ عرب د حتی، د ګوستاولوبون تاریخ تمدن عرب.

دریمه برخه:

# اسلامي خپلواکه دوره

## طاهریان

(۲۰۵ – ۲۵۹هـ)

د دې کهول لومړی سړی طاهر د حسین زوی د مصعب نمسی د رزیق کړوسی او د ماهان کوسی دئ چې د پوشنګ (د هرات لمر لوېدو خوا ته ننني زنده جان) له مقتدرو کورنیو څخه وو. مصعب د رزیق زوی د بلاغت او ادب له نامتو پوهانو څخه تېر سوی چې د عباسیانو په وخت کې د پوشنګ حاکم وو او تر هغه وروسته ئې زوی حسین ته د (۱۸۰هـ = ۷۹۶ع) په شاوخوا کې د پوشنج حکومت ورسېد، حسین چې په ۱۵۹هـ کال په پوشنج کې زېږېدلی وو او د آل عباس له درباره د شام او بغداد حکمراني هم ورسپارل سوې وه په ۱۹۹هـ کال مړ سو او د ده زوی طاهر د خراسان له آزادي غوښتونکو زړورانو څخه منځته راغی او په اسلامي خراسان کې ئې د لومړي ملي حکومت بنسټ کېښېښوو او د خپلواکۍ د لاري د هغو تېرو فداکارانو ستر مقصد د همدې ننګیالي په مړانه سر ته ورسېد چې دوه سوه کاله ئې د دې ستر مقصد له پاره زیار ویوست، په دې تفصیل:

د هارون الرشید تر مړیني وروسته د ده د دوو زامنو امین او مامون تر منځ اختلاف پیدا سو او امین چې په بغداد کې خلیفه سوی وو علي د ماهان زوی ئې د ۶۰ زرو تنو لښکرو سره د خپل ورور جنګ ته واستاوه (۱۹۸هـ)، مګر مامون چې په خراسان کې وو څلور خراساني لښکر د همدې طاهر پوشنجي په مشرۍ ولېږل او د بغداد د لښکر مشر علي د طاهر په لاس ووژل سو او د امین لښکر ماته وکړه، طاهر پر بغداد یرغل وکی او د امین سر ئې پرې کی او مامون ئې د بغداد پر تخت کېښېناوه او ستر برم ئې وموند، چې د دې خدمتو په عوض کې لومړی د شام حکومت او د بغداد کوتوالي

وروسپارله سوه او بیا د خراسان حکمراني د ذوالیمنین د لقب سره ورکړه سوه (۱۹۹ هـ = ۸۱۴م).

طاهر چي خراسان ته راورسېد لومړی ئې د خراسان د مرکزیت په ټینګښت او د اداري په یووالي کي زیار ویوست او په دوو درو کالو کي ئې کرمان، سیستان، هرات، نشاپور، مرو، جوزجان، بلخ او تخارستان په خپل مرکز پوري وتړل او له دې مهمو فتوحاتو څخه تر (۲۰۵ هـ = ۸۲۰ع) پوري فارغه سو او د خپلواکۍ نقشه ئې طرح کړه او خراسانیانو ته ئې د زاړه برم نکلونه وکړه، وروسته تر هغه چي د ولایاتو له مرکز څخه ډاډه سو او د خراسان خلک ئې پر ځان راټول کړه د (۲۰۷هـ = ۸۲۲ع) کال د ځلرمي خور پر ۲۴ د جمعې په ورځ ئې د خراسان د خپلواکۍ اعلان وکی او د جمعې په خطبه کي ئې د مامون نوم یاد نه کی.

دا تاریخي ورځ د خراسان په تاریخ کي لومړۍ ورځ ده چي د آزادۍ ګټلو په لار کي د دې سیمي د خلکو د دوو پېړیو تر زیار وروسته د دوی آرزو تر سره سوه او په خراسان کي د ملي حکومت لومړی بنسټ د طاهر پوشنجي په لاس کښېښوو سو خو له بده مرغه دا زړور او آزادي غوښتونکی طاهر په همدې شپه وفات سو او د ده زوی طلحه چي یو فاضل سړی او د پلار له خوا د سیستان امارت ورسپارل سوی وو د پلار د خپلواکۍ پر مسند کښېنوست او شپږ کاله ئې په عدالت حکومت وکی او خلک ئې وروزل او د بغداد د خلافت دربار هم د ده حکومت په رسمیت وپېژاند او د خراسان د خپلواکۍ غوښتونکو خلکو له هیجان څخه وبېرېد.

طلحه په (۲۱۳هـ = ۸۲۸ع) کال په سیستان کي د خارجي حمزه سره ونښت خو په همدې کال دا فاضل، متدین او عادل امیر مړ سو او ورور ئې عبدالله د طاهر زوی (په ۱۸۲هـ کي زېږېدلی) چي څه موده په شام او مصر کي حکمران وو او تر هغه وروسته ئې د بغداد د دربار له خوا په پارس کي د بابک خرمي پر خلاف جنګېده، امیر سو او د بغداد دربار دی رسماً د خراسان امیر وپېژاند، د عبدالله روابط د بغداد د دربار سره ډېر صمیمانه ول او تل د خلافت د دښمنانو سره جنګېده او د عربي دولت خطرناک عناصر ئې له منځه یووړه. لکه په (۲۱۹هـ = ۸۳۴ع) کال چي ئې په تالقان کي امامزاده محمد د قاسم زوی بندي کی او خلیفه ته ئې واستاوه او په (۲۲۴هـ = ۸۳۵ع) کي ئې مازیار د قارن زوی د طبرستان حکمران ته د خلافت په طرفدارۍ ماته ورکړه او د ده حکمدارانو

په سیستان کي څو واره د هغه ولایت ښوربښونه آرام کړه. عبدالله او وه لس کاله پر ټول خراسان او د افغانستان پر لمر لوېدیځو سیمو حکومت وکی او په ۲۳۰هـ = ۸۴۴ع کال مړ سو. دی هم ادیب او عالم او عمران خوښوونکی پاچا وو او د ده په وختو کي په (۲۲۴هـ = ۸۳۸ع) کال په خراسان کي خورا مدهشه زلزله وسوه او په (۲۲۰هـ = ۸۳۵ع) کال په سیستان کي سخته وچ کالي راغله او د هلمند اوبه وچي سوي وې.

تر عبدالله وروسته ئې زوی دوهم طاهر تر ۱۸ کالو پوري حکومت وکی، د ده په وخت کي د سیستان خلک د صالح د نضر زوی او یقعوب لیث په مشرۍ پورته سول او د آل صفار د امارت بنسټ کېښښوو سو، په دې معنا چي د طاهر له خوا ابراهیم د حضین زوی د سیستان حکمران وو، ابراهیم خپل نا اهله زوی احمد نامی د بست والي وټاکه، احمد د عثمان بن نصر او احمد بستي او بشار بستي سره چي د هغه ولایت نامتو کسان ول ونښت، د بست او سیستان خلکو له طاهریانو څخه مخ وگرزاوه، او په ۲۳۸هـ کال ئې په بست کي د صالح سره بیعت وکی او په دې بحران او فتور کي یعقوب لیث صفاري قوت وموند او په (۲۴۶هـ = ۸۶۰ع) کال ئې سیستان د طاهر له واکمنۍ څخه ویوست او پخپله طاهر په (۲۴۸هـ = ۸۶۲ع) کال مړ سو.

د طاهریانو کهول د بغداد د خلافت د مرکز سره دوستانه روابط ساتل او د دوی درباري او ادبي ژبه عربي وه او په افغانستان کي ئې د زردشتي دین د پاېڅوړ پر خلاف زیار ویوست، لکه په (۲۱۳هـ = ۸۲۸ع) کال چي عبدالله زردشتي کتابونه وسوځل، دا دي د افغانستان د طاهریانو نومونه:

۱. طاهر د حسین پوشنجي زوی (۲۰۵ – ۲۰۷هـ)*
۲. طلحه د طاهر زوی (۲۰۷ – ۲۱۳هـ)*
۳. عبدالله د طاهر زوی (۲۱۳ – ۳۳۰هـ)*
۴. دوهم طاهر د عبدالله زوی (۲۳۰ – ۲۴۸هـ)*
۵. محمد د دوهم طاهر زوی (۲۴۸ – ۲۵۹هـ)
۶. دریم طاهر محمد (۲۹۵هـ)

**نوټ:**

الف: د طاهریانو د ټول کهول شجره د دې مخ مخامخ ته ۴۰ لمبر ده.

ب: *دا نخښه د هغو پاچهانو د نومو سره ایښوولې سوې ده چي سکې ئې سته.

**مأخذونه:**

طبري، زين الاخبار، تاريخ سيستان، روضة الصفا، ابن اثير، طبقات ناصري، تاريخ ايران دورۀ طاهريان، طبقات سلاطين اسلام، معجم الانساب زمباور، تاريخ ادبيات ايران د دوكتور صفا، تاريخ اجتماعى ايران، تاريخ ادبيات فارسى د سعيد نفيسي.

لومړۍ برخه

# طاهریان پوشنګي (۲۰۵ - ۲۵۹هـ)

۴۰ - لمبر



# طاهريان پوښنګي (۲۰۵ - ۲۵۹هـ)






**مأخذونه**: طبري، ابن اثير، د اسلام دائرة المعارف، ابن خلکان، طبقات ناصري، دول اسلاميه: ۱۷۲، معجم الانساب، زامباور: ۲/ ۳۰۰.

# صفاريان

(۲۴۷ – ۳۹۳هـ)

د امویانو او عباسیانو په وختو کي سیستان تل د سیاسي هیجانو مرکز وو او په تېره بیا د خوارجو فرقې په دې ولایت کي مرکز نیولی وو او د عیارانو (د فتوت د خاوندانو) ډلي چي د ننني سیاسي او اجتماعي پارټیو په شان یوه ډله وه، هم په سیستان کي قوت وموند، له دې ډلي څخه یو سیستاني مېړه چي د لیث زوی یعقوب وو او د سیستان د قرنین په کلي کي زېږېدلی منځنته راووت او د خپل ورور عمرو لیث سره د سیستان د حکمران صالح د نضر د زوی په خدمت کي داخل سو او د درهم بن نضر سره (د ابن خلکان په قول درهم د حسین زوی د مطوعه زعیم) چي د صالح له خوا د سیستان حکمدار وو، سپه سالار وو، یعقوب زړور او داعیه طلبه سړی وو او غوښته ئې په خراسان او سیستان کي یو غښتلی حکومت جوړ کی، ځکه چي په دې وخت کي طاهریان کمزوري سوي ول او د بغداد د مقتدر خلافت سره ئې د مقاومت توان نه درلود. هغه وو چي یعقوب د (۲۴۷هـ = ۸٦۱ع) کال د محرمي په ۲۵ د دوشنبې په ورځ د خپلو وسله والو عیارانو په مرسته درهم بن نضر او خوارجو ته ماته ورکړه او د سیستان له خلکو ئې بیعت واخیست، صالح له زاول شاه رتبیل څخه مرسته وغوښته خو یعقوب رتبیل وواژه او بست ئې ونیو، په دې جګړه کي شپږ زره تنه ووژل سوه او دېرش زره بندیان او خورا ډېر پیلان او زیات غنیمت مالونه د یعقوب لاس ته ورغلل، صالح د نضر زوی د والشتان (د کندهار د شمال) خوا ته پر شا سو، او زابل ته ئې پناه یووړه، خو په پای کي د یعقوب لاس ته ورغی او په بندیخانه کي ووژل سو. په دې جګړه کي د رتبیل ورور او خپلوان د بندیانو په توګه سیستان ته بوتلل سوه (۲۵۱هـ = ۸٦۵ع) او په همدې کال کي ئې عمار خارجي د سیستان په نیشک کي قلع کی او په ۲۵۲هـ کي صالح بن حجر د رتبیل د کاکا زوی د رخج په کوهڅ (کوهک) کي یاغي سو، یعقوب هغه تر ۲۵۳هـ پوري وواژه او په همدې کال ئې والشتان او زمینداور او بست هم تصفیه کړه او

د تگین آباد (اوسني کندهار ته نژدې) امیر ئې وو اهه او تر هغه وروسته په هرات کې د طاهریانو د حکمران سره ونښت او هرات ئې هم ونیو، او د (۲۵۴هـ) په شاوخوا کې ئې کرمان هم لاس ته راووست او په ۲۵۷هـ کال بیا ئې د رتبیل د زوی سره چې له زندانه تښتېدلی وو په رخج کې جګړه وکړه، خو د رتبیل زوی کابل ته وتښتېد، څو چې په ۲۵۸هـ کال یعقوب رخج او زابل او د (کندهار) پنجوایي ونیول او د ګردېز پر کلا ئې چې د ابو منصور افلح د محمد د زوی او د لویکي خاقان د نمسي په لاس کې وه یرغل وکی، افلح د کاله لس زره درمه خراج ومانه او یعقوب له هغه ځایه بامیان او تخارستان او بلخ ونیو، پر کابلشاه په قهر سو او پیروزوند (د کندهار په شاوخوا کې) او بست ئې ونیول، سیستان ته ولاړ او له هغې سکې څخه چې په (۲۶۰هـ = ۸۷۲ع) کې ئې په پنج هیر (د کابل په شمال کې اوسنی پنجشېر) کې وهلې وه څرګندېږي چې ټول کابلستان ئې نیولی وو.

په ۲۵۹هـ کال یعقوب د خارجي عبدالرحمن د سرکوبۍ له پاره د هرات کروخ ته ولاړ او هغه ولایت ئې تصفیه کی، په همدې کال عبدالله د محمد زوی او د صالح سګزي نمسی (اوس هم د سیستان په شاوخوا کې د پښتنو یوه طایفه ساګزي نومېږي) د یعقوب پر خلاف په سیستان کې پورته سو، خو یعقوب مات کی او د نیشاپور خوا ته وتښتېد او آل طاهر ته ورغی، یعقوب ورپسې سو آل طاهر او سګزی ئې له منځه یووړه (۲۵۹هـ تر ۲۶۳هـ پورې) او څنګه چې ابن خلکان وایي: د شاوخوا ټول ملکان لکه د ملتان ملک، د رخج ملک، د طبسین ملک، د زابلستان ملک، د سند او مکران ملکان ئې د ځان تابع کړه.

تر هغه وروسته یعقوب په پارس کې جګړې وکړې او د (۲۶۵هـ = ۸۷۸ع) کال د شوال پر ۱۴ د دوشنبې په ورځ تر ۱۷ کالو پاچهۍ وروسته د قولنج په ناروغۍ مړ سو.

په اسلامي دوره کې یعقوب لومړنی عادل، واکمن او بخښونکی حکمران وو، چې د افغانستان ټول هیواد ئې د آمو له سینده تر سیستان او مکرانه او له بادغیسه او مرو او هراته تر کابل او ګردېز او زابلستانه ونیو او د عسکرو او وسلو په تنظیم او د خزانو په ډکولو کې ئې زیار ویوست، ځکه نو مسعودي دی د جهان له سترو پاچهانو څخه ګڼلی او یو لوی فصل ئې د ده د ښه سیاست او ښه تدبیر په ستاینه کې لیکلی دئ او وایي چې: د ده په لښکر کې پنځه زره بختي اوښان او لس زره صفاري غاتري وې او د

ده تر مړيني وروسته د سيستان په خزانه کي پنځوس مليونه درهمه او اتيا مليونه ديناره ول، ده پخپل عجمي نژاد وياړل او په هغه منظوم ليک کي چي د بغداد خليفه المعتمد ته ئې ولېږه د عباسيانو کهول ته ئې اخطار ورکی چي له دې هيواده ووزي، او که نه وي د توري او قلم په زور به وايستل سي.

لنډه ئې دا چي د يعقوب تر مړيني وروسته عمرو ليث د ده ورور ئې پر ځای کښېنوست او د خلافت دربار هم هغه د خراسان او سيستان او فارس او کرمان او هند او سند او ماوراء النهر په پاچهي ومانه او په اولو وختو کي د ده سياسي مناسبات د عباسيانو سره دوستانه ول، خو تر لږې مودې وروسته المعتمد خليفه د ده عزل اعلان او د ده قلع او لعن ئې د خراسان د يوې ډلي حاجيانو په مخ کي بيان کی.

د (۲۲۶هـ = ۸۷۹ع) کال په شاوخوا کي د طاهري پاچهانو د اميرانوله پايڅوړ ځخه يو سړي په خراسان کي شورش وکی او دا سړی احمد د خجستاني عبدالله زوی وو او د هرات او سيستان تر حدودو پوري پر مخ ولاړ. خو عمرو ليث هغه مات کی (۲۶۷هـ = ۸۸۰ع) او تر دې وروسته رافع د هرثمه زوی چي د ابن خلکان په قول د معتمد خليفه له خوا لمسېده په خراسان کي د عمرو پر خلاف پورته سو او هرات او فراه ئې ونيول او د عمرو له ليري والي ځخه ئې چي په فارس او عراق کي جنګېده استفاده وکړه، خو بيا هم عمرو پر هغه بری وموند او رافع ماوراء النهر ته ولاړ او له ساساني پاچا نصر بن احمد ځخه ئې مرسته وغوښتله او د خراسانيانو زيات ياغيان د ده ملګري سول، خو عمرو دی له خراسانه تر خوارزم پوري پر شا وشاړه او هلته په (۲۸۳هـ = ۸۹۶ع) کال د عمرو ليث د حکمران محمد بن عمرو خوارزمي په لاس ووژل سو. د خراسان تر تصفيې وروسته محمد بن حمدان د عمرو ليث له خوا د زابلستان والي سو او برد عالي د غزني عامل وو، په دې وخت کي د ګندهارا دوو تنو پاچهانو ناسد او المان (کذا په تاريخ سيستان کي) پر غزني حمله وکړه، حال دا چي عمرو ليث په بلخ کي د (۷۰) زرو نيزه دارو سپرو په مرسته د ساماني اسماعيل بن احمد د لښکر سره په مقابله بوخت وو او په (۲۷۸هـ = ۹۰۰ع) کال په يوه جګړه کي ګرفتار او بغداد ته واستول سو، څو چي هلته د (۲۸۹هـ = ۹۰۱ع) په شاوخوا کي ووژل سو. عمرو هم عادل او عمران خوښوونکی پاچا وو، چي زر رباطونه او پنځه سوه جامع مسجدونه او يو زيات شمېر پلونه او لاري ئې جوړې کړې او د ابن خلکان په قول د هيواد د چارو په ښه تدبير او ښه سياست کي ئې ساری نه درلود او

لکه ابن اثیر چي ئې ثرګندوي د خپل هیواد او د خپل لښکر او د لښکر د افسرانو په احوال ډېر ښه خبر وو او هیڅا نه سوای کولای چي د عمرو بې اجازې څا ته سزا ورکي.

تر عمرو لیث وروسته د صفاریانو دولت کمزوری سو او بلخي سامانیانو پر شمالي افغانستان او هرات باندي د سیستان تر حدودو بری وموند او د صفاریانو پاته کسان تر څه موده پوري په سیستان کي حکمرانان ول، لکه په (۲۸۹هـ = ۹۰۳ع) کال چي د عمرو نمسیانو طاهر د محمد زوی او د هغه ورور یعقوب د امارت خاوندان ول او یو څه موده په فارس کي په جنګ اخته ول، او په (۲۹۱هـ = ۹۰۳ع) کال تر بست او رخج پوري پر مخ ولاړه ثو چي په (۲۹۶هـ = ۹۰۸ع) کال لیث د علي زوی د لیث نمسی له دې کهوله میدان ته راووت او طاهر او یعقوب ئې د عمرولیث د مریي سبکري په کومک ونیول او بغداد ته ئې واستول، او پخپله د (شیرلباده) په نامه پر سیستان امیر سو، او تر بست او کش او فراه پوري خطبه د ده په نامه وویله سوه، لیث خپل ورور معدل زابلستان ته واستاوه او په (۲۹۷هـ = ۹۰۹ع) کال ئې تر بست او رخج (رخد) او کابل پوري مال واخیست او په ۲۹۸هـ کال ئې په بست کي پخپل نامه سکه ووهله.

خو په آخر کي لیث په (۲۹۸هـ = ۹۱۰ع) کال په یوه جګړه کي د سبکري په لاس چي د المقتدر خلیفه له خوا ئې ملاتړ سوی وو ورغی او په بغداد کي بندي سو او د سیستان خلکو له دې کورنۍ څخه علي یا ابو علي محمد د محمد د زوی او د لومړي لیث د نمسي سره په ۲۹۸هـ کال بیعت وکی او تر بست او غزني او کابل پوري ئې هم د ده په نامه خطبه وویله، خو محمد د سیستان ساماني حکمران مات کی او بست ته ولاړ ثو چي د ساماني احمد د اسمعیل د زوی لښکریانو دی په ۲۹۸هـ کال په رخج کي ونیو او بست ته ئې راووست او دی ئې د نومړي سبکري سره بغداد ته واستاوه، او د همدې کال په پای کي د سیستان خطبه پر آل سامان وویله سوه او د صفاریانو کورنۍ پای ته ورسېده. خو په ۲۹۹هـ کال د سیستان خلکو د ساماني حکمران منصور اسحق په مقابل کي بلوا وکړه او ابو حفص عمرو د یعقوب زوی د محمد نمسي او عمرو لیث کړوسي د صفاري کورنۍ لس کلن هلک ئې میدان ته راویوست او د مولی سندلي په مشرۍ ئې چي د صفاریانو له موالیو څخه وو ساماني حکمران ونیو او د سیستان د عیارانو په مرسته ئې د نومړي ابو حفص په نامه خطبه وویله. خو ساماني دربار حسین د علي مروزي زوی سیستان ته ولېږه او بو منصور جیهاني د سامانیانو وزیر بیا سیستان تر

زميندا ور او زابلستان پوري تصفيه کی (۳۰۳هـ = ۹۱۵ع). په دې توګه د ساماني دربار اميرانو تر رخج او ارغنداو تر ناوې سيمي ونيولې او د طرابيل (ښايي چي د رتاييل مصحف وي) د پخواني زمامدارانو پايځوړ ئې په زابلستان کي له پښو واچاوه، په (۳۱۰هـ = ۹۲۲ع) کال احمد د قدام زوی او عزيز د عبدالله زوی د سيستان اميران ول، چي په ۳۱۱هـ کال بيا د سيستان خلک وپارېدل او امير ابو جعفر احمد د محمد زوی د خلف نمسی او د ليث کړوسی ئې د صفاريانو له کورنۍ څخه راويوست او د سيستان د اميرۍ واګي ئې وروسپارلې او په رخد کي هم خطبه د ده په نامه وويله سوه، د ده له خوا بيا حمک د رخج او محمد د بست حکمرانان وټاکل سوه او هيواد ئې تر رخج او د هرات تر شاوخوا پوري ونيو او تر (۳۵۲هـ = ۹۶۳ع) کال پوري ئې خپلواک حکومت کاوه او د ښو اخلاقو خاوند او مدبر سړی وو، د ده د حکومت ورځي تر ثلوېښتو کالو پوري په سيستان کي ډېري ښې تېري سوې څو په پای کي په ۲۵۲هـ کال په سيستان کي ووژل سو او تر ده وروسته ئې زوی امير خلف بانو پر ځای کښېنوست، خو د ده او د امير طاهر بوعلي تر منځ چي د يعقوب ليث د نيکه د ورور له اولادې څخه وو د سيستان پر امارت اختلاف پيدا سو، او چي نوموړی طاهر په (۳۵۹هـ = ۹۶۹ع) کي مړ سو، زوی ئې امير حسين د امير خلف بانو سره جنګېده او په ۳۷۳هـ کال ئې له امير سبکتګين څخه چي غزنه ئې تر بست پوري نيولې وو کومک وغوښت، خو امير سبکتګين خلف ته مرسته ورکړه او په همدې کال ئې په منځ کي روغه وسوه، حسين چي مړ سو د سيستان امارت امير خلف ته پاته سو، ده تر (۳۹۰هـ = ۹۹۹ع) پوري ښه خپلواک حکومت وکی، څنګه چي په همدې وختو کي سلطان محمود له غزني څخه د سيستان امارت تهديداوه، ځکه نو خلف د هغه اطاعت ومانه چي له کاله به د غزني خزانې ته سل زره دينار ه ورکوي.

خو سلطان محمود سيستان له خپله هيواده جلا پرې نه ښو او په (۳۹۳هـ = ۱۰۰۲ع) کال ئې پر هغه مځکه يرغل وکی او خلف ئې د سپهبد په طاق کي کلابند کی، دی سلطان ته ورغی خو سلطان دی د خراسان ګوزګانان ته تبعيد کی او سيستان د آل سبکتګين د پاچهۍ برخه سوه او د همدې خلف بانو له نسله د (۸۸۵هـ = ۱۴۸۰ع) تر شاوخوا او حتی د صفويانو تر وختو پوري په سيستان کي محلي اميران د ملوکو په نامه موجود ول چي په سيستان کي ئې د غزنويانو او نورو تر اطاعت لاندي حکمداري کوله.

په افغانستان کي صفاري ملوک د اسلامي دورې لومړنی علم دوسته، عمران

خوښوونکي او عادل پاچهان ول، چي په هیواد کي ئې سیاسي او دیني یووالی راووست، د همدې صفاریانو په وختو کي دري ژبه درباري او ادبي ژبه سوه او محمد بن وصیف سګزي لومړی دري قصیده د صفاري پاچا په ستاینه کي وویله او هم په دې زمانه کي د افغانستان لمر ختیځي سیمي لکه کابل او ګردېز د کابل شاهانو له لاسه ووتل او له افغانستانه د رتبیلانو او کابلشاهانو کمبله ټوله سوه.

د صفاریانو او د سیستان د ملوکو بشپړه شجره د دې مخ مخامخ ده – ۴۱ لمبر.

۱. یعقوب د لیث زوی (۲۴۷ – ۲۶۵هـ)*

۲. عمرو د لیث زوی (۲۶۵ – ۲۸۷هـ) وژل ئې په بغداد کي ۲۸۹هـ*

۳. طاهر د محمد زوی د عمرولیث نمسی او وروړئې یعقوب د (۲۸۹ – ۲۹۶هـ) *

۴. لیث د علي زوی د لومړي لیث نمسی (مشهور په شیرلباده) (۲۹۶ – ۲۹۸هـ) *

۵. ابو علي معدل د علي زوی د لومړي لیث نمسی (۲۹۹هـ)

۶. ابو حفص عمرو د یعقوب زوی د محمد نمسی او د عمرولیث کړوسی (۳۰۰هـ)

۷. امیر ابو جعفر احمد د محمد زوی د خلف نمسي د لیث کړوسی (۳۱۱ – ۳۵۲هـ)*

۸. ابو احمد خلف بن احمد (د ۳۴۴هـ شاو خوا – مړ په ۳۹۹هـ) ابن بانو *

۹. امیر طاهر بو علي د محمد زوی د طاهر نمسی (د مور له خوا صفاري) (۳۵۲هـ – ۳۵۹هـ)

۱۰. امیر حسین د طاهر زوی (۳۵۹ – ۳۷۳هـ)

۱۱. بهاء الدین طاهر د نصر زوی د احمد نمسی (۴۸۰هـ)

۱۲. تاج الدین نصر د طاهر زوی د محمد نمسی (د ۴۸۲هـ په شاوخوا کي مړ په ۵۵۹)*

۱۳. شمس الدین ابو الفتح احمد د نصر زوی (۵۵۹هـ)

۱۴. عزالملوک محمد د نصر زوی ؟

۱۵. تاج الدین حرب د محمد زوی (۵۶۲ – ۶۱۲هـ)*

۱۶. شمس الدین یمین الدوله بهرامشاه د عثمان زوی (۶۱۲هـ)

۱۷. تاج الدين نصر د بهرامشاه زوی (۶۱۸هـ)*
۱۸. رکن الدين ابو منصور د بهرامشاه زوی (۶۱۸هـ)*
۱۹. شهاب الدين محمود د عثمان زوی (۶۱۹هـ)
۲۰. علي د عثمان زوی (۶۲۲هـ)
۲۱. شمس الدين علي د مسعود زوی د خلف نمسی د مهربان کړوسی د طاهر کوسی (۶۲۶هـ)
۲۲. نصرالدين د ابو الفتح زوی د مسعود نمسی (۶۵۲هـ)*
۲۳. شاه نصرت د نصرالدين زوی (۷۲۸هـ)
۲۴. قطب الدين محمود رکن الدين د محمود زوی (۷۳۱هـ)*
۲۵. تاج الدين د محمد زوی (۷۴۷هـ)
۲۶. سلطان محمود د شاه علي زوی (۷۴۷هـ)
۲۷. عزالدين د رکن الدين محمود زوی (۷۳۳هـ)*
۲۸. قطب الدين د عزالدين زوی (۷۸۴هـ)
۲۹. شاه شاهان تاج الدين د قطب الدين زوی (۷۸۸هـ)
۳۰. قطب الدين د تاج الدين زوی د قطب الدين نمسی (۷۸۸هـ)*
۳۱. شاه شاهان شمس الدين د قطب زوی (۸۲۲هـ)*
۳۲. نظام الدين يحيی د شمس الدين زوی (۸۴۲هـ)
۳۳. شمس الدين محمد د يحيی زوی (۸۸۵هـ)
۳۴. سلطان محمود؟
۳۵. امير محمد مبارزالدين (د ۸۴۵هـ شاوخوا)
۳۶. قطب الدين علي (۸۲۲ – ۸۴۲هـ)
۳۷. شاه حسين د ملک غياث الدين محمد زوی د احياء الملوک مؤلف په (۱۰۲۷هـ) کې.

**مأخذونه:**

گرديزي، تاريخ سيستان، تاريخ ادبيات د براون، طبقات سلاطين اسلام، ابن اثير، طبري، طبقات ناصري، ابن خلکان، تاريخ الاسلام السياسي، مروج الذهب،

تاریخ عرب، روضة الصفا، لب التواریخ، گزیده، معجم البلدان، معجم الادباء، تاریخ تمدن اسلام جرجي زیدان، احیاء الملوک د تهران چاپ، تاریخ ادبیات د دکتور صفا، تاریخ ادبیات فارسي د سعید نفیسي، په سیستان کي د صفاریانو د ماہیو د کنډوالو منظر (۴۲ لمبر عکس).

لومړۍ برخه

# صفاریان سیستاني (۲۵۴ - ۸۸۵هـ)

۴۱ - لمبر



## صفاريان سيستاني (۲۵۴ – ۸۸۵هـ)



[۱] طاهر

[۴] تاج الدين ابوالفضل نصر × (۴۸۲ – ۵۵۹هـ)

[۳] فلان؟ (۴۸۱هـ)

فلان (؟)

[۵] شمس الدين ابوالفتح محمد (احمد)
۵۵۹هـ – د اتلسو وروښو لرونکی

[٦] عزالملوک محمد (حدود ۵٦۰هـ)

عمر نوحي

[۷] محمد تاج حرب × (۵٦۲ – ٦۱۲هـ)

[۱۲] امير علي (٦۲۰هـ)

ابوالمظفر حرب (٦۱۹هـ)

ناصرالدين عثمان (مړ – ٦۰۴هـ)

[۸] شمس الدين يمين الدوله
بهرامشاه (٦۱۲ – ٦۱۸هـ)

ملکشاه

[۱۱] شهاب الدين محمود
(٦۱۹ – ٦۲۲هـ)

علاءالدين احمد (مقتول ٦۲۰هـ)

[۹] نصرة الدين يا تاج الدين نصربهرامشاه × (٦۱۸هـ)

[۱۰] رکن الدين ابو منصور × (٦۱۸هـ)

دریمه برخه

# صفاریان سیستاني (۲۵۴-۸۸۵هـ)

۴۱ - لمبر

خلف
- شجاع الدین نصر سپه سالار
  - ۱ - شمس الدین علي (۶۲۶ - ۶۹۴؟)
- مسعود
  - ابو الفتح مبارزالدین (۶۳۶هـ)
    - ۲ - نصیرالدین محمد × (۶۵۲ - ۷۲۶؟)
      - ۳ - نصرة الدین (۷۲۸هـ)
      - رکن الدین محمود (۷۰۰هـ)
        - ۴ - قطب الدین محمد × (۷۳۱ - ۷۴۷هـ)
          - ۵ - تاج الدین (۷۴۷ - ۷۵۱هـ)
        - ۷ - عزالدین × (۷۵۳ - ۷۸۴هـ)
          - ۸ - دوهم قطب الدین (۷۸۴ - ۷۸۸هـ)
            - ۹ - شاه شاهان تاج الدین (۷۸۸ - ۸۰۵هـ)
              - ۱۰ - قطب الدین × (د ۸۱۰ هـ حدود)
            - ۱۱ - شاه شاهان شمس الدین × (۸۲۲ - ۸۴۲هـ)
              - ۱۲ - نظام الدین یحیی (۸۴۲ - ۸۸۵هـ)
                - ۱۳ - شمس الدین محمود (۸۸۵؟)
      - شاه علي
        - ۶ - سلطان محمود (۷۵۱ - ۷۵۳هـ)

**د درو سرو برخو ماخذونه**: ابن اثیر، طبقات ناصري، د اسلام دائرة المعارف، تاریخ یمینی، میر خوند، تاریخ سلاجقه، خاندانهای اسلامی بارتولد، نولدکی، سخاو، جستی، دول اسلامیه ۱۷۵، معجم الانساب، ۲/ ۳۰۲، تاریخ سیستان، احیاء الملوک.



د سیستان د صفاریانو د ودانیو دوې منظرې، ۴۲ –لمبر عکس

# سامانیان

(۲۷۹ - ۳۸۹هـ)

د سامانیانو کورنۍ د (سامان خداء) له اولادې څخه وه او سامان خداء یو نجیب سړی وو چې د بلخ په کلیوالي سیمو کې حکمران او په دین زردشتي وو. دی د گردیزي په وینا د (۱۹۷هـ = ۸۱۲ع) په شاوخوا کې د مامون الرشید پر لاس مسلمان سو او اسد د سامان زوی د مامون حضور ته لار پیدا کړه. دې اسد څلور زامن درلوده: نوح، احمد، یحیی، الیاس، چې د خراسان د حکمران غسان د عباد د زوی له خوا سمرقند او سغد نوح ته او فرغانه احمد ته او چاچ او اسروشنه یحیی ته او هرات الیاس ته وسپارل سو. د احمد بن سامان زوی چې امیر نصر نومېد په (۲۶۱هـ = ۸۷۴ع) کال د معتمد خلیفه له خوا د ماوراء النهر په امارت وپېژاند سو، ده د بخارا حکومت خپل ورور اسماعیل د احمد زوی ته پرېښوو، څو چې په (۲۷۵هـ = ۸۸۸ع) کال په بخارا کې د دوو وروڼو تر منځ سخته جگړه پېښه سوه او نصر د اسماعیل د زوی په لاس ورغی او سمرقند ته واستول سو او په (۲۷۹هـ = ۸۹۲ع) کال مړ سو او ټول ماوراء النهر او خراسان د اسمعیل په لاس کښېووت او د معتضد او مکتفی خلیفه گانو دربار هم دی رسماً په پاچهي وپېژاند. دی د آل سامان د سلسلې مؤسس دئ چې په (۲۸۷هـ = ۹۰۰ع) کال ئې قوت وموند او د بغداد د خلافت دربار هم دی د سیستان د آل صفار په مقابل کې چې د خپلواکۍ ږغ ئې تر خولې یوست تقویه کی او په همدې کال ئې په بلخ کې صفاري عمرولیث بندي کی او شمالي او غربي افغانستان ئې له تخارستانه تر مرو او هرات او د ایران شمال او ماوراء النهر هیوادونه ئې د ساماني هیواد ضمیمه کړه او د مجمل فصیحي په قول د هند پر ځینو لمر لوېدیځو سیمو هم د اسمعیل لاس بر سوی وو، چې ښایي د فصیحي مقصد گندهارا وي. محمد د محمد زوی د عبدالله بلعمي نمسی په دري ژبه د تاریخ طبري مترجم د دې پاچا فاضل وزیر وو، اسمعیل په (۲۹۵هـ = ۹۰۷ع) کال وفات سو (د اسمعیل ساماني د قبر عکس - ۴۳ لمبر). د اسماعیل تر مړینې



په بخارا کي د اسماعیل ساماني مقبره، ۴۳ –لمبر عکس

وروسته ئې زوی احمد پر ځای کښېنوست، دی په (۲۹۷هـ = ۹۰۹ع) کال هرات ته راغی او حسین د علي مروزي زوی ئې سیستان ته ولېږه، څو چې صفاري حکمرانان معدل او بوعلي چې تر بست او رخجه پوري ئې لاسونه اوږده سوي ول له منځه یووړه او سیستان ئې منصور د ساماني اسحاق زوی ته ورکی، خو د سیستان خلکو لکه دمخه چې وویل سوه د سندلي په مشرۍ هغه ونیوی (۳۰۰هـ = ۹۱۲ع).

احمد په ۳۰۱هـ کال د خپلو مریانو په لاس ووژل سو او خلکو د هغه اته کلن زوی نصر بن احمد پر تخت کښېناوه، او د هیواد چاري د هغه پوه وزیر ابو عبدالله محمد د احمد الجیهاني زوی اداره کولې.

په (۳۰۲هـ = ۹۱۴ع) کال په خراسان کي منصور د ساماني اسحاق زوی یاغي سو او له سیستان او هراته حسین علي مروزي هم ورسره یو ځای سو.

خو له ساماني درباره سپه سالار احمد د سهل زوی هرات ته راغی، ځنګه چې منصور په نیشاپور کي مړ سو، حسین په (۳۰٦هـ = ۹۱۸ع) کال تر سختو جګړو وروسته تسلیم او عفو سو. د نصر په وخت کي لکه چې دمخه ولیکل سوه د سیستان ولایت د ساماني محلي حکمرانانو او امیرانو تر منځ لاس په لاس ګرزېده، د دې عصر نوري پېښې د افغانستان په تاریخ اړه نه لري.

نصر په (۳۳۱هـ = ۹۴۲ع) کال تر دېرشو کالو پاچهۍ وروسته مړ سو، او لومړی نوح د ده زوی پر ساماني تخت کښېنوست.

د ده د وخت له مهمو پېښو څخه د افغانستان په شمالي سیمو او خراسان کي د بوعلي چغاني د محتاج د زوی چې د هغو سیمو حکمران وو یاغي کېدل وه او د ختلان د امیر په مرسته ئې په بلخ او ګوزګانان او سمنګان او تخارستان کي لښکر راغونډ کی خو د امیر نوح لښکر ماته ورکړه او په (۳۴۱هـ = ۹۵۲ع) کال بیا د ساماني دربار له خوا د خراسان په امارت وپېژاند سو. نوح په (۳۴۳هـ = ۹۵۴ع) کال مړ سو او زوی ئې لومړی عبدالملک پر تخت کښېنوست. د ده په وخت کي په (۳۴۵هـ = ۹۵٦ع) کال ابوالحسن سیمجور د خراسان په سپه سالارۍ وټاکل سو، خو له هغه څخه خلکو شکایت وکی او په عوض کي ئې ابو منصور عبدالرزاق خراسان ته راغی (۳۴۹هـ = ۹٦۰ع) او تر هغه وروسته هم الپتګین حاجب الحجاب د خراسان په سپه سالارۍ وګومارل سو او ابو علي محمد بلعمي د هغه ځای حکمران وو او د ابن مسکویه په قول

د بوعلي محتاج له منځه وړلو له پاره بکر د مالک زوی وټاکل سو، چي هغه له خراسانه ورک کي، بکر هم هغه د خراسان تر پایه وځغلاوه، څو چي لومړی عبدالملک په (۳۵۰هـ = ۹۶۱ع) کال مړ سو، او وروړ ئې منصور د لومړي نوح زوی د ده پر ځای کښېنوست. ده ابو منصور عبدالرزاق د خراسان په حکمدارۍ او د الپتگین د مخنیوي له پاره وگوماره. دا سړی په (۳۵۰هـ = ۹۶۱ع) کال له نیشاپوره پر شا سو، بلخ او خلم او تخارستان او غزنه ته راغی او د غزنوي دولت بنسټ ئې کښېښوو.

په (۳۵۳هـ = ۹۶۴ع) کال سرهنگ ابو علي محمد د عباس زوی د هرات د تولک په حصار کي یاغي سو، د ابوالحسن سیمجور له خوا چي د خراسان حکمران وو بوجعفر نامی د هغه د مخنیوي له پاره وگوماره سو، چي د تولک تر حصار نیولو وروسته ئې د غور ځیني کلاوي هم ونیولې. د منصور په عصر کي د سیستان حکمران خلف د احمد زوی هم د ساماني دولت له خوا تقویه سو، خو تر هغه وروسته نوموړي خلف په سیستان کي د سامانیانو له اطاعته سر ورغړاوه او منصور د هغه سره اووه کاله جنگ وکی، چي په نتیجه کي ئې روغه ورسره وکړه (۳۷۳هـ). خو همدا پېښي د ابن اثیر په قول د ساماني دولت د کمزورتیا سبب سوې او د شاوخوا حکمرانانو ته د مرکز په باب کي توزنه هیله پیدا سوه.

منصور په (۳۶۶هـ = ۹۷۶ع) کال مړ سو او پر ځای ئې دوهم نوح د منصور زوی کښېنوست، د ده په عصر کي د ده تر مړیني (۳۷۸هـ = ۹۸۸ع) د خراسان حکمراني په ابوالحسن سیمجور اړه درلوده، دا وخت الپتگین له دنیا تللی او د هغه ځای ئې زوی سبکتگین د غزني د چارو واگي په لاس کي نیولي وې او ابو علي سیمجور چي د خپل پلار ابوالحسن تر مړیني وروسته ئې خراسان تر لاس لاندي وو د بلخ د حکمران فایق خاصه سره ئې لاس یو کی او پر خپل سر سو، نو د دوی د سر ټکولو او د خراسان د چارو د سمولو له پاره د خپل دربار یو سړی چي ابوالعباس تاش نومېد خراسان ته واستاوه او له سبکتگینه ئې مرسته وغوښتله، سبکتگین د خپل زوی محمود سره د دوهم نوح ملاتړ ته ورغی او په (۳۸۴هـ = ۹۹۴ع) کال ئې د هرات ښار ته نژدې ابوعلي مات کی او هغه د دیملیانو دربار ته پناه یووړه او دوهم امیر نوح سبکتگین ته د (ناصرالدین) لقب ورکی او د خراسان د حکمدار په حیث ئې تر غزنه او کابل او بلخ پوري وپېژاند او د هغه زوی محمود ئې د (سیف الدوله) په لقب د نشاپور حکمدار وټاکه. دوهم امیر نوح او

سبکتگین دواړه په (۳۸۷هـ) کال مړه سول او دوهم منصور د دوهم نوح نابالغه زوی پر ساماني تخت کښېنول سو، خو د آل سامان د کهول د نظام رسۍ وشلېدله او ایلک خان بخارا ونیوله او بکتوزن دوهم منصور ړوند کی (۳۸۹هـ = ۹۹۸ع) او ورور ئې دوهم عبدالملک د دوهم نوح زوی پر تخت کښېناوه. خو سلطان محمود د هغه ړانده پاچا د کسات اخیستلو له پاره مرو ته ولاړ او په پای کي ئې د بکتوز او فایق سره داسي وکړه چي: هرات او بلخ (یعني افغانستان تر کابله) دي د محمود وي او نیشاپور او مرو دي د دوی. محمود په (۳۸۹هـ) کال له دې جنګه راوګرزېد او په همدې کال ایلک خان بخارا ونیوله، او دوهم ساماني عبدالملک ئې په اوزګند کي بندي کی او همهلته ئې وواژه. ابو نصر ابراهیم منتصر د دوهم نوح زوی د سامانیانو وروستني شهزاده په ډېر زړورتوب د محمود د ورور نصر او ایلک سره جنګ کاوه ځو په پای کي د محمود په تحریک په (۳۹۵هـ = ۱۰۰۱ع) کال ووژل سو او د سامانیانو د سلسلې کمبله ټوله سوه.

د دې عصر له علمي او اداري نومیالیو ځخه دوه نامتو وزیران یو محمد د احمد جیهاني زوی (د ورکي جغرافیا ټولوونکی) او بل محمد د محمد بلعمي زوی (په دري ژبه د طبري د تاریخ مترجم) او د دري له پخوانیو شاعرانو ځخه هم ابو شکور بلخي او رودکي او دقیقي بلخي او ابو محمد هاشم (په بست کي د پښتو شاعر چي په ۲۹۷هـ کي مړ دئ) او نور ول.

د سامانیانو په عصر کي د اسلام دین او اسلامي مدنیت د عربي ژبي او ادب سره تر کابله راورسېدلی وو، خو د هیواد په لمر ختیځو سرحدو کي لکه ننګرهار، لغمان، د کونړ درې، د خوست او منګل غرونه پر خپلو پخوانیو ادیانو او ژبو او مدنیت پاته ول او دري ادبیاتو ښه وده وکړه (د آل سامان شجره په ۴۴ لمبر کي).

۱. لومړی نصر د احمد ساماني زوی (۲۶۱ – ۲۷۹هـ)
۲. اسمعیل د احمد زوی (۲۷۹ – ۲۹۵هـ)*
۳. احمد د اسمعیل زوی (۲۹۵ – ۳۰۱هـ)*
۴. دوهم نصر د احمد زوی (۳۰۱ – ۳۳۱هـ)*
۵. لومړی نوح د نصر زوی (۳۳۱ – ۳۴۳هـ)*
۶. لومړی عبدالملک د نوح زوی (۳۴۳ – ۳۵۰هـ)*
۷. لومړی منصور د نوح زوی (۳۵۰ – ۳۶۶هـ)*

۸. دوهم نوح د منصور زوی (۳۸۷ – ۳۸۷هـ)*
۹. دوهم منصور د دوهم نوح زوی (۳۸۷ – ۳۸۹هـ)*
۱۰. دوهم عبدالملک د دوهم نوح زوی (۳۸۹هـ)*
۱۱. ابو ابراهیم منتصر د دوهم نوح زوی (۳۹۰هـ) د ده تر وژلو پوري په (۳۹۵هـ) کي.

## مأخذونه:

گردیزي، ابن اثیر، طبقات ناصري، دائرة المعارف اسلامی، تاریخ سیستان، تجارب الامم، تاریخ الاسلام السیاسي، مختصر تاریخ ایران د پاول هورن، روضة الصفا، طبقات سلاطین اسلام، معجم الانساب د زمباور، تاریخ بخارا، لب التواریخ، تاریخ یمیني، ترکستان د بارتولد، حبیب السیر.

لومړۍ برخه

# سامانیان ۲۹۱ - ۳۸۹هـ

۴۴ - لمبر



دوهمه برخه

# سامانیان

۴۴ – لمبر

۲ – احمد

×یحیی (په خراسان کي ولاړ سو – ۳۱۸) | ۴ – دوهم نصر (۳۰۱ – ۳۳۱هـ) | ابراهیم (په ۳۳۷هـ ړوند کړه سو) | منصور (۳۱۷هـ)

ابو جعفر محمد (ړوند کړه سو ۳۲۰هـ) | ۵ – لومړی نوح (۳۳۱ – ۳۴۳ هـ) | اسماعیل (بخارا) | احمد

۶ – لومړی عبدالملک × (۳۴۳ – ۳۵۰هـ) | ۷ – لومړی منصور × (۳۵۰هـ – ۳۶۶هـ) | محمد

نصر (د یوې ورځي پاچا) (۳۵۰هـ) | ابو زکریا یحیی (۳۸۹هـ) | ۸ – دوهم نوح × (۳۶۶ – ۳۸۷هـ) | ابو سلیمان (۳۸۹هـ)

ابو ابراهیم اسماعیل (۳۸۹هـ) | ابو یعقوب (۳۸۹هـ) | ۹ – × دوهم منصور (۳۸۱ – ۳۸۹هـ) | ۱۰ – عبدالملک ثانی (۳۸۹هـ) | ابراهیم المنتصر (مړ – ۳۹۵هـ)

**مأخذ**: یمیني، د اسلام دائرة المعارف، طبقات ناصری، میرخوند، ترکستان بارتولد، نامهای ایرانی، زین الاخبار، دول اسلامیه ۱۷۷، معجم زامباور ۲/ ۳۰۸هـ

# پښتانه حکمرانان

(د ۳۰۰ هـ شاوخوا)

له هغه ډېر پخواني کهول څخه چې د کسي (سليمان) په غره او د غور په غرو او د هغو سيمو په شاوخوا کې ئې په پښتنو کي حکمراني او لارښوونه کوله د کيس عبدالرشيد پښتون (پټهان) درې زامن مشهور دي چې: غرغښت او بېټنی او سړبن نومېدل. د دې پښتانه کهول په باب کي ډېري محلي افسانې سته، خو هغه څه چې د پښتنو پخواني مؤرخ سليمان ماکو د (٦١٢ هـ = 1215) په شاوخوا کي پخپله تذکره کي ليکلي او تر هغه وروسته نورو مؤرخانو لکه ابوالفضل علامي په آئين اکبري کي (١٠٠٦هـ = ١٥٩٧ع) او اخون درويزه (چي په ١٠۴٨هـ = ١٦٢٨ع کي مړ دئ) په تذکرة الابرار او مخزن اسلام کي او نعمت الله هروي په مخزن افغاني کي (١٠١٨هـ = ١٦٠٩ع) او شيخ امام الدين خليل (چي په ١٠٦٠هـ کي مړ دئ) په تاريخ افغاني کي تائيد کړي دي او تاريخي حقايق دي له هغو څخه څرګندېږي چې دې درو وروڼو د (٢٥٠ تر ٣٠٠هـ پوري) په افغانستان کي د غور له غرو څخه د سليمان تر غره پوري واکمني (فرمانروايي) او روحاني او قبيلوي نفوذ درلود او د شيخ بېټني ځيني پښتو مناجاتونه په پښتو ادبياتو کي منقول او په لاس کي سته او تر هغه وروسته د سړبن زوی خرښبون د سليمان له غره څخه د غلځو د کلات د غونډان تر غره پوري واک او اقتدار درلود او په (۴١١هـ = ١٠٢٠ع) کال د سليمان د غره په جنوبي لمنه مرغه کي وفات سو، همدارنګه اسمعيل د بېټني زوی د سليمان په غره کي واکمني او روحاني نفوذ درلود او د ده د اقتدار لمنه د سليمان د غره لمر لوېديځ پلو ته له وازي خوا څخه تر غزني پوري رسېدله، او له دې دوو تنو څخه هم د پښتو پخواني اشعار رانقل سوي دي (د ۴٠٠ هـ = ١٠٠٩ع په شاوخوا کي). د خرښبون درې زامن: کند، زمند او کاسي د پښتنو د ټبرو نوميالي نيکه ګان دي، چي د دوی د اولاد سلسله په افغاني نسب نامو کي شرح سوې ده.

دا هم بايد پټ پاته نه سي چي خرښبوني پښتانه د افغانستان په لمر لوېديځو سيمو کي خپاره واره ول، لکه عبدالرزاق سمرقندي چي په غزنين او برمل کي د (افغان

خرشواني) په نامه د هغو يادونه کوي او دا د (۸۲۰هـ) په شاوخوا کي وه (مطلع سعدين د دوهم ټوک لومړی برخه، ۳۵۹ مخ د لاهور چاپ).

د افغاني انسابو په کتابو کي دا دري وروڼه غرغښت، بيټني او سړه بن د پښتنو د ټبرو د سلسلې سرونه ګڼل سوي دي چي په دې ځای کي د دوی د نسب د شجرې مهمي ښانګي ليکل کېږي (۴۵ لمبر د نسب شجره دي وکتل سي).

په پښتني نسب نامه کي د کرلاڼ = کرلاڼي يوه بله ښانګه هم سته چي دوی له هغو درو نورو ښانګو سره خپلوي لري او سوچه پښتانه دي.

د پښتنو روايات خو په دې ښانګو کي تر اسلامي دورې دمخه نه دي، مګر تاسي وليدل چي د پښت = پخت = پښتون او افغان ذکر په قديمو کتابو او تاريخو کي له درو ښلورو زرو کالو را په دې خوا راغلی دئ، نو ځکه موږ د هغو قديمو اسنادو څخه داسي ويلای سوای چي پښتانه قبايل د دې هيواد پخواني او سېدونکي دي چي په وروستيو زمانو کي له دوی سره نور آريايي قبايل هم ګډ سوي دي، مګر هغه ټول د دوی په مدنيت او ملي جوړښت کي داسي ويلي سوي دي چي اوس ئې بېلونه نه سې کېدای او يو ملت ځني جوړ سوی دئ.

**مأخذونه:**

د سليمان ماکو تذکرة الاولياء، پښتانه شعراء لومړی ټوک، ائين اکبري، مخزن افغاني، تذکرة الابرار د دروېزه، پټه خزانه، د پښتو د ادبياتو تاريخ ۲ ټوک، مطلع سعدين ۲ ټوک، حيات افغاني، شوکت افغاني، صولت افغاني، خورشيد جهان، د سراولف کيرو پټانان، د صوبهٔ سرحد او بلوچستان ګزټير، افغانستان ګزټير، تاريخ سلطاني.

# کیس (پښتون)




* د بېټني، غرغښت او کرلاڼي تفصیل په راتلونکي مخ کي وګورئ.

# کیس

- **بیټني**
  - ټول غلجي قومونه: سهاک - تره کي - سلیمانخېل - توخي - هوتک - اکاخېل - ناسر - خروټي - بختیار - احمدزي - تري - دوتاڼي - تارڼ - لودي - نیازي - سور - سرواڼي
- **غرغښت**
  - منډو
  - بابي
  - داني
    - داوي ........ (ډُومړ - هُمړ - خوندي و غیره)
    - پني
    - ناغر
    - کاکړ
    - ........ ګدون - موسی خېل - صافي - مشواڼي
- **کرلاڼ** ........
  - ککي - دلازاک - منګل - توري - هنی - وردګ - اورکزی - اپریدي - خټک - یشتک - بولاق - ځدراڼ - وزیر - مسید - دوړ - ستریاڼي - ګاړي - بنګښ - بنوڅي.

**مأخذ:** مخزن افغاني - حیات افغاني - شوکت افغاني - صولت افغاني - آیین اکبري - تذکرهٔ سلیمان ماکو

# فريغونيان

(د ۲۵۰ تر ۴۱۰ هـ شاوخوا)

دې کهول د سامانيانو او غزنويانو په وختو کې په ګوزګانان کې حکمراني درلوده او د دواړو سلطنتي کورنيو سره ئې دوستانه روابط ساتل او علم روزونکي او صلح خوښووني پوهان پاچهان ول. د دوی د حکومت شمالي وېش د آمو سيند او جنوبي وېش ئې غرستان او غور او تالقان (د کروان رباط ته نژدې) د زميندا ور او هلمند تر شاوخوا پورې رسېده، چې په غور کې هم د فريغونيانو تر لاس لاندې يو حکمران ناست وو او غورشاه نومېد، پخپله ګوزګانان د سرپل شاوخوا ته ويل کېده، او دا کهول تر اسلام دمخه د (ګوزګان خداة) د پاچهانو له نسله وو چې د فريغون په رباط ئې اړه درلودله او دا رباط د مقدسي په وينا د اندخو د (اوسني اندخوی) او کرکي څخه د يوې ورځې د لارې واټن وو او د افريغ کلمه د دې هيواد په لرغونيو نومو کې تر خوارزمه ليده کېږي، خو پخپله د فريغون د دې کهول د سلسلې د مشر په باب کې څه معلومات نه لرو. بې له دې چې د العتبي په قول د دريمي هجري پېړۍ په شاوخوا کې د افريغون رباط ته نژدې اوسېد، مګر د ده زوی احمد بن فريغون د اسلامي دورې په تاريخ کې د دې کهول لومړی سړی دئ چې موږ ئې پېژنو، نرشخي وايي:

په (۲۸۷هـ = ۹۰۰ع) کال چې امير اسمعيل ساماني د عمروليث صفاري سره جنګېده امير احمد فريغوني د عمروليث له خوا هم د بلخ حکمران وپېژانده سو. قابوسنامه دی د آسانو د ډېرو ګلو خاوند ګڼي چې د ورځې ئې زر ارزق بهاڼان راوړه او دا خبره مبالغه نه ده، ځکه چې د دې سيمو خلک تر اوسه د آسانو په ګلو ساتلو او روزلو مشهور دي.

د دې کهول يو بل حکمدار ابوالحارث محمد د احمد زوی دئ چې موږ هغه د دري ژبې د پخواني جغرافي کتاب حدودالعالم له مخې پېژنو، دی علم دوسته حکمران وو او دا کتاب په (۳۷۲هـ = ۹۸۲ع) کال ده ته وړاندې سوی وو او د دې کورنۍ د ډېر

اقتدار په وخت کي حکمران وو او اصطخري د (۳۴۰هـ = ۹۵۱ع) په شاوخوا کي هغه یاد کړی دئ او د بارتولد په وینا په (۳۶۵هـ = ۹۷۵ع) کال ئې خپله لور ساماني زلمي پاچا نوح د منصور زوی ته ورکړه او د العتبي په قول تر (۳۸۰هـ = ۹۹۰ع) کال وروسته نوح د منصور زوی دی د فایق جگړې ته راوغوښت خو ماته ئې وکړه. ابن اثیر وایي چي په (۳۸۳هـ) کال نوح له خراسانه گوزگانان ته راغی او ابوالحارث ورسره یو ځای سو او په ۳۸۵هـ کال چي سبکتگین د فایق سره جنگېده ابوالحارث د سبکتگین د ملاتړ له پاره هرات ته راغی او د العتبي په قول ئې په همدې وختو کي خپله بله لور د سبکتگین زوی محمود ته ورکړه او د سبکتگین یوه لور ئې خپل زوی ابوالنصر احمد د محمد زوی ته په نکاح کړه او په (۳۸۶هـ = ۹۹۶ع) کال چي سبکتگین مړ سو همدې ابوالحارث د محمود او د هغه د ورور اسمعیل تر منځ روغه وکړه او د محمود سره غزني ته ولاړ او په (۳۸۹هـ = ۹۹۸ع) کال محمود د اسمعیل نیول هم ابوالحارث ته وسپاره او دا د تاریخ په پاڼو کي د ابوالحارث وروستنۍ یادونه ده.

العتبي په (۳۹۴هـ = ۱۰۰۳ع) کال د فریغون بن محمد په نامه یو تن یادوي چي محمود هغه له بلخ څخه چي وروستنی ساماني شهزاده منتصر پسي د اندخود او مرورود خوا ته استولی وو خو د ده پوره احوال لاس ته رانغی، مگر د دې کورنۍ یو بل سړی ابو نصر احمد د محمد ابوالحارث زوی دئ چي د العتبي او گردیزي په وینا د گوزگانان وو، په (۳۹۸هـ = ۱۰۰۷ع) کال په هغه جگړه کي چي د قراخانیان او د محمود د ورور تر منځ په پل چرخیان کي وسوه د محمودي لښکر د منځ (قلب) مشر وو او په (۴۱۰هـ = ۱۰۱۰ع) کال مړ سو. بیهقي د (۴۱۰هـ = ۱۰۱۰ع) کال په پېښو کي لیکي چي په همدې کال محمود د غور جنگو ته ولاړ، خو د ده شهزاده گان مسعود او محمد په ثورلس کلنۍ کي په زمینداور کي د امیر فریغون گوزگانان د زوی حسن نامي سره اوسېدل، څنگه چي په همدې کال امیر ابوالحارث مړ وو، ځکه نو د ده زلمي زوی حسن د سبکتگین د لور له نسه د گوزگانان د تاج و تخت نامزد وو، خو دا په یقین معلومه نه ده چي دا حسن د همهغه فریغون بن محمد زوی وو یا د ابو نصر؟ مگر په دې خبر یو چي سلطان محمود د العتبي او عوفي په قول د ابو نصر فریغوني لور خپل زوی محمد ته وکړه او د گوزگانان ولایت ئې بیرته ابو نصر ته ورکی او ابو محمد حسن د مهران زوی ئې د هغه ځای د چارو په کفالت د ده سره وگوماره، گواکي د گوزگان سیمه په (۴۰۸هـ =

۱۰۱۷ع) کال بشپړه د غزنویانو تر واکمنۍ لاندې راغلې وه او ناصر خسرو علوي په دې بیت کې ورته اشاره کړې ده:

کجاست آنکه فریغونیان زهیبت او
زدست خویش بدادند گوزگانان را

په دې توګه نو د فریغونیانو کهول د افغانستان د لمر لوېدیځو شمالي سیمو محلي پاچهان ول، چې په عدالت او نېکنامۍ او د علومو په روزنه ئې شهرت درلود او د فریغون په دربار کې نامتو پوهان او لیکونکي روزل سوي دي چې له هغې جملې څخه دي: بدیع الزمان همداني، ابوالفتح بستي، د مفاتیح العلوم خاوند خوارزمي او د حدودالعالم نامعلوم مؤلف.

د دې کهول نومیالي:

۱. امیر فریغون (۲۵۰هـ)
۲. امیر احمد د فریغون زوی (۲۷۹ – د ۳۳۷هـ حدود)
۳. ابو حارث محمد د احمد زوی (۳۳۷ – ۳۸۹هـ)
۴. فریغون د محمد زوی (د ۳۹۴هـ شاوخوا)
۵. ابو نصر احمد د محمد زوی (۳۹۰ – ۴۱۰هـ)*
۶. حسن د ابو نصر زوی؟ (۴۱۰هـ)

## مأخذونه:

العتبي، ګردیزي، اصطخري، نرشخي، مقدسي، بیهقي، قابوسنامه، عوفي، ابن اثیر، مینورسکي د حدودالعالم پر حواشي، د بارتولد جغرافیای تاریخی ایران، معجم الانساب، د مینورسکي مقالې د لندن چاپ.

# د ملتان لودیان

(د ۳۷۰ – ۴۰۱ هـ شاوخوا)

د (۳٦٦ هـ = ۹۷٦ع) په شاوخوا کي سبکتگین په غزني کي د واک خاوند سو او ساماني حکمداران بې واکه او کمزوري سوه ځکه نو د افغانستان ښارونه له تخارستان او بلخه تر گوزگانان او هرات او سیستان او بست او کابل تر گردېز پوري د غزني په پایتخت پوري وتړل سوه (۳٦۸هـ = ۹۷۸ع).
په دې وخت کي د افغانستان لمرختیځو سیمو تر ماورای سند او ملتانه د ملتان د لودیانو په نامتو کهول پوري اړه درلوده او له لاهوره تر خیبره جیه پاله کابلشاه حکم کاوه. هغه وخت چي سبکتگین پر کابل او ننگرهار یرغل وکی جیه پاله مخي ته ورغی او د غزنه په شاوخوا کي ئې ورسره جگړه وکړه او مات سو او د جگړې د تاوان تر ورکولو وروسته بیرته لاهور ته وگرزېد او د قنوج، ډهلي، اجمیر او کالنجر راجه گان ئې د ځان ملگري کړه د یو لک چمتو سپرو سره تر خیبر راتېر سو او د کابل د سیند پر غاړه لغمان ته راورسېد. سبکتگین د هغه سره جنگ وکی او په زرو خلک ئې ځني ووژل او نور ئې پرشا وشړل او د سند تر سینده پسي ولاړ او په پېښور کي ئې خپل یو امیر د دوو زرو سپرو سره پرېښووه او پخپله غزني ته راغی (۳۸۱ هـ = ۹۹۱ع). په دې وخت کي ملتان د لودي شیخ حمید په لاس کي وو چي لودي د پښتنو یو نامتو ټبر دئ او دې لودیانو چي د سبکتگین واک ورځ په ورځ پر زیاتېدو ولید د هغه سره ئې روغه وکړه او چي جیه پاله ماته وکړه شیخ حمید په ملتان کي پر خپل حال پاته سو او د سبکتگین سره ئې تړون وکی (۳۸۲هـ) او د ده ورارہ شیخ رضي په اخبار اللودي کي د احمد لودي په قول د پښتو ژبي له شاعرانو څخه وو، چي د حمید لودي په وختو کي ئې د پښتنو په غرو (سلیمان غره) کي د اسلام تبلیغ کاوه او له دې څخه څرگندېږي چي د سند او غزني تر منځ ځینو پښتنو لا تر دغه وخته د اسلام دین منلی نه وو، لکه چي په ۳۸۲هـ کال د جغرافیای حدودالعالم لیکونکی د قندهار ښار (د اندس پر غاړه) د برهمنانو او بتانو

او لغمان د بودتونو (بتکدو) او بنیهار (بنیر) د بت پرستو هندوانو او افغانانو ځایونه بولي، حال دا چي په همدې وخت کي بست او غور او رخد اسلامي ښارونه ول او کابل یو داسي ښار وو چي نیمی ئې مسلمانان او نیمی ئې هندوان ول.

د شیخ حمید د مړیني خبر په تاریخ کي نسته خو دوني ښکاري چي په ملتان کي د ده واکمني د سند تر غاړو د سلیمان تر غره پوري محصوره وه او لاهور تر تکسیلا او ویهند او تر قندهاره (د سند د سیند پر غاړه) په جیه پاله پوري اړه درلوده، خو په (۳۹۲هـ = ۱۰۰۱ع) کال محمود ویهند ونیو او په (۳۹۶هـ = ۱۰۰۵ع) کال چي ئې پر ملتان لومړی یرغل وکی د ملتان حکمران ابو الفتح داود د نصر زوی وو، نو څرګنده سوه چي نصر د شیخ حمید زوی د لودیانو دوهم حکمران د (۳۹۰هـ = ۹۹۹ع) په شاوخوا کي حکومت کاوه او دی تر حمید وروسته د هغه پر ځای کښېنوست او د غزنویانو سره د لودیانو د کورنۍ په سیاسي رقابت کي د سلطان محمود له خوا په بده عقیده او د اسمعیلي ملاحده و دین ته په ګروهېدلو متهم سوی وو. مګر د پښتو له وطني ماخذو لکه پټه خزانه او د ده له پښتو شعر څخه څرګندېږي چي دا اتهام غلط وو او دی ملحد او بې دینه نه وو.

ابو الفتح داود تر نصر وروسته د ملتان تخت ته ورسېد او په (۳۹۵هـ = ۱۰۰۴ع) کال سلطان محمود د بهاتیه پر حکمران (بجي راو) باندي یرغل وکی، داود څه اعتنا ورته و نه کړه، ځکه نو په دا بل کال محمود د تازه دمه لښکر سره د ننګرهار له لاري ورغی، لومړی ئې راجه اننده پاله په پېښور کي مات کی او بیا ملتان ته ورسېد او تر اوو ورځو کلابندۍ وروسته داود لودي د کاله دوه لکه او په بل روایت دوه کروړه درهمه خراج ومانه او شل زره درهمه ئې هم د جګړې تاوان ورکی او د محمود سره ئې د روغي تړون وتاړه او تر (۴۰۱هـ = ۱۰۱۰ع) کال پوري ئې پر ملتان او د افغانستان پر لمر ختیځو سیمو حکومت وکی، څو چي په همدې کال محمود پر ملتان حمله وکړه او هغه ئې ونیو او (د کندهار د شمال) د غورک په کلا کي ئې بندي کی او همهلته مړ سو. د داود په مړیني که څه هم د پخوانیو لودیانو کهول له منځه ولاړ، د داود اولاده تر هغه وروسته هم په ملتان کي وه او د فخر مدبر په قول د داود زوی شیخ د سلطان مسعود تر مړیني وروسته په ملتان کي بلوا وکړه، چي د سلطان مودود له خوا یو لښکر د لوی حاجب احمد محمد او فقیه سلیطي په سپه سالارۍ د ده د سر کوټلو له پاره وګومارل سو، څنګه

چي لښکر د وایوه کلا ته ورسېد نوموړي شیخ د خپلو ملګرو سره منصوره ته ولاړ او د غزني لښکریانو ملتان ونیو او دا په ملتان کي د لودي کهاله د پایځوړ وروستنی یادونه ده.

دا کهول په هند کي د اسلامي او افغاني ثقافت لومړنی ممثل دئ او د دې کهاله دوه تنه شیخ رضي او د حمید وراره او نصر د حمید زوی د پښتو ژبي شاعران ول او د دوی شعرونه او د ژوند پېښي د پښتنو شاعرانو تذکرې پټې خزانې د شیخ احمد ابن سعید اللودي د کتاب اعلام اللوذعي فی اخبار اللودي (٦٨٦ھ = ۱۲۸۷ع) په حواله راوړي دي او فرشتې هم د هغو افغانیت لیکلی دئ او موږ وینو چي لودیانو په (۸۵۵ھ) کال بیا د بهلول لودي په مشرۍ په هند کي د سلطنت دوهمه کورنۍ جوړه کړې ده او یو سل کاله ئې حکومت کړی دئ (۹۳۲ھ). خو د لودیانو لومړی کهول د افغانستان په تاریخ اړه لري او د بهلول کورنۍ په هند کي پاچهي کړې ده.

د لومړي کهاله نومیالي:

۱. شیخ حمید لودي (د ۳۷۰ھ شاوخوا)
۲. شیخ رضي د حمید وراره (د ۳۸۰ھ شاوخوا)
۳. نصر د حمید زوی (د ۳۹۰ھ شاوخوا)
۴. ابو الفتح داود د نصر زوی (۳۹۵ – ۴۰۱ھ)
۵. شیخ ... د داود زوی (د ۴۳۲ھ شاوخوا)

## مأخذونه:

تعلقات هند و عرب، زین الاخبار، د پښتو د ادبیاتو تاریخ ۲ ټوک، شوکت افغاني، تاریخ یمیني، فرشته، طبقات اکبري، حدودالعالم، تاریخ سند، ابن اثیر، حیات افغاني، خورشید جهان، پټه خزانه، آداب الحرب.

# د تخارستان آل باینجور

(۲۳۲-۳۷۲هـ)

دې سلسلې امیرانو په تخارستان او بلخ او خلم او ترمذ او اندراب او پنجهیر او بامیان او وخش کې حکمراني کوله او هغه باینجور ته منسوب دي چې د عباسي خلیفه گانو منصور او مهدي معاصر وو او غالباً به تر اسلام دمخه د تگین شاهانو پایڅوړ وي.

له هغې جملې څخه:

*۱/ داود د الیاس زوی چې د ۲۳۲ هـ په شاوخوا کې ئې سکه وهلې ده او په ۲۵۸هـ کال یعقوب لیث صفاري له ده څخه بلخ ونیو. دی له ۲۳۳ کال څخه تر ۲۵۸هـ پورې د بلخ حکمران وو او په ۲۵۹هـ کال مړ سو.

*۲/ ابو داود محمد د احمد زوی او د باینجور نمسی، چې د ۲۶۰هـ په شاوخوا کې ئې سکه وهلې ده. دی له ۲۶۰ کال څخه تر ۲۶۵هـ پورې د بلخ او تر ۲۷۹هـ پورې د تخار او جوزجان او ختلان او ترمذ حکمران وو.

*۳/ ابو جعفر احمد د محمد زوی او د احمد نمسی چې د ۲۷۹هـ له شاوخوا څخه حکمران وو او په ۲۸۸هـ کال ئې په اندراب کې سکه وهلې ده.

*۴/ جعفر د احمد زوی او د محمد نمسی چې تر ۳۱۰هـ وروسته ئې حکومت کاوه او په ۳۱۰، ۳۱۲، ۳۱۳ هـ ئې په ختل کې سکه وهلې ده چې اوس هم سته.

۵/ احمد د جعفر زوی او د احمد نمسی چې د ۳۷۲هـ په شاوخوا کې حکمران وو او د گردیزي په قول د چغانیانو د ابي علي احمد د محتاج د زوی له ملگرو څخه وو.

د دې کورنۍ ځیني نور کسان هم حکمرانان ول، لکه داود د باینجور زوی چې په ۳۰۶هـ کال د بصرې عامل وو او هاشم د باینجور زوی چې د وخش او هلاورد حکمران وو او په ۲۴۳هـ کې مړ دئ او بېگ د عباس زوی او د باینجور نمسی د ختل خاوند او حارث چې له ۲۷۲ څخه تر ۲۹۳هـ پورې د ختل حکمران وو او سکه ئې هم وهلې ده او

داود د ابو داود زوی او د عباس نمسی چي د ۲۷۲ھ په شاوخوا کي ژوندی وو او حاتم د داود زوی او د باینجور نمسی چي د ۲۵۱ھ په شاوخوا کي د جوزکرمان حاکم وو، او الیاس د هاشم زوی چي په ۲۱۱ھ کال د مصر سرلښکر وو.

اوس د دې کورنۍ د نسب شجره وګورئ (۴۶ لمبر).

**۴۶ - لمبر**

# د باینجور کورنۍ

باینجور (۱۴۰هـ حدود)

- داود ۲۰۶هـ (د بصرې حاکم)
  - حاتم (۲۵۱هـ)
- عباس؟
  - بیګ (ختل)
    - اسد
      - حارث د ختل او اندیجارغ حکمران (۲۷۲–۲۹۲هـ)
  - ابو داود
    - داود (حدود ۲۷۲هـ)
- احمد
  - ×۲–ابو داود محمد (بلخ ۲۶۰–۲۶۵هـ تخارتا ترمذ ۲۷۹هـ)
    - ×۳–ابو جعفر احمد (په اندراب کې سکه ووهله ۲۸۸هـ)
      - ۴–جعفر (په ختل کې سکه ووهله ۳۱۰ تر ۳۱۳هـ)
        - ۵–احمد (ختل، حدود ۳۷۲هـ)
- هاشم (مړ ۲۴۳هـ) (د وخش حکمران)
  - الیاس د مصر سپه سالار ۲۱۱هـ
    - ×۱–داود (بلخ ۲۳۲–۲۵۸هـ) (مړ ۲۵۹هـ)

(**مأخذ**: معجم الانساب زامباور ۳۰۷)

× د سکې خاوند پاچا

# د غرستان شاران

(۲۸۹ – ۵۵۰هـ)

لکه مارکوارت چي په ايرانشهر کي څرګنده کړې ده د (شار) کلمه د (شير) او (شاه) سره شريکه ريښه لري او دا د مرکزي افغانستان د سيمي د يو شمېر حکمرانانو لقب وو چي د دوی د حکمرانۍ سيمي د لمرختو خوا ته د باميان د شيرانو د هيواد ګاونډی وو او لکه د دې کتاب په لومړيو برخو کي چي مو وويل دا شاهي کهولونه د دې هيواد د هپتالي کوشاني عناصرو پايڅوړ دي او د حکمرانۍ مرکزئې په بشين کي وو چي شورمين او بغشور هم د هغه ځای ښارونه ول او د دې هيواد اصل نوم په اوستايي تلفظ (غرستانه) او په طبقات ناصري کي هم (غرستان) (په پښتو غر + ستان) دئ. او فردوسي ئې په شاهنامه کي د (غرچګان) په نامه يادوي او معرب ئې غرجستان يا غرشستان دئ. د دې سيمي شاران حکمرانان په نياو (عدل) او داد مشهور ول او ناصر خسرو قبادياني په دې بيت کي د دې کورنيو او د دوی د حکمرانۍ د مرکزو داسي يادونه کړې ده:

استاده بدبه باميان شيری
بنشسته بعز دربشين شاری[۱۲]

داسي معلومېږي چي د غرستان شاران تر اسلام دمخه هم د دې سيمي حکمرانان ول او د دوی د نيکه ګانو يو تصوير چي لاس ته راغلی دئ کټ مټ د هپتالي (هياطله = هون) د پاچهانو ښه او څهرو ته ورته دئ.

په اسلامي عصر کي د غرستان د شارانو يادونه د سلطان محمود د فتوحاتو او د غزني د سلطنت تر اداري لاندي د هيواد د اداري تمرکز سره منځته راځي، چي يو له دې غرستاني شارانو څخه (شار رشيد) په ۳۸۰هـ کال د سلطان محمود سياسي مشرتوب او

---

[۱۲] د ناصر خسرو په ديوان ۴۶۸ مخ کي دا بيت غلط چاپ سوی، دلته سم سو.

د هیواد اداري توحید ته غاړه ایښې وه. بل شا ابو نصر محمد د اسد زوی دئ چي په ۴۰۵هـ کال سلطان محمود بندي کی او په ۴۰۶ کال په هرات کي مړ سو.

۳/ شارشاه ابو محمد د محمد زوی وو چي د پلار په ژوند د پلار پر ځای کښېنوست او د سلطان محمود او ابو علي سیمجور سره وجنګېد او تر ۴۰۶هـ کال پخوا مړ سو.

۴/ شار اردشیر.

۵/ شار ابراهیم د اردشیر زوی.

۶/ شارشاه د ابراهیم زوی چي لورئې حور ملکه د سلطان حسین جهانسور غوري ماندینه وه.

هغو شارانو چي د سلطان محمود تر وخت وروسته تېر سوي دي د غزنه او غور تر مرکزي سلطې لاندي ژوند کاوه، خو پوهان او علم پالونکي خلک ول.

## مأخذونه:

ابن اثیر، تاریخي یمیني عتبي، دایرة المعارف اسلامي، د غرجستان ماده، نامهای ایرانی یوستی، روضة الصفا، تاریخ گزیده، معجم الانساب زمباور، ابن خرداذبه ۳۹، معجم البلدان ۳/ ۷۸۵.

# د اندراب امیران

دا امیران هم د هپتالي کوشانیانو د پخوانیو حکمرانانو له پایڅوړ څخه ښکاري چي په اسلامي عصر کي ئې اسلام منلی او د اندراب په غرو کي پاته سوي دي او څنگه چي د دوی د حکمرانۍ سیمه د دشوار گذارو غرو په منځ کي وه نو ځکه د جهانگیرانو له تسلط خوندي پاته ول.

له دې امیرانو څخه یوازي د دوو تنو نومونه د دوی له سکو څخه لاس ته راغلي دي او دا سکې د ارمیتاژ په موزه کي سته:

*۱/ مکتوم د حرب زوی (د ۳۵۹هـ په شاوخوا کي)

*۲/ سهلان د مکتوم زوی (د ۳۶۵ له شاوخوا څخه تر ۳۷۴هـ پوري)

**مأخذونه**:

معجم الانساب زمباور، د مارکوف د ارمیتاژ فهرست.

# چغانیان امیران - آل محتاج

چغان (معرب ئې صغان) د آمو ها خوا ته یو ځای دئ چې اوس د شوروي تاجکستان د جمهوریت جنوبي برخه ده. په دې ځای کې له پخوانیو زمانو څخه یوه سلطنتي کهول د (چغان خدات) په نامه حکومت کاوه چې له آریایي تاجیکو عناصرو څخه وو او د اسلامي دریمي پېړۍ په سر کې امیر محتاج نامي هلته حکمران او چغان خدات ته منسوب وو، چې تر هغه وروسته ئې کورنۍ په تاریخ کې د (آل محتاج) په نامه مشهوره سوه او له دې کورنۍ څخه عادلان او پوهان امیران منځ ته راووتل او د سامانیانو او غزنویانو په وختو کې ئې د آمو د سیند پر دواړو غاړو او بلخ او تخار باندې د هندوکش تر شمالي لمنو پوري حکومت کړی دئ. د محتاج پلار دا یادونه چې احمد نومېد د یاقوت په معجم الادباء کې راغلې ده او ژوند ئې په ۲۵۰ه کې اټکل کېدای سي. د دې کورنۍ نور کسان دا دي:

۱/ له محتاجه یو زوی د ابو سعد مظفر په نامه پاته سو چې د ۳۰۰ه په شاوخوا کې ئې ژوند او حکومت کاوه او زوی ئې ابوبکر محمد بن مظفر د ساماني نصر بن احمد د دربار امیر او په ۳۲۱ه کال د خراسان او د خراسان د ټولو عسکرو سپه سالار وو او تر هغه دمخه د ۲۹۸ه په محرمه کې د اسمعیل ساماني د زوی احمد له درباره د سیستان د فتح له پاره استول سوی وو او بیا په گرگان کې حاکم سو، په خراسان کې د ده د حکمرانۍ ورځې له ۳۲۱ه کاله د ده د مړینې تر کال ۳۲۹ه پوري وې. دې سړي د خراسان په پېښو کې تل د یوه غښتلي او اغېزه ناک حکمران په حیث لاس درلود او په چغانیان کې ښخ دئ.

۲/ ابو علي د محمد زوی او د مظفر نمسی چې په ۳۲۷ه کال د پلار د ناروغۍ په وخت کې د خراسان سپه سالار او حکمران وو او په ۳۲۹ه کال په جرجان او ري کې د ماکان بن کاکي سره وجنگېد او هغه ئې وواژه، خو په ۳۳۳ه کال چې د امیر نوح بن نصر ساماني د دربار له خوا د خراسان له حکمرانۍ څخه معزول سو نو سر ئې له اطاعته

وغړاوه او نوح ئې خلع کی او پخپله ئې د خراسان د چارو واګي په لاس کي ونيولې او د ژوند ترپايه ئې د سامانيانو له دربار سره اخ او ډب درلود، ثو چي د ۳۴۴ﻫ کال د برات پر ۲۹مه مړ او په چغانيان کي ښخ سو.

۳/ ابو العباس فضل د محمد زوی او د مظفر نمسی په ۳۳۳ﻫ کال د خپل ورور ابو علي له خوا د بلاد جبل (عراق عجم) په حکومت مامور سو او تر هغه وروسته د ساماني عسکرو لوی سپه سالار وو، چي د خپل ورور سره ئې هم جنګونه وکړه او په ۳۳٦ﻫ کال په بخارا کي بندي سو.

۴/ ابوالمظفر عبدالله د احمد زوی د محمد بن مظفر نمسی چي تر ۳۳۷ﻫ وروسته د ساماني امير نوح په دربار کي د رهين په توګه اوسېده، او په ۳۴۰ﻫ کال له آسه ولوېد مړ سو او په چغانيان کي ښخ دئ.

۵/ ابو منصور د احمد زوی د محمد نمسی چي په ۳۴۰ﻫ کال د چغانيان د حکمرانۍ نايب وو.

٦/ ابو المظفر طاهر د فضل زوی د محمد نمسی د مظفر کړوسی د چغانيان والي او ادب پالونکی سړی وو. منجيک ترمذي د ده له ستايونکو (مداحانو) ثخه وو او په ۳۷۷ﻫ مړ دئ.

*۷/ فخرالدوله ابوالمظفر احمد د محمد زوی ادب پالونکی والي او د دقيقي او فرخي ممدوح وو، چي د فرخي د داغګاه مشهوره قصيده "تا پرند نيلګون بر روی پوشد مرغزار" د ده په ستاينه کي ده او سکه ئې هم وهلې وه.

د آل محتاج اميرانو عموماً د ساسانيانو او غزنويانو د سلطنتي کورنيو سره خپل ښه روابط ساتل او د هغو د ساتني او حمايې په سيوري کي ئې د هندوکش د شمالي ولاياتو حکمراني له بدخشان او تخاره نيولې تر بلخ او جوزجان پوري کوله او دا کورنۍ د دري ادب له پالونکو ثخه ګڼله کېږي (د نسب شجره دي وکتل سي – ۴۷ لمبر).

## مأخذونه:

تعليقات چهار مقاله د دوکتور معين، معجم الانساب زمباور، ابن اثير، تاريخ يميني، معجم الادباء، رودکي د سعيد نفيسي، ابن خلدون، روضة الصفا، دايرة المعارف اسلامي، ديوان فرخي، د عروضي سمرقندي چهارمقاله.

**۴۷ - لمبر**

# د چغانیان د محتاج کورنۍ




**مأخذونه**: د زمباور معجم ۳۱۰، د الکامل او د بارتولد د ترکستان

# سیمجوریان

د سیمجور کلمه د یوستي په قول په (نامهای ایرانی) کي د زرین گورخر (سیم + خر) په معنا دئ او دا د خراسان د یوه سردار ابو عمران سیمجور نوم دئ چي د ساماني اسمعیل د احمد د زوی په دربار کي ئې د سرمنشي (دولت دار) وظیفه درلوده (۲۸۷هـ)، نو ځکه ئې دی (دواتي) باله چي د خراسان یوه لویه کورنۍ وه.

۱/ ابو عمران سیمجور دواتي په ۲۹۸هـ کال د ساماني اسمعیل د زوی احمد له درباره د سیستان په حکمراني وگومارل سو، خو یو کال وروسته (۳۰۱هـ) سیستانیانو د نصر بن احمد سره مخالفت وکی او سیمجور له هغه ځایه ووت.

په ۳۱۴هـ کال چي امیر نصر د احمد زوی ري ونیو د هغه ځای حکومت ئې سیمجور ته ورکی او دی د خپل وخت له زړه ورانو او لښکرکشانو څخه وو، چي په ۳۱٦هـ کال د خراسان په څنډو کي د ابوالحسن د ناصر اطروش د زوی سره هم جنگېدلی دئ.

۲/ ابو علي ابراهیم د سیمجور زوی تر خپل پلار وروسته د مرو او هرات او نیشاپور او قهستان حاکم وو (۳۳۳ – ۳۳۵هـ) او نوح د نصر زوی د ابو علي احمد چغاني تر عزل وروسته د خراسان په حکمرانۍ وټاکه او څه موده هم د گرگان والي وو او په ۳۳٦هـ کي مړ دئ.

*۳/ ابوالحسن محمد د ابراهیم زوی او د سیمجور نمسی د پلار تر مړیني وروسته د خراسان سپه سالار او لقب ئې ناصرالدوله وو او په ۳۵٦هـ کال د یوه لښکر سره د ري نیولو ته وگومارل سو او د ۳۷۸هـ کال په ذیحجه کي مړ دئ.

*۴/ ابو علي محمد مظفر د محمد زوی د ابراهیم نمسی د پلار تر مړیني وروسته د هغه پر ځای کنبښنوست او حاجب الباب وو. څه موده هم د پلار په ژوند کي د هرات حاکم وو، خو تر هغه وروسته په نیشاپور کي د خراسان واکدار او سپه سالار وټاکل سو. سکه ئې هم وهلې ده او د خپلواکۍ دعوه ئې کوله، څو چي د بلخ د حکمران سره ئې لاس

یو کی او د ساماني امیر نوح په مقابل کي یاغیان سول، خو امیر سبکتگین او زوی ئې محمود د دوی سره وجنگېدل او د ۳۸۴ھ کال د روژې په ۱۵ ورځ ئې په طوس کي دوی مات کړه، ابو علي خوارزم ته وتښتېد او هلته د ۳۸۶ھ کال په روژه کي ونیول سو او په پای کي ئې سبکتگین ته په لاس ورکی او د گردېز په کلا کي بندي وو، څو چي په ۳۸۸ھ کال مړ سو.

۵/ ابوالقاسم د محمد زوی او د ابراهیم نمسی: د هرات والي وو او په ۳۸٦ھ کال نیشاپور ته ولاړ او د سبکتگین د دربار د خلکو سره یو ځای سو او د قهستان حکمراني ئې وموندله او د ټیټوالي او پاسوالي تر لیدو وروسته د ساماني منتصر سره یو ځای سو (۳۹۱ھ) او په سرخس کي ئې د سبکتگین د زوی نصر سره جگړه وکړه او ونیول سو او غزنه ته ئې واستاوه.

٦/ ابوالحسن د ابو علي سیمجوري زوی: په ۳۸۵ھ کال چي ئې پلار مغلوب سو دی ري ته ولاړ، خو په نیشاپور کي د امیر محمود لاس ته ورغی او غزني ته واستول سو او په گردېز کي بندي وو.

ابوسهل د ابوالقاسم علي زوی او د محمد نمسی: د ۳۸۸ھ په شاوخوا کي ئې ژوند کاوه.

د دې کورنۍ نومیالیو په خراسان کي د ساماني د وخت او د غزنوي دورې د ابتدا په پېښو کي لویه برخه درلودله او ډېره موده ئې په بشپړ قوت او خپلواکي حکومت کړی دئ او کله ئې هم د پاچا په عنوان سکه وهلې ده، چي د ابوالحسن محمد ناصرالدوله سکه سته چي له ۳۷۲ھ څخه ئې تر ۳۷۷ھ پوري حکومت کړی دئ او یوه لور ئې د نوح بن منصور ساماني پاچا ماندینه وه. همدارنگه ابو علي محمد مظفر عمادالدوله (۳۷۷ – ۳۸۷ھ) هم سکه وهلې وه او خپلواکي ئې درلوده (۴۸ لمبر د نسب پاڼه دي وکتل سي).

## مأخذونه:

الکامل، تاریخ یمیني، طبقات ناصري، نامنامۀ یوستی، د بارتولد ترکستان، د زمباور معجم: ۳۱۰.

**۴۸ - لمبر**

# سیمجوریان

ابو عمر سیمجور د واتي حکمران سیستان

۱ - ابو علي ابراهیم (۳۳۳ - ۳۳٦هـ)

× ۲ - ابو الحسن محمد ناصر الدوله
۳۷۲ - ۳۷۷ هـ




مراجع: الکامل، تاریخ یمیني، طبقات ناصري،
نامهاي ایرانی، ترکستان بارتولد، معجم زامباور ۳۱۰

# غزنویان

(۳۵۱ – ۵۸۳)

د سامانیانو په یادونه کي مو ولوستل چي په (۳۴۹ هـ = ۹۶۰م) کال د ساماني لومړي عبدالملک له درباره امیر حاجب الپتگین د خراسان په سپه سالارۍ گومارل سوی وو، خو د عبدالملک تر مړيني وروسته الپتگین د ساماني نوح له زوی منصور څخه سر واخیست او غزنه او زابلستان ته ولاړ (۳۵۰هـ). په دې وخت کي د غزنه د شاوخوا حکمران د لویک له کورنۍ څخه یو سړی وو چي د دې کورنۍ یادونه د کتاب په سر کي تېره سوه او ښایي چي د افغانستان د هپتالي کوشانو د امیرانو پایښوړ وي، ځکه چي پخپله الپتگین او د هغه پر ځای کښېنستلي کسان چي د نومو په پای کي ئې د (تگین) کلمه راغلې ده هم د تگین شاهي سلطنتي کهول ته منسوب دي چي یو گډ افغاني او ترکي عنصر دئ او د چیني گرزندوی وکونگ Wou-Kong په شهادت د ۷۶۰ع کال په شاوخوا کي ئې د افغانستان پر لمر ختیځو او د هندوکش پر جنوب حکمراني کوله او د تگین آباد ښار د دوی په نامه د محمود د اخلافو تر وخت پوري هم د اوسني کندهار لمر لوېدیځ شمال ته ولاړ وو او سکې ئې چي د اسلامي عصر په اوایلو پوري اړه لري د هندوکش په شاوخوا کي پیدا کېږي.

په هر حال الپتگین غزنه له لویک (انوک) څخه لاس ته راووست (۳۵۱هـ) او تر خپلي مړيني پوري ئې یو کال پر غزني او زابلستان حکومت وکی او په ۳۵۲هـ کال په غزني کي مړ سو او اسحاق زوی ئې پر ځای کښېنوست.

په دې وخت کي بیا امیر لویک د غزني د نیولو په غرض راغی اسحاق بخارا ته منډه کړه او د منصور بن نوح څخه ئې مرسته وغوښتله او بیرته ئې غزني ونیو او تر درو کالو حکمرانۍ وروسته په (۳۵۵ هـ = ۹۶۵ع) کال مړ سو. تر الپتگین وروسته د ده یو ملگری چي ښه پرهېزگاره، مبارز او عادل سړی وو او بلکاتگین نومېد (په غالب اټکل به همهغو افغاني تگین شاهانو ته منسوب وي) د ده پر ځای کښېنوست، دی لس کاله په

غزني کي امیر وو او د ۳۵۹ھ په شاوخوا کي ئې په غزني کي سکه وهلې ده او د ۳۶۵ھ په شاوخوا کي د گردېز په کلابندي کي مړ سو او امیر پیري تگین چي یو مفسد سړی او د الپتگین ملگری وو پر غزني مستولي سو، خلک له هغه څخه خوابدي او په عذاب سول، نو د غزني او گردېز پخوانی امیر لویک ئې راوباله، لویک د کابلشاه د زوی په مرسته (د کابل جنوبي خوا ته د لوگر) د څرخ پر شاوخوا یرغل وکی. امیر سبکتگین (د الپتگین زوم او ملگری) هغه مات کړه او لس پیلان ئې ځني ونیول او غزني ته راغی، څنگه چي د غزني خلک د پیر تگین له ظلمه په عذاب سوي ول نو په اتفاق ئې امیر سبکتگین د جوق قرابجکم زوی او د قرارسلان نمسی (غالباً تگین شاهیانو ته منسوب) ئې د غزنه په امارت ومانه (د ۳٦٦ ھ = ۹۷٦ع کال د شعبان ۲۷).

امیر سبکتگین نوی مسلمان سوی او زړور سړی وو او د نظام الملک په قول په سیاست نامه کي او د حمدالله په وینا په تاریخ گزیده کي ده د زاول د یوه مشر لور غوښتې وه او څنگه چي له دې لاري د پښتنو زوم سوی وو ځکه نو د ده په لښکر کي ټول پښتانه جنگېدل او بست او قصدار (بلوچستان د کلات جنوب ته اوسنی خضدار) او زمینداور او بامیان او تخارستان او غور او زابلستان او کابل ئې چي د قراتگین نامي د گومارل سوو کسانو په لاس کي ول ونیول او د کابل شمالي خوا ته په پروان کي ئې سکه ووهله او لکه چي مو د لودیانو په حالاتو کي وویل په لغمان کي ئې د کابل د سیند پر غاړه د ویهند د جیپاله کابل شاه سره جگړه وکړه او د هغه سل زره لښکر ئې مات کی او لغمان ئې تر پېښوره ونیو او د هغه سیمو خلکو ته ئې د اسلام د دین تبلیغ وکاوه (۳۸۱ ھ = ۹۹۱م). په دې جگړو کي سبکتگین ته ډېره ولجه په لاس ورغله او ډېر غښتلی سو او د عتبي او ابن اثیر په قول افاغنه او خلج (نني غلجیان) تر هغه وروسته د ده تابع سول.

د سبکتگین له نورو مهمو کارو څخه لکه د دوهم ساماني نوح په حالاتو کي چي مو وویل د هرات په جگړه کي (۳۸۴ھ = ۹۹۴م) د سبکتگین او د هغه د زوی محمود مرسته ده، چي په نتیجه کي د ساماني دربار مخالفان له پښو ولوېدل، دا نومیالی، عادل او زړور او رښتین پاچا تر ۲۱ کالو حکمرانۍ وروسته په ۵٦ کلنۍ په ۳۸۷ھ کال د بلخ او بامیان تر منځ د مدرموی په کلي کي مړ او په غزني کي ښخ سو. حال دا چي د آمو له سینده تر قصدار (بلوچستان) پوري او د سند له سینده تر نیشاپور او سیستان پوري ئې

د غزنه تر مرکزیت لاندي یو هیواد تشکیل کړی وو او د وطني کورنیو محلي حکمرانان لکه په سیستان کي د صفاریانو وروسته پاته کسانو او په گوزگان کي د آل فریغون امیرانو د هیواد په لمرخاته کي د ملتان لودي پاچهانو ئې مشرتوب منلی وو.

د امیر سبکتگین تر مړیني وروسته د ده د شپږو زامنو له جملې څخه اسمعیل غزني ته راغی او د ده پر ځای کښېنوست. خو څنگه چي ئې کفایت نه درلود شورشیانو سر واخیست او د ده مشر ورور امیر محمود چي په نیشاپور کي د خراسان حکمران وو په همدې کال ۳۸۷ھ له خراسانه لښکر راووست او د غزنین په وره کي ئې د خپل ورور سره جگړه وکړه، څنگه چي د محمود مور زاولۍ وه او فردوسي هم هغه زابلۍ بللې ده (خجسته درگه محمود زابلی دریاست) نو د زابل د خلکو په کومک ئې اسمعیل او د هغه لښکر مات کی او اسمعیل تر اوو میاشتو پاچهۍ وروسته په زندان کي مړ سو.

محمود چي غزنه ونیو د بلخ خوا ته ئې مخه کړه او په همدې کال ئې شمالي افغانستان هم ونیو او په بلخ کي د پاچهۍ پر تخت کښېنوست او د مرو خوا ته پر مخ ولاړ، چي د نوح د زوی عبدالملک سره جگړه وکړي، خو په پای کي ئې روغه ورسره وکړه او له ساماني درباره محمود د خراسان په پاچهي له تخارستانه تر بلخ او هراته وپېژاند سوه (۳۸۸ھ = ۹۹۸ع)، او هغه وخت چي ئې وغوښته له مرو څخه بلخ ته راوگرزي د بغداد د خلیفه القادر بالله له خوا د عهد او لوا خلعت ورته راورسېد او د ده پاچهۍ پر خراسان باندي رسماً د (یمین الدوله او امین المله ولی امیرالمؤمنین) د القابو سره تصدیق سوه (د ۳۸۹ھ = ۹۹۸م دیقعده). امیر محمود په سکو کي د نظام الدین او ملک الممالک او ملوک الملوک په القابو هم یاد سوی او فردوسي دی (شاه) او العتبي ئې احیاناً (سلطان) لیکي او د غزنوي دورې نور مؤرخین لکه بیهقي او گردیزي ورته (امیر) وایي، خو نظام الملک په سیاست نامه او ابن اثیر په الکامل او منهاج سراج په طبقات ناصري کي ویلي دي چي: محمود لومړی وار د (سلطان) په لقب ملقب سو او د مجمل التواریخ والقصص (د تهران چاپ) د مؤلف په قول دا لقب محمود د امیر خلف صفاري له قوله واخیست او هغه وخت چي خلف وویل محمود سلطان دئ تر هغه وروسته محمود په دې لقب مشهور سو (۴۰۶مخ).

که څه هم دا لقب د ده او د ده د اخلافو پر سکو نسته او لومړی وار د ابراهیم غزنوي پر سکه وهل سوی چي په (۴۵۱ھ = ۱۰۵۹م) کال پر تخت کښېنوست خو په

غزني کي د سلطان محمود د قبر پر شناخته په کوفي غوندي پخواني ليک د ده د مړيني ورځو ته نژدې ليکلې سوې دي: "الامیر الاجل السید نظام الدین ابی القاسم محمود بن سبکتگین" او دا ټينګ سند ډېر پخوانی دئ.

سلطان محمود په ۳۸۹ه کال د ساماني منصور او عبدالملک خاصه امیران يکتوزون او فايق او وروستنی ساماني شهزاده المنتصر ئې لکه چي د مخه وليکل سوه مغلوب کړه او په نور پاته ژوند کي د (۳۹۲ه او ۴۱۶ه) تر منځ ئې اووه لس واره پر هند لوی او کوچني يرغلونه وکړه او له (۳۹۰ه څخه تر ۳۹۲ه) پوري ئې د ويهند په ولايت (د اټک پر غاړه اوسنی هونډ) او لغمان او پېښور کي د جيپاله سره وجنګېد او پېښور ئې ونيو او د (غازي) په لقب مشهور سو.

په ۳۹۳ هـ ۱۰۰۲م کال ئې د احمد صفاري زوی خلف لکه د صفاريانو په احوال کي چي تېر سوه ونيو او سيستان ئې قبجي حاجب او کدخدای بوعلي شاد ته وسپاره، خو بوبکر عبدالله چي د خلف د لور نبيره وو او بوالحسن حاجب پر دوی بلوا وکړه څو سلطان په ۳۹۴ه کال بيا سيستان ته راغی او هغه بلوا ئې سره کړه.

په ۳۹۶ه = ۱۰۰۵ م کال د سند تر سيند پوريووت او لکه د لوديانو په بحث کي چي وويل سوه ملتان ئې ونيو او په (۳۹۷ه = ۱۰۰۶م) کال ئې د ترکستان ايلک خان چي پر بلخ او هرات ئې تر نيشاپوره قبضه کړې وه مات کی او په ۳۹۹ه = ۱۰۰۸م کال ئې د هند راجګان په ويهند کي د اننده پاله سره مات کړه او د ۴۰۲ - ۴۰۳ه تر منځ ئې په پنجاب او کشمير کي فتوحات وکړه او په ۴۰۳ه = ۱۰۱۲م کي ئې غرجستان (د غور شمال ته) هم ونيو او د بيهقي په قول ئې په (۴۰۵ه = ۱۰۱۴ع) کال د بست له لاري پر غور يرغل وکی او د غور حکمران امير محمد سوري د لسو زرو تنو لښکر سره د آهنګران په کلا کي کلابند او بندي سو او د (۴۰۷ه = ۱۰۱۶ع) په شاوخوا کي ئې پر پنجاب او کشمير حملې وکړې او يو کال وروسته د خوارزم خلکو پر مامون خوارزمشاه (د سلطان محمود د خور پر مېړه) بلوا وکړه او هغه ئې وواژه خو محمود خوارزم ونيو او التونتاش ئې هلته ودراوه (۴۰۸ه). په (۴۰۹ - ۴۱۰ه) کال ئې په هند کي قنوج او د ګنګ کڅونه د ډېرو بنديانو او ولجو سره ونيو او د درو مليونو درهمو سره غزني ته راغی او د ابن اثير په قول په لاره کي د افغانانو سره ونښت ځکه چي دوی تل د هند او غزنه په لاره کي د محمود مخه نيوله. په (۴۱۱ه = ۱۰۲۰م) کال د غور فتح او په ۴۱۲ه د

کشمیر د لوهرکوټ د حصار محاصره او په ۴۱۳هـ کې د ګوالیار او کالنجرو او په ۴۱۴هـ د سلیمان د غرو او پښتنو فتوحات بشپړ سول او په (۴۱۵ – ۴۱۶هـ) کال ماوراء النهر ته ولاړ او د بلخ او د آمو د غاړي امیران ئې د ځان تابع کړه او د کاشغري قدرخان سره ئې تړون وتاړه او څلور زره سلجوقیان ئې خراسان ته راوستل. په ۴۱۶هـ کي محمود د جنوبي هند د کاتیا وار پر سومنات حمله وکړه او د هغه ځای مشهور بودتون (معبد) ئې وران کی او ډېره ولجه ئې لاس ته ورغله او ګجرات ئې هم ونیو.

د محمود وروستنی یرغل په (۴۱۸هـ = ۱۰۲۸م) کال د ملتان د جتانو د طایفې د تأدیب له پاره وو او په خپل ژوند کي پر دې بریالی سو چي له اصفهانه نیولې تر عراق او همدان او طبرستانه او د لمر ختو خوا ته د ګنګا تر څنډو او شمالاً تر خوارزمه، او جنوباً د بلوچستان تر کڅو او کاتیاوار پوري ئې یوه لویه شهنشاهي جوړه کړه او خپل زوی مسعود ئې په اصفهان کي کېنېناوه (۴۲۰هـ = ۱۰۲۹م) او دا لوی هیواد ئې له ګنګا څخه د دجلې او فرات تر کڅو (سواحلو) پوري د غزنه د مرکزیت تر اداې لاندي راووست او په آسیا کي ئې خورا لویه امپراتوري جوړه کړه. ده په غزنه، پروان، نشاپور، هرات، جوزجان، بلخ، ولوالج (تخارستان)، لاهور (د محمود پور په نامه) او د هیواد په نورو ښارو کي سکه ووهله او دربار ئې تل د دري سترو شاعرانو لکه فردوسي، فرخي، منوچهري، عنصري او لویو پوهانو لکه البیروني او ابن سینا او ثعالبي او خمار او العتبي او نورو د ټولېدو ځای وو. دی ستر، باکفایته، زړور، سخي او د جهانداری په چارو پوه پاچا وو، چي د العتبي په قول ئې د ترکي او افغاني او تاجیکو او غلجو (غلجو چي د اصطخري او یاقوت په وینا په خراسان او سیستان او کابل کي اوسېدل) او هندو عناصرو څخه ګډ لوی لښکر جوړ کړی او د افغانانو طایفې ئې د غور په غرو او د سلیمان په غره او سپین غره او نورو کي د ځان تابع او په اسلام ئې مشرفي کړې او د ابن اثیر په وینا د معتزله او باطنیه او جهمیه او مشبهه او روافضو فرقې ئې ویستلې او کتابونه ئې وروسوځل. د ابن خلکان په قول ده هر کال په هند کي غزا پر ځان فرض کړې وه او په مذهب شافعي وو او ابن خلکان د امام الحرمین عبدالملک جویني (د سلطان معاصر) له کتابه چي مغیث الخلق فی اختیار الاحق نومېږي نقل کوي چي: محمود د امام ابو حنیفه په مذهب وو او د حدیثو سره ئې خورا زیاته مینه درلودله، او تل به ئې هغه د لویو شیخانو څخه اروېده. خو د قفال مروزي نامتو شافعي په تلقین د امام

شافعي مذهب ته راواوښت.

لنډه دا چي سلطان محمود کروړ او زړور پاچا وو او د ابن اثير په قول ښه مخ او جذابه بڼه ئې درلوده، سترگي ئې کوچنۍ او وروښتان ئې سره ول او د ابن خلکان په وينا د ۳٦۱هـ کال د عاشورا په شپه زېږېدلی وو او د آسيا په زړه کي د يو لوی دولت تر جوړولو وروسته د سل په ناروغۍ اخته سو او په ٦۱ کلنۍ کي تر ۳۳ کالو پاچهۍ وروسته د (۴۲۱هـ – ۱۰۳۰م) کال د دوهمي خور (ربيع الاخر) پر ۲۳مه د پنجشنبې په ورځ مړ او د غزنه په فيروزه ماڼۍ کي ښخ سو. اوس که څه هم په غزني کي د فېروزه ماڼۍ څه اثر نسته خو يوازي د سلطان د مزار شناخته (ډبرينه لوحه) پاته ده او پر هغې ئې په کوفي غوندي ليک داسي ليکلي دي:

"غفراناً من الله الامير الاجل السيد نظام الدين ابی القاسم محمود بن سبکتگين غفرله، توفی رحمة الله عليه و نور حفرته و بيض وجهه عشية يوم الحمير لسبع يقين من شهر ربيع الاخر سنه احدی و عشرين و اربعمائة".

هغه کوچنۍ گنبده چي نن د سلطان پر مزار ودانه ده په ۱۳۲۴هـ ق کال د امير حبيب الله خان په امر جوړه سوې ده (۴۹ – ۵۰ عکسونه).

تر محمود وروسته ئې زوی محمد له گوزگانان څخه راغی او په غزني کي د پلار پر ځای کښېنوست او خپل اکا امير يوسف د سبکتگين زوی ئې خپل سپه سالار او خواجه ابو سهل احمد حمدوي ئې وزير او علي قريب ئې لوی حاجب وټاکه، خو تر ۵۰ ورځو وروسته ابو النجم امير اياز ايماق او علي دايه له غزني څخه د دې له پاره راووتل چي د سلطان مشر زوی امير مسعود ته چي په ري او اصفهان کي حکمران وو ورسي او هغه د خلکو له خوا غزني ته راوبولي. محمد د هندوانو د لښکر سپه سالار سوند هرای په هغو پسي وگوماره، خو د سرای مريانو سوندهرای وواژه او په نشاپور کي امير مسعود ته ورغلل، په دې وخت کي د بغداد خليفه القادربالله د امارت لوا او عهد د مرسل بن منصور بن افلح گرديزي په لاس امير مسعود ته ولېږل، او ده ته ئې د اسلامي دايرة المعارف په قول د ناصرالدين الله او حافظ عبادالله او ظهير خليفة الله لقب ورکی، چي ابن اثير دا لقب سيد الملوک او السلاطين هم ليکلی دئ او په دې صورت ئې مسعود رسماً د خراسان پاچا وپېژاند.

امير مسعود له هراته بست ته راغی او محمد له غزنه څخه تگين آباد (د هلمند او




د غزنویانو د سلطنت نقشه–۱۰۳۰م. د غزنویانو له کتاب څخه–د ۱۹۶۳ د ایدنبرګ چاپ–۴۹–لمبر نقشه



په غزني کي د سلطان محمود قبر او د هغه کتيبه ۵۰ – لمبر عکس

ارغنداو تر منځ) لښکر راووست، خو تر اوو میاشتو پاچهۍ وروسته امیر یوسف او علي قریب هغه په تګین آباد کي ونیو او ړوند ئې کی او امیر مسعود ئې د هغه پر ځای کښېناوه (د ۴۲۱هـ د کوچني اختر میاشت).

سلطان مسعود خواجه احمد د حسن میمندي زوی (چي په ۴۲۴هـ کي مړ دئ) د هند له زندانه راویوست او هغه ئې خپل وزیر کی او حسن میکالي (وزیر مشهور په امیر حسنک) ئې د قرمطي والي په تور په بلخ کي غرغره کی او د محمود له خزانه داره چي احمدینا لتګین نومېد خورا ډېر مال واخیست او دی ئې هند ته واستاوه او په ۴۲۲هـ کال ئې کرمان او مکران ونیول او په ۴۲۳هـ = ۱۰۳۱م کال هرات ته ولاړ او سپه سالار عبدوس ئې د خراسان د ترکمانانو د فساد د مخنیوي له پاره وګوماره او په ۴۲۴هـ کال ئې د کشمیر پر سرستي لښکر ویوست او په ۴۲۵ هـ = ۱۰۳۳م کال ئې پر آمل او ساري او طبرستان بری ومومند، او امیر بکتغدی ئې د لوی لښکر سره د خراسان د شمالي ډاګو د ترکمانانو د مخنیوي له پاره واستاوه، خو ناکامه راوګرزېد، او په (۴۲۶هـ = ۱۰۳۴م) کال ئې یو لښکر د هندو سپهسالار تلک د جهلن د زوی په مشري د احمدینا لتګین د مقابلې له پاره چي په هند کي یاغي سوی وو ولېږه، احمد مات سو او منصوره ته وتښتېد او د سند په اوبو کي ډوب سو (۴۲۷هـ = ۱۰۵۳م) او په همدې کال ئې پر هانسي او د هند پر نورو کلاوو یرغل وکی، تر فتوحاتو وروسته ئې خپل زوی امیر مجدد په لاهور کي حکمران پرېښوو او تر (۴۲۸هـ = ۱۰۳۶م) پوري بیرته غزني ته راغی.

څنګه چي په خراسان کي سلجوقي ترکمانانو تل فتنې جوړولې ځکه نو په همدې کال ئې د بلخ له لاري ماوراء النهر ته مخه وکړه، خو پر بلخ باندي داود ترکمان یرغل وکی او چي امیر مسعود بلخ ته ورسېد داود مرو ته پر شا سو او په ۴۲۹هـ کال ئې په ګوزګانانو کي مسعود علي کندزی له پښو واچاوه او ځیني سلجوقیان ئې د ښځ د ځایو په ورکولو راضي کړه او د ځینو سره ئې په ۴۳۰هـ کال په شمالي سیمو کي جګړه وکړه او تر (۴۳۱هـ = ۱۰۳۹م) کاله د هرات او غور له لاري غزني ته راغی او لوی حاجب سباشي او حاجب بکتغدی چي په دې جګړو کي ئې نافرماني کړې وه مصادره او په هند کي معزول کړه. په دې وخت کي د سلجوقي میکائیل زامنو طغرل او چغري بیګ خراسان له نشاپوره تر هرات او بلخ او سیستان پوري ونیو او مسعود ئې د مرو او سرخس تر منځ د

دندانقان په جګړه کي مات کی او په ۴۳۱هـ کال مسعود خپله وروستنۍ سکه ووهله چي تر هغه وروسته په ۴۳۳هـ کال سلجوقي طغرل په هغه ښار کي سکه وهلې ده.

امیر مسعود چي د هیواد په اوضاع کي ګډوډي ولیدله، خپل زوی مودود ئې په غزنه کي پرېښو او پخپله د محمودي خزانو او لښکر او د خپل ړانده ورور محمد سره ئې هندوستان ته مخه کړه خو په ماریګله (د اوسني حسن ابدال په شرقي برخه) کي د ده لښکریانو پر ده بلوا وکړه او ړوند امیر محمد ئې خپل پاچا وټاکه، او امیر مسعود ئې د ګیري (ګهري) په کلا کي بندي کی او بیا ئې د طاهر بن محمد په واسطه وواژه (د ۴۳۲هـ = ۱۰۴۰م کال د جمادی الاولی ۱۱).

په دې وخت کي امیر مودود په غزنه کي پر تخت کښېنوست او د خپل لښکر سره ئې هندوستان ته مخه وکړه او د ننګرهار په دنپور (اوسني جلال آباد ته نژدې = د بابر په آدینه پور) کي د خپل اکا محمد د لښکر سره ونښت او د خپل پلار وژونکي ئې که ترک ول که تاجیک ول ووژل او هم ئې محمد د هغه د زوی طاهر سره ونیو او وئې وژل (۴۳۲هـ) او هلته ئې یو ښار د (فتح آباد) په نامه ودان کی چي تر اوسه په همدې نامه پاته دئ.

سلطان مودود د سلجوقي ترکانو سره چي نفوذ ئې ورځ په ورځ په ماوراءالنهر او خراسان کي زیاتېده د دوستانه روابطو په ټینګولو کي زیار یوست، او د جغري بیګ لور ئې وکړه، خو سره له هغه هم د هغه له شره خوندي پاته نه سو او له همدې سببه غزنویانو تر خراسان پر خپلو هندي مستملکاتو باور پیدا کی او دا کار لومړی د مودود په سکو کي لیده کېږي، چي پر خپله سکه ئې د سیوا Siva د غوایي صورت د سري سمنته دیوه Sri Samanta Diva د لیکني (کتیبې) سره نقش کړی وو چي دا رویه د ویهند د کابل شاهانو له سکو څخه اخیسته سوې وه. مودود تر ۹ کالو پاچهۍ وروسته په ۳۹ کلنۍ (۴۴۱هـ = ۱۰۴۹م) کال مړ سو، او د غزني پاچهي تر دوو میاشتو پوري د امیر مودود د زوی دوهم مسعود او اکا ئې علي د لومړي مسعود د زوی په نامه وه، څو چي د سلطان محمود زوی عبدالرشید پر دوی غالب سو او په همهغه کال ۴۴۱هـ کي د غزني پر تخت کښېنوست.

خو سلجوقي داود چي د خراسان حکمدار وو د سیستان له لاري پر بست او زمینداور یرغل وکی او زوی ئې الپ ارسلان له تخارستانه پر غزنه راغی، مګر د

عبدالرشید د لښکر سالار چي طغرل نومېد او د سلطان محمود له مریانو څخه وو، الپ ارسلان د خمار په دره کي (ښایي د اوسني میدان په کهنه خمار کي) مات کی، او هم ئې په بست کي داود ته ماته ورکړه او په سیستان کي ئې د داود اکا ییغو هم مات کی او وروسته بیا غزنه ته راغی، عبدالرشید ئې د آل محمود د ځینو شهزادګانو سره وواژه (د ۴۴۳هـ = ۱۰۵۰م شاوخوا). خو د غزنه خلکو پر طغرل بلوا وکړه او نوشتګین نامي دی وواژه او سلطان فرخزاد د مسعود زوی او د محمود نمسی ئې د غزنه پر تخت کښېناوه (۴۴۴هـ). ده د زابلستان د خلکو له اوړو څخه د درنو مالیو بار ایسته کی، ځکه نو په خلکو کي محبوب سو، فرخزاد د هیواد اداره لوی حاجب خرخیز ته وسپارله او دې حاجب د سلجوقیانو د مقابلې له پاره لوی لښکر خراسان ته ولېږه، او د ابن اثیر په قول په زیاتو جګړو کي بریالی سو. خو د فرخزاد ځینو مخالفینو دسیسه جوړه کړه او غوښته ئې دی په حمام کي ووژني، مګر په ۴۵۰هـ کال د خپلو ملګرو په مرسته له دې مهلکې څخه وژغورل سو، او تر اوو کالو پاچهي وروسته د ۴۵۱هـ کال د صفر په میاشت کي مړ سو او ورور ئې ابراهیم د مسعود زوی پاچهي ته ورسېد. ده د سلجوقي داود او الپ ارسلان سره روغه وکړه او د افغانستان لمر ختیځي برخي تر لاهور پوري د ده په لاس کي پاته سوې او څو واره ئې هند ته لښکر ویوست، او د خیرآباد او ایمن آباد کلاوي او ډېر مسجدونه او مدرسې او ماڼۍ ئې ودانی کړې او ۴۲ کاله ئې په آرامي او هوسایي سره حکومت وکی او په ۴۹۲هـ = ۱۰۹۸م کال په شپېته کلنۍ مړ سو او زوی ئې علاء الدین دریم مسعود د ده پر ځای کښېنوست او امیر عضدالدوله ته ئې د هند امارت ورکی او څنګه چي د سلطان سنجر خور مهد عراق ئې ماندینه وه نو ځکه ئې د سلجوقیانو سره روغه او دوستي درلوده او په همدې سبب ئې د هند فتوحاتو ته توجه وکړه، څو چي د ده سپه سالار طغاتګین په هندوستان کي د ګنګ تر اوبو پوري ووت.

سلطان ابراهیم د (۵۰۹هـ = ۱۱۱۵م) کال په شاوخوا کي وفات سو، او زوی ئې ارسلان شاه په غزنه کي پر تخت کښېنوست، او خپل ورور شیرزاد ئې وواژه او خپله میره ئې چي د لوی سلطان سنجر خور وه توهین کړه، ځکه نو د ده بل ورور بهرامشاه له ده څخه د سنجر دربار ته وتښتېد، سنجر د بهرامشاه سره مرسته وکړه څو چي په غزني کي ئې ارسلانشاه مات کی او هندوستان ته ئې په تېښته مجبور کی او همهلته په ۵۱۱هـ = ۱۱۱۷م کال مړ سو او د ده پر ځای بهرامشاه د سلجوقي سنجر په ملاتړ پر تخت کښېنوست

او خپله سکه ئې د سلطان سنجر په نامه ووهله، ده هندوستان ته لښکر ویوست او په (۵۱۲ هـ = ۱۱۱۸م) کال ئې په ملتان کې محمد باهیلم د لسو زامنو سره له منځه یووړ او په سوالک ئې د ناګور کلا جوړه کړه.

هغه وخت چې غزني ته راغی د سلطان علاء الدین جهانسوز غوري سره په جګړه اخته سو او په هغه جګړه کې د ده زوی دولتشاه ووژل سو او پخپله بهرامشاه هندوستان ته پر شا سو او غزنه د غوریانو لاس ته ورغی. خو چې غوریان بیرته وګرځېده دی غزنه ته راغی او په (۵۵۲هـ = ۱۱۵۷م) کال مړ سو او تر ده وروسته خسروشاه د بهرامشاه زوی (۵۵۲ – ۵۵۷هـ) او خسرو ملک د خسروشاه زوی (۵۵۷ – ۵۸۳هـ) په غزنه او لاهور کې پر تخت کښېناستل، خو خسرو له غزانو څخه ماته وکړه او غزانو غزنه ونیو او دی لاهور ته ولاړ او بیا په ۵۸۳هـ کال سلطان معزالدین محمد سام غوري په لاهور کې خسرو ونیو او د غرجستان د بلوران په کلا کې ئې بندي کی او په ۵۸۷هـ کال ئې وواژه او د ده د مړیني سره د غزنویانو د آل سبکتګین د کهول کمبله ټوله سوه.

د غزنویان دولت په افغانستان او ایران او هندوستان او ماوراء النهر کې د دجلې له کڅو (سواحلو) څخه تر ګنګ پورې دوې پېړۍ دوام وکی او غزنه او بلخ او لاهور او بست ئې پایتختونه ول. په دې عصر کې اسلامي مدنیت او دري ژبې ډېره ترقي وکړه، په هیواد کې د اسلام دین بشپړ خپور سو او هند هم د هغه په تورو روښانه سو او د هیواد له لمرخاته څخه د کابل شاهي د حکومت او دیانت نخښې ورکې سوې او د غزنویانو نامتو وزیران ابوالعباس اسفرایني، احمد بن حسن میمندي، حسن بن محمد میکالي، خواجه عبدالصمد خواجه طاهر مستوفي او نور ول او د افغانستان او هندوستان او ماوراء النهر او ایران ښارونه ودان ول او تجارت ئې ښه رونق درلود. نامتو پوهان او لیکونکي ئې البیروني، ابن سینا، ابوالفتح بستي، ثعالبي، عبدالجبار العتبي، بونصر مشکان، ابوالفضل بیهقي، د کلیه او دمنه خاوند نصرالله، ابو منصور موفق هروي (د کتاب الابنیه عن حقایق الادویه لیکونکی)، عبدالحی ګردیزي، د آداب الحرب والشجاعه لیکونکی فخر مدبر مبارکشاه، د کشف المحجوب لیکونکی او نامتو صوفي ابوالحسن هجویري غزنوي دي.

له شاعرانو څخه: فردوسي، فرخي، عنصري، عسجدي، منوچهري، سنایي، مسعود سعد سلمان، ناصر خسرو بلخي، اسد طوسي، سید حسن غزنوي، ابوالفرج

روني، مختاري غزنوي د دې عصر نوميالي تېر سوي دي.

په آسيا کي د غزنويانو دربار د شاعرانو او عالمانو او د فن د خاوندانو د پالني ځای وو، او پخپله سلطان محمود عالم او اديب پالونکی پاچا وو، ځيني پوهان په فقه کي يو کتاب ده ته نسبتوي او د ده ځيني اشعار او قطعات رانقلوي د غزنويانو په عصر کي نفيسه صنايع او د عمران فن هم د ستايلو وړ ترقي کړې وه، که څه هم د تاتار يرغل د افغانستان په لويو ښارو کي د صنعت ټول پايڅوړ (بقايا) له منځه وړي دي خو د عمراني او د ډبرو توږلو او خطاطۍ له صنعت څخه د سبکتگين او سلطان محمود قبرونه او د غزني دوه څلي او د دريم مسعود د ماڼۍ کنډوالې په غزني کي د زمانې له لاس وهلو څخه خوندي پاته دي، او د بست د ښار د لښکرگاه د آثارو له بقاياوو څخه چي په ۱۹۵۰م کال په افغانستان کي د فرانسوي لرغون پېژندونکو له خوا کيندلي سوي د هغه ځای پر دېوالو ئې د رنگينه نقاشيو هنري نخښې موندلي دي چي د غزنوي دورې د هنر او صنايعو طراوت ځني ښکارېږي.

په غزنوي دوره کي د هيواد اداره په ولاياتو کي د حکمرانانو په واسطه کېدله چي د غزني د پاچهانو د دربار له خوا د ملکي او لښکري چارو له پاره له سپه سالارانو او د دربار له لويو حاجبانو او يا شهزادگانو او د پاچا له خپلوانو څخه گومارل کېده او د غزني د پاچهۍ په مرکز کي به د بيهقي په قول يو د دېوان وزير او لوی خواجه (د ماليې د وزير او صدراعظم په حيث) او يو دېوان عرض (د سپه سالار تر امر لاندي د حرب د وزارت د چارو له پاره) او يو د رسالت ديوان (د لوی دبير تر امر لاندي د پاچهۍ د ليکنو دفتر د چارو له پاره) او يو د وکالت دېوان (د لوی حاجب تر امر لاندي د دربار د وزارت د چارو له پاره) وو او هم د پاچهۍ په دربار کي ځيني مشران د (نديم، وزير، خازن او کوټوال) په نامه ول او څنگه چي هيواد په خپل مرکزيوري نښتی او امنيت هم ټينگ وو، نو ځکه د دولتي ماليو زياتوالی هم يقيني دئ او څنگه چي مو د عباسي دورې د اوايلو د مؤرخانو په قول د خراسان ماليات په متوسط ډول د (۴۵) مليونو په شاوخوا کي واټکلول اوس هم کولای سو په همدې ميچ (مقياس) د ټول خراسان او د غزنه او زابل او تخارستان او پېښور او لاهور او ملتان او سند او ماوراء النهر او خوارزم د ولاياتو عايدات د غزني دولت په خزانه کي تر سل مليونو درهمو زيات واټکلوو، البته هغه زياتي ولجې او ډېر جواهر او سره زر چي د هندوستان په جگړو کي لاس ته راتله له دې

حسابه مستثنی دي.

صاحب برید (د ډاګ چلوونکی) او د جاسوسۍ دېوان، او سالار (د لښکر مشر) او کوتوال (د پولیسو مشر او د ښار د کلا ساتندوی) په زیاتو لویو ښارو کي د حکومت چاري اجراء کولې او عدلي چاري قاضي ته سپارلي سوي وې، لکه چي د محمود په عصر کي قاضي ابوالحسن د قاضي ابو محمد الفزاري له پارس څخه د رسول په ډول غزنه ته راغی او سلطان چي د ده علمي مقام او د ده پرهېزګاري او ورع ولیده د غزنه قضا ئې ده ته ورکړه او د هغه اولاده تر ډېرو وختو پوري په هغه پایتخت کي قاضیان ول.

خو د غزنویانو سیاسي روابط د بغداد د خلافت د دربار او د ماوراء النهر د خانانو سره تل دوستانه ول او تل د خلافت رسل (سفیران) او د ماوراء النهر امیران د غزنه د پاچهانو دربار ته راتله، او د رسولدار (د تشریفاتو د رئیس) له خوا په ډېر احترام ورته هرکلی وایه کېده. د غزنوي دولت په مامورینو کي د غزنوي تر پاچهۍ لاندي ټول خلک شامل ول، او حتی د غزنه د دربار په لویو لښکري خلکو او نظامي منصبدارانو کي هندوان هم ول او هم د غزنه په لښکر کي ډېر زیات پښتانه ول چي د هند په فتوحاتو کي لویه برخه درلوده.

د غزنه پاچهان:

۱. *امیر الپتګین (۳۵۱ – ۳۵۲ھ)
۲. امیر اسحاق د الپتګین زوی (۳۵۲ – ۳۵۵ھ)
۳. امیر بلکاتګین (۳۵۵ – ۳۶۵ھ)
۴. امیر پیري تګین (۳۶۵ – ۳۶۶ھ)
۵. *امیر سبکتګین (۳۶۶ – ۳۸۷ھ)
۶. *امیر اسماعیل د سبکتګین زوی (۳۸۷ھ)
۷. *سلطان محمود د سبکتګین زوی (۳۸۷ – ۴۲۱ھ)
۸. *امیر محمد د محمود زوی (۴۲۱ھ)
۹. *سلطان مسعود د محمود زوی (۴۲۱ – ۴۳۲ھ)
۱۰. محمد – دوهم وار (۴۳۲ھ)
۱۱. *سلطان مودود د مسعود زوی (۴۳۲ – ۴۴۱ھ)
۱۲. *دوهم مسعود د مودود زوی (۴۴۱ھ)

۱۳. علي د لومړي مسعود زوی (۴۴۱ھ)
۱۴. *عبدالرشید د محمود زوی (۴۴۱ – ۴۴۴ھ)
۱۵. طغرل (د محمود مریی) (۴۴۴ھ)
۱۶. *فرخزاد د لومړي مسعود زوی (۴۴۴ – ۴۵۱ھ)
۱۷. *سلطان ابراهیم د لومړي مسعود زوی (۴۵۱ – ۴۹۲ھ)
۱۸. *علاء الدین دریم مسعود (۴۹۲ – ۵۰۹ھ)
۱۹. شیرزاد د دریم مسعود زوی (۵۰۹ھ)
۲۰. *ارسلان شاه د دریم مسعود زوی (۵۰۹ – ۵۱۱ھ)
۲۱. *بهرامشاه د دریم مسعود زوی (۵۱۱ – ۵۵۲ھ)
۲۲. *خسروشاه د بهرامشاه زوی (۵۵۲ – ۵۵۷ھ)
۲۳. *خسرو ملک د خسروشاه زوی (۵۵۷ – ۵۸۳ھ)، (۵۱ لمبر شجرې او ۵۸ نقشې ته دي رجوع وسي).

**مأخذونه:**

تاریخ سیستان، بیهقي، طبقات ناصري، ابن اثیر، طبقات سلاطین اسلام، گردیزي، العتبي، پاول هورن مختصر تاریخ ایران، آداب الحرب، دائرة المعارف اسلامي، تاریخ ایران رازي، راهنمای افغانستان، سیاست نامه، ابن خلکان، ابن خلدون، تجارب الامم، فرشته، روضة الصفا، حبیب السیر، تاریخ گزیده، مجمل التواریخ والقصص، تاریخ الاسلام السیاسي، تاریخ الاسلام ذهبي، مجلۀ آریانا، لباب الالباب، معجم الانساب، زمباور، د سراولف کیرو پټانز، اخبارالدولة السلجوقیه، راحة الصدور، افغانستان بعد از اسلام – لومړی ټوک، مادر زبان دری، فتوح السلاطین، غزنویان بوسورت.

لومړۍ برخه

# غزنویان (۳۵۱ - ۵۸۲هـ)

۵۱ - لمبر

(۱) الپتګین × (۳۵۱هـ) امیر حاجب (د سامانیانو له خوا د تخارستان، خراسان او زاولستان حکمران)

- بغراجق؟
- (۱) ناصرالدین سبکتګین × بن قرابجکم جوق (۳٦٦ - ۳۸۷هـ)
  - حُره (زن علي بن مامون خوارزمشاه)
  - حسین
  - حسن
  - نصر (خراسان و سیستان – ۳۸۹هـ)
  - (۲) اسمعیل × (۳۸۷هـ)
  - ۳ – سلطان محمود متولد ۳٦۰هـ (۳۸۷ – ۴۲۱هـ)
    - زینب (زن محمود بغراخان)
    - ۵ – اول مسعود (۴۲۱ – ۴۳۲هـ)
      - ٦ – مودود × (۴۳۲ – ۴۴۱هـ)
        - لور
        - ۷ – دوهم مسعود × صبي ۴۴۱هـ
      - مردانشاه (۴۴۱هـ)
      - ۸ – علي (خوارزم ۴۲۳هـ)
      - سعید
      - محمد (۴۴۴ – ۴۵۱هـ)
      - ۱۰ – فرخزاد ×
      - ایزدیار
      - مجدود (لاهور و ملتان)
      - ۱۱ – ابراهیم (۴۵۲ – ۴۹۲هـ)
        - ۱۲ – دریم مسعود × (۴۹۲ – ۵۰۸ هـ) (دوهمه برخه وګورئ)
    - سلیمان
    - نصر ×
    - اسمعیل
    - ۹ – عبدالرشید × (۴۴۱ – ۴۴۴هـ)
    - دختر (زن منوچهر زیاري)
    - ۴ – محمد (۴۷۱ و ۴۳۲هـ)
      - نامي
      - عبدالرحیم
      - عبدالرحمن
      - احمد
  - یوسف
    - یعقوب
- (۲) ابو اسحاق ابراهیم
- (۳) بلکاتکین
- (۴) امیر پیري

دوهمه برخه

# غزنویان ( ۳۵۱ - ۵۸۲هـ)

۵۱ - لمبر




ماخذونه: معجم زامباور ۲/ ۴۱۷، دول اسلامیه: ۴۵۴، طبقات ناصري

# د سلجوقیانو او خوارزم شاهیانو نفوذ

## او د سیستان د ملکانو لنډه یادونه

(۴۲۹ – ۶۳۲هـ)

سلجوقیان د سیحون او د ارال د رود د شمال د ترکمنانو یو ټبر وو، چي د سامانیانو په وختو کي د بخارا شمالي نور (اوسني نوراتا) او ماوراء النهر ته راغلي او اسلام ئې منلی وو، د دوی شغل د گلو روزنه وه ځکه نو د ځړ د ځایو د موندلو له پاره گرزانده ول. په جند کي د دې ټبر مشر سلجوق د توقاق بادیقان تېمور زوی څلور زامن درلوده: یبغور ارسلان مشهور په اسرائیل، او میکائیل او یونس او موسی.

سلطان محمود سهواً د سلجوق د ټبر څلور زره کورنۍ له جیحون څخه راپوري یستل او په خراسان کي ئې تر نیشاپوره د ځړ ځایونه ورکړه او د سلجوق زوی اسرائیل ئې چي د منهاج سراج په قول (برق جهند او شیردمنده) ته ورته وو کالنجر کي بندي کی (د ۴۱۶هـ = ۱۰۲۵م شاوخوا) خو د میکائیل زامنو طغرل بېگ او داود او چغري بېگ ډېر ژر خپل ټبر راغونډ کی او خراسان ئې تر غزني او سیستان او بلخ او نشاپور او کرمان پوري ونیو، طغرل (۴۲۹ – ۴۵۵هـ) لکه چي د مسعود غزنوي په حالاتو کي تېر سوه د دندانقان په جگړه کي ئې سلطان محمود مات کی او په (۴۲۹هـ = ۱۰۳۷م) کال ئې په نیشاپور کي د پاچهۍ خول پر سر کښېښود او خپل ورور یبغور ئې د غربي افغانستان او پوشنج او هرات او سیستان په حکمداري وگوماره او په ۴۳۲ کال تر بسته پر مخ ولاړ او ورونو ئې داود او چغري بېگ د افغانستان په شمالي سیمو کي له مرو او سرخس څخه نیولې تر بلخ او شبورقان پوري ونیول او د بلخ په علیاباد کي ئې د سلطان مسعود له لښکر څخه ماته وکړه، مگر تر هغه وروسته د دندانقان په جگړه کي ۴۳۱هـ د سلجوقیانو ټولو قواوو مسعود ته وروستنۍ ماته ورکړه او داود خپل نفوذ تر سیستانه او شمالاً تر بلخ او تخارستانه وغوړاوه. که څه هم سلطان مودود له غزنه څخه

خپل وزير عبدالرزاق د احمد ميمندي زوی په سيستان کي د سلجوقيانو جګړې ته واستاوه (د ۴۴۰هـ = ۱۰۴۸ شاوخوا). خو څه کار ئې پر مخ نه بوت او تخارستان او بلخ او ترمذ او قباديان او وخش او ولوالج د چغري بيګ زوی الپ ارسلان (۴۵۵ – ۴۶۵هـ = ۱۰۶۳ – ۱۰۷۲م) په لاس کي وو او پخپله ده او د ده زوی ملکشاه (۴۶۵ – ۴۸۵هـ = ۱۰۷۲ – ۱۰۹۲م) د سلطان ابراهيم غزنوي سره دوستانه روابط وساتل او زابلستان او کابل ئې تر لاهوره پوري غزنوي دولت ته پرېښوو، په دې وخت کي د ملکشاه ورور تکش په بلخ کي ياغي سو او ملکشاه په ۴۷۷هـ کال هغه په ترمذ کي ونيو او ړوند ئې کی، د ملکشاه زوی سلطان سنجر (۵۱۱هـ – ۵۵۲هـ = ۱۱۱۷ – ۱۱۵۷م) چي د سلجوقيانو د کهول له نامتو پاچهانو څخه وو، لکه چي د غزنويانو په احوال کي تېر سو، د بهرامشاه غزنوي سره ئې د ارسلانشاه په مقابل کي مرسته وکړه او هغه ئې تر خپل سيوري لاندي تر لاهوره د غزني پاچا کی (۵۱۱هـ) او ګواکي د سنجري هيواد وېش بالواسطه تر لاهوره ورسېد. همدا رنګه سلطان سنجر (لکه چي د غوريانو په احوال کي به ئې راوړو) د هرات د غرو د ناب نومي ځای په درې کنجۍ کي د علاء الدين حسين جهانسوز غوري سره جګړه وکړه او علاء الدين ئې ونيو او بيرته ئې غور ته واستاوه (د ۵۵۰هـ = ۱۱۵۵م شاوخوا) تر هغه وروسته د قراخطائيانو او غزانو نيمي وحشي قبيلې د ايشيا د منځ له غرو څخه راووتلې او سنجري دولت ئې له منځه يووی (۵۵۲ هـ = ۱۱۵۸م شاوخوا) او د افغانستان پر سيمو ئې له غزني څخه تر زابل او سيستان پوري يرغل وکی او خسروشاه غزنوي ئې د لاهور خوا ته پر شا وشاړه، خو د غز فساد ډېر ژر د غوريانو او خوارزم شاهيانو له خوا له منځه يووړه سو او د سلجوقيانو په وختو کي د خوارزم شاهيانو د کورنۍ لاس هم پر خراسان او د افغانستان په شمالي او غربي سيمو بر سوه چي شرح به ئې وروسته راسي.

د خوارزميانو په وختو کي چي يوه لويه پېښه پېښه سوه هغه د خوارزمشاهيانو او د غوري کهول چي له ډېرو وختو ئې په غور او باميان کي په خپلواکي حکم کاوه سره نښتل وه، او څنګه چي به د غوريانو او خوارزميانو په احوال کي راسي علاء الدين محمد (د ٦۱۱هـ = ۱۲۱۴م) په شاوخوا کي غور او فيروزکوه او هرات تر غزني پوري ونيول، او غوري کهول ئې په غور کي له پښو واچاوه او تر هغه وروسته سلطان جلال الدين د خوارزميانو وروستني پاچا په افغانستان کي د چنګېز د لښکر سره جګړې

وکړې چې په وروستۍ برخه کې به ئې تفصیل راسي.

په دې وخت کې د افغانستان هیواد پر څلورو برخو وېشل سوی وو، شمالي ولایتونه د تخارستان تر مرو پورې مستقیماً په سنجري او سلجوقي دربار اړه درلوده، د غور او بامیان او گوزگانان سیمې د هرات تر شاوخوا پورې د غوریانو د کهول تر لاس لاندې وې، د زابل ولایت له هلمنده تر غزنه او کابل او ننگرهار او پېښور او لاهور پورې د غزنې د آل محمود په واکمنۍ کې ول او د سیستان ولایت له بست او زمینداوره تر زرنج او فراه او نیه پورې د سیستان په ملکانو اړه درلوده چې دې ملکانو د سلجوقیانو، غوریانو او غزنویانو او حتی د چنگیزیانو سره هم ښه روابط ساتل او د صفاریانو او د نیمروز د وطني امیرانو له پایښوړ (بقایاو) څخه ول چې د دوی د نومو تفصیل د صفاریانو په مبحث کې تېر سو او هم د آل کرت ملکانو چې شرح به ئې وروسته راسي د تاتاري یرغلگرانو سره لاس یو کړی او هرات او سیستان ئې تر لاس لاندې کړې ول. د سیستان د ملکانو او صفاریانو له پایښوړ څخه لکه چې د صفاریانو په برخه کې چې مو وویل یو هم ملک تاج الدین وو (د ۴۸۲ھ شاوخوا)، د دې سړي له نسله په سیستان کې تر زرو کالو پورې امیران پاته ول، چې د ریو په قول په (۱۰۲۸ھ) کال ملک جلال الدین محمود خان د سیستان امیر په (۱۶) پښته عمرولیث صفاري ته رسېږي او هم شاه حسین د ملک غیاث الدین محمد زوی چې د صفاریانو تاریخ ئې له پخوانۍ زمانې څخه تر خپل عصره پورې د کتاب احیاء الملوک په نامه لیکلی دئ صفاریانو ته منسوب دئ.

## مأخذونه:

طبقات ناصري، اخبارالدوله السلجوقیه، لب التواریخ، تاریخ سیستان، ابن اثیر، د پاول هورن تاریخ مختصر ایران، د خلیل ادهم دول اسلامیه، د زمباور معجم الانساب، راحة الصدور (۵۲ لمبر شجرې ته دې رجوع وسي).

**۵۲ - لمبر**

# سلجوقیان خراسان




**مأخذونه**: راحة الصدور، دول اسلامیه: ۲۱۸

# غوریان

(۴۰ – ۶۱۲هـ)

سوریان د خراسان او غور د افغانانو یو ټبر وو چي تر اوسه هم د هرات د لمر لوېدیځ شمال د بادغیس د زورآباد (زورابد – یاقوت) په شاوخوا کي د (زوري) په نامه سته. تر اسلام دمخه هم دې کهول د تخارستان او غور او هرات او خراسان په غرو کي حکمراني کوله او د (غرشاه) په لقب یادېدل (په دې لقب کي د [غر] کلمه پښتو ده) او دا کهول لرغوني افسانوي شخصیت ضحاک ته منسوب دئ (دا نوم فردوسي [ضحاک] بللی او په پښتو منابعو کي د تاریخ سوري په حواله [سهاک] دئ او طبري او البیروني او ابن بلخي ئې [بیوراسپ ازدهاق] یادوي او په مسعودي کي [ده اک] راغلی چي د طبري په قول معرب شکل ئې [ازدهاق] دئ، په اوستا کي [دهاک = اژي دها] یاد سوی چي په دري کي [اژدها] او په پښتو کي [اژدهار] دئ او همدارنگه په خراساني نومو کي دا نوم ډېر مستعمل دئ لکه د زین الاخبار د لیکونکي عبدالحي گردیزي د پلار نوم ضحاک [د ۴۰۰ هـ په شاوخوا کي] او ضحاک شیباني [د ۲۸۷هـ شاوخوا] ظاهري فقیه او بامیان ته نژدې [ضحاک] نومی ښار او د [سهاکا] مشهوره پخوانۍ آریایي قبیله چي سکستان د دوی په نامه دئ او مفغن صورت ئې [سهاک] او [سهاکزي] د افغاني قبیلو نومونه دي). دا ټوله دا ښیي چي دا نوم د لرغوني افغانستان په نومو کي پخوانۍ ریښه لري.

د دې کهول په نورو نومو کي یو نوم هم [بسطام] دئ (چي د گستهم = وستهم د پهلوان په معنا معرب صورت دئ) او فردوسي هم هغه یادوي، دې سړي په شغنان او بامیان او تخارستان او غور کي حکمراني کړې ده او تر هغه وروسته په غور کي د دې ټبر څخه دوو وروڼو لاس درلود چي یو امیر سور او بل سپه سالار سام وو او د سوري ټبر امیران دې نامه ته منسوب دي چي فردوسي او نورو مؤرخینو د (ماهوی سوري نژاد) په نامه یاد کړي او بلاذري د (جبل زور) او د هغه ځای د مشهور بت چي هیون تسنگ په

(۶۰۳ع) کال د (شونا) په نامه لیدلی یادونه کوي او ابن فندق هم په تاریخ بیهق کي د سلطان مسعود د وختو د خراسان عمید سوري یادوي او په را وروسته وختو کي نامتو شېرشاه سوري هم په هند کي له دې افغاني ټبر څخه راوتلی او پاڅېدلی دئ.

د سوري کهول له نومیالیو څخه یو هم شنسب د خرنک زوی دئ چي د فخرالدین مبارکشاه د نسب نامې څخه د منهاج سراج په روایت د حضرت علي ﷺ معاصر او د هغه په حضور ئې ایمان راوړی وو او عهد او لوا ئې ځني اخیستې وه او له هغه کهول څخه چي به هر څوک پر تخت کښېنوست د حضرت علي ﷺ هغه عهد او لوا به هغه ته ورکول کېدله او دا چي په اسلامي دوره کي د غور لومړی حکمران دئ چي موږ په خبر یو او امیر پولاد غوري د ده له زامنو څخه وو چي د غور د غرو شاوخوا ئې تر تصرف لاندي وه او د خپلو پلرو نوم ئې ژوندی کی او چي صاحب الدعوت العباسیه ابو مسلم مروزي منځ ته راووت نو امیر پولاد د غور لښکر د ابو مسلم ملاتړ ته ورووست او د آل عباس د تقویې له پاره ئې ډېر کارونه وکړه او د امیر پولاد د حکمرانۍ مرکز د غور مندېش وو او د غور پر ټولو غرو او پر شاوخوا ئې حکمراني کوله (د ۱۳۰ هـ = ۷۴۷م شاوخوا). د امیر پولاد یو زوی چي امیر کروړ نومېد د کندهار د خلکو د عنعنې او د احمد بن علي بستي د کتاب تاریخ سوري په حواله ئې د پټې خزانې د کتاب د متن له مخي پېژنو چي په (۱۳۹هـ = ۸۵۶م) کال د غور په مندېش کي امیر وو او د (جهان پهلوان) په نامه ئې چي د فردوسي د پهلوانانو له القابو څخه دئ شهرت درلود.

بالشتان (د کندهار د شمال والشتان) او خیسار او تمران او برکوشک (د غور مشهوري کلاوي) د ده په لاس کي وې او دی داسي غښتلی پهلوان وو چي یوازي د لسو تنو سره جنګېده او په همدې سبب ئې کروړ باله (چي په پښتو کي د کلک او سخت په معنا دئ)، د دې کهول واکمني تر زمینداور او بست او والشتان پوري رسېدله، له اموي کهول څخه عباسي کهول ته د خلافت د انقلاب په جګړو کي دی هم د ابو مسلم ملګری وو او پټه خزانه د تاریخ سوري په حواله د ده یوه پښتو حماسه رانقلوي او دی د ښې وینا خاوند بولي، په خپلې دې پخوانۍ حماسه کي امیر کروړ جهان پهلوان د خپل حکومت سیمه له مرو او هرات څخه تر جروم (ګرمسیر) او غرج او تخار پوري ګڼي او وایي چي زرنج (سیستان) مي په تېره توره ونیو.

د ده دا حماسي شعر د خراسان او پښتو له لرغونیو حماسي آثارو څخه دئ او د ده

د غښتلي روح او ملي غرور او جهانګيرۍ او جهانکشايۍ څخه حکايه کوي او د پښتو هغه زاړه لغات او کلمات پکښې دي چي اوس په پښتو ژبه کي مستعمل او ژوندي نه دي.

امير کروړ په (۱۵۴هـ = ۷۷۰م) کال (د هرات لمر لوېدو خوا ته) د پوشنګ په جګړو کي ووژل سو او تر ده وروسته ئې زوی امير ناصر پر غور او بست او زمينداور حکومت کاوه (د ۱٦۰هـ = ۷۷٦م شاوخوا).

(د دې تاريخي، لساني او ادبي په زړه پوري موضوع د تفصيل له پاره دي د پټې خزانې کتاب د کابل چاپ او د پښتو د ادبياتو د تاريخ دوهم ټوک وکتل سي).

منهاج سراج تر امير پولاد وروسته د هارون الرشيد تر وختو (د ۱۷۰هـ = ۷۸٦م) تر شاوخوا پوري د دې کهول د حکمرانانو څخه يادونه نه کوي او له بنه مرغه دا خلا پټې خزانې د محمد بستي د تاريخ سوري په حواله ډکه کړې ده او په لږ تفصيل سره د امير کروړ او امير ناصر يادونه کوي او بيا منهاج سراج د دې کهول يو بل امير بنجی د نهاران شنسبي زوی د غور له لويو اميرانو څخه ګڼي او ليکي چي د خپل يوه معاصر غوري امير سره چي شيش د بهرام زوی نومېده د هارون الرشيد دربار ته ورغلل او امير بنجی د (قسيم اميرالمؤمنين) د لقب سره د غور امير او امير شيش د غور د لښکر پهلوان وټاکل سو (د ۱۷۰هـ = ۷۸٦م شاوخوا).

د غور اميران د همدې بنجي له نسله او د غور سپه سالار د شيش له تکم څخه دي، چي د صفاريانو په وختو کي له آل شنسب څخه د غور امارت په منډېش کي امير سوري ته رسېدلی وو، لکه د صفاريانو په احوال کي چي مو ولوستل، د (۲۵۳ هـ = ۹٦۷م) په شاوخوا کي يعقوب صفاري د نيمروز او بست او داور ښارونه تر تګين آباد او رخج پوري ونيول، د هغه ځای امير ئې له پښو واچاوه، په دې وخت کي امير سوري د غور د غرو امير وو او تر هغه وخته لا د غور نيمي خلک مسلمانان نه ول او تر دې وروسته امير سبکتګين هم پر غور حملې وکړې، چي د سوري کهول خپلواکۍ ته ئې څه صدمه و نه رسولای سوه او لکه چي د غزنويانو په احوال کي چي مو ولوستل سلطان محمود هم پر غور يرغل وکی خو د غور امير چي په دې وخت کي محمد سوري وو کله به ئې اطاعت کاوه او کله به ئې د تمرد لاره اخيسته څو چي سلطان محمود د بيهقي په قول (په ۴۰۵هـ = ۱۰۱۴م) کال او د ابن اثير په قول په (۴۰۱هـ) کال د غور د جنوب له خوا د بست او

خوا یین له لاري د لوی لښکر سره غور ته ورغی چي د لښکر په مخ کي د هرات حکمران التونتاش او د طوس حکمران ارسلان جاذب وو او امیر محمد ئې په یوه جګړه کي د لسو زرو تنو لښکر په مرسته د آهنګران په کلا کي کلابند کی، محمد تر ډېري مودې وروسته له کلا راووت او سلطان ته تسلیم سو، سلطان دی، د ده د کشر زوی شیش سره غزني ته بوت، خو (غزني ته نژدې) د ګیلان په شاوخوا کي پر لاره هغه زهر وخوړل چي په خپله ګوتمۍ کي ئې تعبیه کړي وه، ځان ئې وواژه مګر د اسارت ذلت ئې و نه مانه.

د پښتو ژبي وطني روایاتو چي د لرغوني پښتانه او تاریخ سوري د کتابو په حواله په پټه خزانه کي راغلی پورتنی تاریخي اجمال تائیدوي او د محمد د مرثیې د پښتو قصیده هم راوړي چي شیخ اسعد د محمد سوري زوی (چي په ۴۲۵هـ د زمینداور په بغني کي مړ دئ) ویلې ده، او همدا شاعر په آهنګران کي د ده په دربار کي وو. دا قصیده چي د ژبي د بلاغت او فصاحت له مخي ډېره پخه ده د محمد د مقام لوړوالی او زړورتوب ښیي او د آهنګرانو د جګړې او د محمود له خولې د محمد د بندیګرت شرح بیانوي او دی د سور د کهول ویاړ او افتخار بولي، چي د خپل کهول د پت ساتلو په لاره کي ئې ځان قربان کی او د شیخ اسعد دا قصیده د پښتو د لرغوني ادب له خورا مهمو آثارو څخه ده.

د محمد تر مړیني وروسته د سلطان محمود له خوا امیر بوعلي د محمد سوري زوی د غور د منديش په غرو کي د پلار پر ځای کښېنوست او د سلطان تابع وو او په غور کي ئې په مدرسو او مسجدو او ماڼیو جوړولو لاس پوري کی او علم دوسته سړی وو، ده د محمودي عهد تر پایه حکمراني وکړه، خو د مسعود په وختو کي د (۴۲۵هـ = ۱۰۳۳م) په شاوخوا کي (د بوعلي وراره) عباس د شیش زوی پورته سو، او خپل اکا ئې بندي کی او د غور پاچهۍ پر تخت کښېنوست. عباس ظالم او بېباکه سړی وو او د نجوم د علم سره ئې ذوق درلود، د منديش د ولایت په سنګه کلا کي ئې یوه رصدخانه ودانه کړه، خو خلکو د ده له جوره د سلطان ابراهیم غزنوي دربار ته شکایت وکی، ابراهیم هم غور ته لښکر ویوست او امیر عباس ئې غزني ته بندي بوت او د غور امارت ئې د ده زوی امیر محمد ته چي د غزنه دربار ته مطیع او عالم پالونکی، عادل او د ښو اخلاقو خاوند سړی وو وسپاره (د ۴۵۰هـ = ۱۰۵۸م شاوخوا) او تر محمد وروسته ئې زوی قطب الدین حسن د محمد زوی او د عباس نمسی چي ستر پاچا او د غور د پاچهانو

نیکه وو پر تخت کښېنوست (د ۴٦۰هـ = ۱۰۵۸م شاوخوا) او ده د غور یاغیان په جګړه کي د ځان تابع کړه او په هغه جګړه کي چي (د غزنه لمر لوېدیځ جنوب ته) د وجیرستان او کوشک په پای کي ئې د یاغیانو سره وکړه ووژل سو (د ۴۹۳هـ شاوخوا) او د ده زوی ملک عزالدین حسین د غور پر تخت کښېنوست، ده د سنجري دولت سره دوستانه روابط درلوده او د ښو اخلاقو څښتن پر عهد ولاړ او عالم پالونکی ښه پاچا وو، چي اوو زامنو ئې خراسان او غور او زابل او غزنه او بامیان او تخارستان پخپلې پاچهۍ کي شامل کړه او هر یوه پر یوې برخي حکومت کاوه په دې تفصیل:

۱/ قطب الدین محمد چي خپل لرغوني وطني لقب (غرشاه) ئې رسماً په عربي (ملک الجبال) واړاوه او ځان ته ئې غوره کی او فیروزکوه د ښار کلا ئې ودانه کړه او د ورشاد (ورساد) په ولایت کي ئې چي د ده سیمه وه د خپلو ورونو سره شخړې جوړې کړې او غزني ته ولاړ، او هلته د بهرامشاه غزنوي له خوا ووژل سو (۵۴۱ هـ = ۱۱۴٦م) او همدا وژل د غوري او غزنوي د کهولو تر منځ د اختلاف سبب سو.

۲/ بهاء الدین سام د غور د مندېش په سنګه کي وو، څنګه چي سلطان سوري غزني ته ولاړ فیروزکوه ئې هم ده ته پرېښوو او په (۵۲۴هـ = ۱۱۴۹م) کال په فیروزکوه کي پر تخت کښېنوست او د غرجستان د شارانو سره ئې دوستي وکړه او په ګرمسیر کي ئې د کجوران کلا (د کندهار او غور تر منځ او سنی کجران) او د هرات په غرو کي ئې د شیرسنګ کلا او په غرجستان کي ئې د بندراو کلا او د غرجستان او مادین تر منځ ئې د فیوار کلا جوړه کړه او د ګیلان د ملک بدرالدین لور (د ګیلان ملکه) ئې چي د شسبانیانو له نسبه وه په نکاح کړه، چي د دوو نامتو زامنو سلطان معزالدین محمد سام او سلطان غیاث الدین محمد سام مور ده. سلطان بهاء الدین د خپل ورور سلطان سوري د خون اخیستلو په غرض په جروم او غرجستان کي لښکري راغونډې کړې او پر غزني ئې یرغل وکی، خو (د غزني) په ګیلان کي مړ سو، ده د غزني د سفر په وخت کي لښکري راغونډې کړې او پر غزني ئې یرغل وکی، خو (د غزني) په ګیلان کي مړ سو، ده د غزني د سفر په وخت کي د غور او جبال تخت سلطان علاء الدین حسین خپل ورور ته پرېښی وو.

۳/ ملک شهاب الدین محمد خرنک د حسین زوی چي د مادین سیمي په ده اړه درلوده او دا سیمه د غوریو ولایت وو او د ده زوی ملک ناصرالدین ابوبکر د (٦۱۸هـ =

۱۲۲۱م) په شاوخوا کي د ګزيو او تمران د ولايت (د کندهار شمالي خوا ته) حکمران وو او د چنګيز تر يرغل وروسته ډهلي ته په هند کي د التتمش دربار ته ولاړ او هلته د ٦٢٠هـ په شاوخوا کي مړ سو.

۴/ ملک شجاع الدين علي د حسين زوی چي د غور د جرماس د ولايت حکمران وو او تر هغه وروسته ئې زوی علاء الدين ابو علي په غور کي د ده پر ځای کښېنوست او د سلطان غياث الدين په وختو کي د غور او بست او وجير او ګرمسير او درمشان او روزګان او غزني سيمي ته ده ته وسپارلي سوې او د خراسان تر نيولو وروسته په نيشاپور کي حکمران وو او سلطان معزالدين دی بوت او د غرجستان او زمينداور حکمران ئې وټاکه او په ٦٠١هـ کال ئې د قهستان د ملاحده و، د جناياد ماڼۍ ونيوله، خو د سلطان معزالدين تر شهادت وروسته د غرجستان د اشيار په کلا کي بندي سو.

۵/ علاء الدين حسين د حسين زوی د غور په وجيرستان کي حکمران وو او د خپل ورور سلطان بهاء الدين تر مړيني وروسته په فيروزکوه کي د غور پر تخت کښېنوست او د غور او غرجستان لښکري ئې راغونډي کړې او غزنه ته ئې مخه کړه، سلطان بهرام شاه له غزنه څخه د غزنه او هندوستان د لښکر سره راووت او د ګرمسير او تګين آباد له لاري زمينداور ته ولاړ. علاء الدين چي دا جګړه د خپلو دوو وروڼو د خون اخيستلو له پاره کوله تګين آباد ته نژدې ئې د بهرامشاه د لښکر سره لاس واچاوه، او تر هغه وروسته ئې د غزني په شاوخوا کي دوه واره د غزنويانو مقاومت مات کی او د غزني دولت پايتخت ئې ونيو (۵۴۵هـ – ۵۴٦هـ). ده هغه لوی ښار د خاورو سره برابر کی او اوسېدونکي ئې اته ورځي قتل عام کړه او له هغه ځايه ئې بست او زمينداور ته مخه وکړه او د بست ښار ئې د محمودي ماڼيو او ښکلو ودانيو سره چي په خپل وخت کي ئې ساری نه وو هم وران کی نو ځکه په جهانسوز مشهور سو.

ده تر دې فتحي وروسته تخارستان د غور په مرکزي دولت پوري وتاړه او خپل ورور فخرالدين ته ئې وسپاره، علاء الدين تر دې وروسته د سلجوقي سنجري دولت سره ونښت، سلطان سنجر د هريوالرود د ناب په سيمه کي د ده سره جګړه وکړه او ځنګه چي خلک له علاء الدين څخه خواشيني ول د ده شپږ زره خلجي او ترکي سپاره لښکريان سنجر ته تسليم سوه او په خپله علاء الدين د سنجر لاس ته ورغی بندي سو. خو ځنګه چي سنجر د غزانو له لاسه د پښو لوېدلی وو، علاء الدين ئې ونازاوه، مرسته ئې ورسره

وکړه او بیرته ئې غور ته واستاوه او څنګه چي خلکو د ده په غیاب کي ملک ناصرالدین حسین د محمد زوی له مادین څخه راوستلی او د فیروزکوه پر تخت ئې کښېنولی وو هغه وخت چي ئې د علاء الدین د راګرزېدو خبر واورېد ناصرالدین ئې وواژه او علاء الدین ته تسلیم سول.

ده بامیان او تخارستان او د جروم (ګرمسیر) او داور او بست او د هرات د جبال د تولک او غرجستان او مرغاب ښارونه هم د غور د پاچهۍ تر اطاعت لاندي راوستل او د ملاحده الموت رسل ته ئې هم د غور په غرو کي لار ورکړه او د (۵۵۱هـ = ۱۱۵۶م) په شاوخوا کي د غور په سنګه کي مړ سو.

څنګه چي تر ده وروسته ئې زوی سیف الدین محمد د فیروزکوه پر تخت کښېنوست او د ملاحده و رسل ئې وواژه او د غزانو د فتنې د مخنیوي له پاره ئې ملا وتړله چي د هرات او قادس شاخوا ته رسېدلې وه خو تر یو کال زیات ژوندی پاته نه سو او د غزانو په جګړه کي د غوري سپه سالار شیش په لاس ووژل سو (د ۵۵۸هـ = ۱۱۶۳م شاوخوا).

علاء الدین جهانسوز د غور لومړی ستر سلطان دئ چي د افغانستان هیواد ئې تر یوې اداري لاندي راووست او د فیروزکوه په مرکزپور ئې وتاړه.

۶/ سلطان سیف الدین سوري (۵۴۳ – ۵۵۴هـ = ۱۱۴۸ – ۱۱۴۹م) د غوریانو لومړی پاچا دئ چي د سلطان لقب ئې واخیست. د ده د پاچهۍ مرکز د غور د استیه حصار وو. هغه وخت چي ئې ورور قطب الدین ملک الجبال په غزني کي ووژل سو نو سلطان سوري د بهرامشاه غزنوي سره جګړه وکړه او هغه ئې د کورم ناوې ته وځغلاوه او پخپله دی پر تخت کښېنوست او غور ئې خپل ورور سلطان بهاءالدین ته پرېښوو، خو د ژمي په وخت کي چي ئې ورور علاء الدین حسین له غزني څخه غور ته ولاړ بهرامشاه د خلجي (غلجي) پښتنو د لښکرو سره د لمر ختو له خوا پر غزني یرغل وکی او سلطان سوري ئې د هغه د وزیر سید مجدالدین موسوي سره ونیو او د غزني د طاق د پله پر سر ئې غرغره کی، څو چي ورور ئې جهانسوز د هغه په کسات کي غزني وران کی.

۷/ ملک فخرالدین مسعود تر ټولو ورونو مشر وو او د غور په کاسي کي امیر سو. څنګه چي سلطان علاء الدین جهانسوز د غزنه تر فتح وروسته تخارستان هم د ځان تابع کی، نو خپل مشر ورور ملک فخرالدین مسعود ئې د بامیان حکمران وټاکه، ده د

شغنان او تخارستان غرو ته تر دروازو او بلور او وخش او بدخشان پوري ونیول او لکه چي د غیاث الدین محمد په احوال کي ئې لولی د راغ زر په جگړه کي د خپلو ورېرونو په لاس کي بندي سو او بیرته بامیان ته واستول سو او هلته مړ سو (د ۵۵۰هـ = ۱۱۵۵م شاوخوا). تر ده وروسته ئې مشر زوی شمس الدین محمد په بامیان کي امیر او د فیروزکوه له دربار او سلطان غیاث الدین له حضوره هم په رسمیت وپېژانده سو. ده بلخ او چغانیان او وخش او جروم (گرمسیر) او بدخشان او د شغنان غرونه لاس ته راوستل او د سلطانشاه خوارزمشاهي د مخنیوي له پاره ئې د غور د لښکر سره یو ځای د مرو رود بار په جگړه کي گډون کړی وو او د سلطان لقب ئې وموند او د ده تر مړیني وروسته ئې زوی بهاء الدین سام چي لوی او علمدوسته پاچا وو د بامیان پر تخت کښېنوست (۵۸۷هـ = ۱۱۸۹م). د ده دربار د پوهانو د غونډي ځای وو، امام فخرالدین رازي او شیخ الاسلام جلال الدین او رساد او افصح العجم مولانا سراج الدین د ده په دربار کي ول. د ده پاچهي له کشمیره تر کاشغره او ترمذه او بلخه پوري او جنوباً د غور او غرجستان تر پایه پوري رسېدله او غور او غزنه او بامیان د ده تر فرمان لاندي ول. هغه وخت چي سلطان معزالدین شهید سو (۶۰۲هـ = ۱۲۰۵م) نو د هیواد امیرانو دی غزنه ته وروغوښت خو تر ۱۴ کالو پاچهي وروسته مړ سو او زوی ئې جلال الدین علي پر ځای کښېنوست (۶۰۲هـ = ۱۲۰۵م) او خپل ورور علاء الدین ئې د غزنه پر تخت کښېناوه، څنگه چي د غور او غز او تاج الدین یلدوز لښکرو د کرمان د درې د کورم د شاوخوا څخه پر علاء الدین یرغل وکی نو دی له بامیانه د خپل ورور د ملاتړ له پاره راغی او د ده په غیاب کي ئې اکا علاء الدین مسعود د شمس الدین محمد زوی د بامیان تخت ونیو او وزارت ئې صاحب وزیر ته ورکی. خو جلال الدین د غزنه تر تصفیې وروسته ژر بامیان ته ورغی او خپل اکا ئې د هغه د وزیر سره وواژه. بیا چي تاج الدین یلدوز دوهم وار پر غزني یرغل وکی او د علاء الدین لښکر ئې د سنقران (شنغران) په رباط کي مات کی او دی ئې په غزني کي کلابند کی نو جلال الدین له بامیانه د خپل ورور د ملاتړ له پاره ورغی خو دواړه وروڼه د یلدوز لاس ته ورغله او بیرته بامیان ته واستول سوه او هلته مړه سوه (د ۶۱۲هـ = ۱۲۱۵م). دا وو د هغو غوري وروڼو لنډه یادونه چي د غور شهنشاهي ئې جوړه کړه او تر هغو وروسته سلطان غیاث الدین بن محمد سام بهاء الدین قسیم امیرالمؤمنین چي د غور له لویو پاچهانو څخه دئ پاچا سو، دی د خپل

ورور معزالدین سره د خپل اکا علاء الدین په امر د وجیرستان په کلا کي بندي وو، خو سلطان سیف الدین د علاء الدین زوی دوی ایله کړه او غیاث الدین د غزان په جګړه کي ورسره وو. بیا چي سیف الدین د خپل سپه سالار له لاسه ووژل سو، همدې شیش سپه سالار د غور او غرجستان لښکر راوستل او د غیاث الدین سره ئې بیعت وکی او دی ئې د فیروزکوه پر تخت کښېناوه (۵۵۸هـ = ۱۱٦۲م). ده خپل ورور معزالدین د سرجاندار په رتبه د استیه او کجوران حکمران وټاکه او ابوالعباس شیش ئې چي د سلطان سیف الدین تر وژلو وروسته ئې ښه قوت موندلی وو وواژه. په دې وخت کي د غیاث الدین اکا یعني ملک فخرالدین مسعود د بامیان حکمران له ملک علاء الدین قماج سنجري د بلخ له حکمران او له تاج الدین یلدوز د هرات له حکمران څخه مرسته وغوښتله او د بامیان او بلخ او د هرات د لښکرو سره ئې پر فیروزکوه یرغل وکی او په راغ زر نومي ځای کي یو د بل سره جګړې ته چمتو سول، خو په لومړي سر کي د غور پهلوانانو ملک یلدوز د هرات حکمران د هغه د لښکر په منځ کي وواژه او هراتیان ئې سره تیت کړه. بیا ئې د بلخ لښکر هم مات او د قماج سر ئې پرې کی او د بامیان ملک فخرالدین ته ئې ورواستاوه او په خپله ئې هغه کلابند کی، او خپل اکا معزالدین او غیاث الدین ئې محترمانه ونیول او بیرته ئې بامیان ته واستول. سلطان غیاث الدین تر هغه وروسته ګرمسیر او زمینداور ونیو او قادس او کالیون او قیوار او سیفرود او غرجستان او تالقان او ګرزوان ئې هم د غور په سلطنت پوري وتړل او خپل ورور معزالدین ئې له جروم (ګرمسیر) او تګین آباد او سیستان څخه د غزنه او زاول او کابل خوا ته واستاوه، دی د غزانو لښکر چي په دغه وخت کي ئې غزنه نیولی وو په (۵٦۹هـ = ۱۱۷۳م) کال له غزنه څخه بیرته وشړل او د غزنویانو پایتخت ئې هم په غور پوري وتاړه او هم ئې د هرات نیولو ته ملا وتړله او بهاء الدین طغرل د سنجر یو مریی چي پر هرات ئې لاس بر سوی وو د سلطان تر لښکر دمخه خوارزم ته ولاړ او په ۵۷۱هـ کال کي هرات او تر هغه وروسته په (۵۷۳هـ = ۱۱۷۷م) کال کي فوشنج هم د غور د مرکز ضمیمه سول.

په دې وخت کي د سیستان ملکانو (چي شرح ئې تېره سوه) هم د اطاعت غاړه کښېښووه او شمالي ښارونه لکه تالقان، اندخود، میمنه، فاریاب، پنجده، مرو، دزق او خلم هم فتح سول. څنګه چي جلال الدین محمود د ایل ارسلان خوارزمشاه زوی د خطائیانو په مرسته د هیواد شمالي شاوخوا ته ئې زحمت پېښاوه، ځکه نو غیاث الدین

په ۵۸۸هـ = ۱۱۹۲م کال د غزنه لښکر د معزالدين په مشرۍ او د باميان لښکر د ملک شمس الدين په مشرۍ او د سيستان لښکر د تاج الدين حرب په لارښوونه د مرو په رود بار کي راغونډ کړه او د مرغاب په کڅو (سواحلو) کي ئې خوارزمشاهيان مات کړه او په (۵۹٦ هـ = ۱۱۹۹م) کال ئې خراسان صفا کی او تر نشاپوره پر مخ ولاړ او هغه ئې ملک ضياء الدين ابو علي شنسباني ته وسپاره او مروشاه جهان ئې هم ونيوه او ملک نصرالدين محمد خرنک ئې د هغه ځای په حکمراني وګوماره، او د سرخس ايالت ئې تاج الدين زنګي د فخرالدين مسعود بامياني زوی ته وسپاره. څنګه چي غياث الدين بيا هيواد ته مرکزيت ورکی او د منځنۍ آسيا ټولي سيمي ئې له هندوستانه تر عراقه او له چينه او جيحونه د هرمز تر سينده پوري د غور د فيروزکوه تر بيرغ لاندي راوستلې او د خراسان ستر او يوازينی شهنشاه ګڼل کېده نو د بغداد خليفه الناصر الدين الله هم خپل سفيران ابن ربيع او قاضي مجدالدين قدوه او ابن الخطيب د فيروزکوه دربار ته واستول او غوري سلطنت ئې په رسميت وپېژاند او د غور له درباره هم سراج الدين محمد جوزجاني د سفير په توګه بغداد ته ولاړ او په دې ډول د فيروزکوه او بغداد د دوو شهنشاهيو تر منځ سياسي نېک روابط ټينګ سوه.

سلطان غياث الدين غوري د شرق او غور له خورا سترو پاچهانو څخه دئ چي هم علمدوست او مهربان او هم عادل وو. د ده په دربار کي پوهان او عالمان راغونډ ول. دی په ٦۳ کلنۍ د (۵۹۹هـ = ۱۲۰۲م) کال د دريمي خور (جمادی الاولی) په ۲۷ ورځ د هرات په ښار کي وفات سو او په هغه لوی مسجد جامع کي چي ده پخپله جوړه کړې وه ښخ دئ او دا مسجد جامع تر اوسه په هرات کي ودان دئ. دی په لومړي سر کي د خپلو اسلافو په شان د محمد کرام سيستاني په مذهب وو، خو وروسته ئې شافعي مذهب ومانه. د ده د دربار له نوميالیو پوهانو څخه قاضي وحيدالدين شافعي مرورودي او صدرالدين کرامي نيشاپوري او د ده د هيواد قاضيان قاضي القضات معزالدين هروي او قاضي شهاب الدين هرمابادي او وزيران ئې شمس الملک او عبدالجبار ګيلاني او فخرالملک شرف الدين قزداري او مجدالملک ريوشاري او عين الملک سورياني او ظهيرالملک سجزي او جلال الدين ريوشاري ول. په دوبي کي ئې دارالملک فيروز کوه او په ژمي کي ئې زمينداور وو، د خپل لاس ليک سره ئې (حسبی الله وحده) ليکل (۵۳ لمبر تصوير دي وکتل سي).

د سلطان غياث الدين محمد سام تر مړيني وروسته ئې زوی غياث الدين محمود چي يو عياش سړی وو د معزالدين اکا له خوا ئې د بست او فراه او اسفزار په حکمرانۍ وگومارل سو ، ده لښکر راټول کړ او تر مرو شاهجان پوري پر مخ ولاړ او د معزالدين تر شهادت وروسته په ٦٠۲ھ کال ئې له بست څخه د زميندا ور له لاري پر غور يرغل وکی او فيروزکوه ئې له ملک علاء الدين ابو علي څخه واخيست او غور ئې د غرجستان او تالقان او گرزوان او قادس او گرمسير سره لاس ته راوستل او د خپل پلار او اکا د ملک وارث سو.

ده تاج الدين يلدوز ته چي د معزالدين محمد له خادمانو څخه وو د غزني د حکمرانۍ چتر او مثال د سند تر سينده پوري ور واستاوه او په (٦٠٥ھ = ۱۲۰۸م) کال ئې د هندوستان د هيوادو مثال سلطان قطب الدين ايبک ته ورکی او په دې توگه ئې د غور پاچهي د هند تر پايه بالواسطه ټينگه کړه.

په (٦٠۷ھ = ۱۲۱۰ع) کال ملک رکن الدين ايرانشاه محمود د ملک علاء الدين ابو علي زوی د پنځوسو زرو غزنوي او کاسي لښکر سره پر غور او فيروزکوه يرغل وکی، خو غياث الدين محمود د ده سر پرې کی او د ميمنې او فارياب تر منځ په سالوره کي ئې د علاء الدين آتسز حسين شنسبي سره چي د سلطان محمود خوارزمشاه په مرسته د بلخ او مرو او سرخس او رودبار د لښکرو سره ئې د تالقان له لاري پر غور يرغل کړی وو جگړه وکړه او د خوارزمشاه او آتسز لښکر ئې مات کی، او تر هغه وروسته څنگه چي عليشاه د تکش خوارزمشاه زوی د خپل ورور له درباره غور ته وتښتېد او غياث الدين محمود دی د برکوشک په ماڼۍ کي بندي کی، د عليشاه نوکرانو دی په (٦٠۷ھ = ۱۲۱۰م) کال وواژه، دی سخي، بخښونکی، عادل او حليم پاچا وو چي د پلار (۸۰۰) زرعين سندوخه خزانې چي د څلورو سوو اوښانو بار کېده خلکو ته وبخښلې.

د غياث الدين محمود تر مړيني وروسته د ده څورلس کلن زوی بهاء الدين سام د غور د اميرانو له خوا د فيروز کوه پر تخت کښېنول سو ، درې مياشتي وروسته سلطان علاء الدين اتسز شنسبي د سلطان محمود خوارزمشاه او د هرات امين حاجب ملک خان په مرسته پر فيروزکوه يرغل وکی او د ٦٠۷ھ کال په دريمه خور (جمادی الاولی) هغه ښار ونيو او بهاء الدين ئې د شاهي کورنۍ د ښځمنو سره خوارزم ته فرار کړ او تر هغه وروسته علاء الدين اتسز د علاء الدين حسين جهانسوز زوی د فيروز کوه پر تخت

کنبېنوست او تر ځلورو کالو پورې ئې حکومت وکی او په ګیلان کې د ملک تاج الدین یلدوز او موید الملک محمد د عبدالله سیستاني زوی د غزنه د وزیر سره په جګړه کې مات سو او تر هغه وروسته ملک نصیرالدین حسین امیر شکار له غزني څخه پر غور یرغل وکی او په جرماس کې ئې علاء الدین اتسز وواژه او غور ئې د غزني د پاچهۍ تر اثر لاندې راووست او د (٦١١هـ = ١٢١۴ع) په شاوخوا کې تاج الدین یلدوز له غزني څخه علاء الدین درغور بیرته د فیروز کوه تخت ته واستاوه، خو علاء الدین په ٦١٢هـ کال د سلطان محمود خوارزمشاه لاس ته ورغی او په خوارزم کې مړ سو، او ټول غور د خوارزمشاهۍ تر لاس لاندې سو.

خو د سلطان غیاث الدین محمد بل ورور ابوالمظفر معزالدین محمد بن سام قسیم امیر المؤمنین هم د شرق او آل شنسب له سترو پاچهانو څخه وو چې د خپل ورور سره سرجاندار (د شاهي ګارډ قوماندان) وو او تر هغه وروسته د غور د کجوران او استیه د ولایت حکمران سو (۸۵۵هـ = ١١٦٢م) او د ګرمسیر ښارونه ئې تر تګین آباد پورې لاس ته وروستل او ده په غزني کې د غزانو دوولس کلنۍ واکمني او سلطه ختمه کړه او د سلطان غیاث الدین محمد په امر د غزني پر تخت کنبېنوست (۵٦۹هـ = ١١٧٧م). په ۵٧٠هـ کال ئې ګردیز فتح کی او ملتان ئې له قرامطه څخه ونیو او په (۵٧٣هـ – ١١٧٧ع) کال ئې د سنقران د یاغیانو غورځونه تاو کړل. په ۵٧۴ کال د بهیم دیو نهرواله له جګړې څخه ناکامه راوګرزېد او په ۵٧۵هـ کال ئې فرشور (پېښور) او په (۵٧٧هـ = ١١٨١) کال ئې لاهور ونیو او تر هغه وروسته د خپل ژوند تر پایه ئې ټول هندوستان ونیو او د اسلام په نور ئې روښانه کی.

په افغانستان کې د ده د وختو له مهمو پېښو څخه په اندخود کې د خطا د کفارو او ترکستان د ملوکو سره سلطان معزالدین محمد جګړه وکړه، چې سالار حسین خرمیل د ګرزیوان ملک د ده د لښکر په مخ کې وو، خو څنګه چې د غوریانو لښکر څه کار پر مخه بو تلای نه سو، نو ملک عثمان سمرقندي چې د ترکستان د آل افراسیاب له ملکانو څخه وو منځګړی سو او روغه ئې وکړه او سلطان غزنین ته وګرزېد او څنګه چې په پنجاب کې د کوکهران ډله او د جود د غره قبایل یاغیان سوه، ځکه نو سلطان محمد هغو غزا ته ووت او د هغو تر سر کوټلو وروسته د غزنه په لار د ملاحده د یوه فدایي له لاسه په دمیک نومي ځای کې (چې د اوسني پنجاب د جهلم په سیمه کې دئ) د (٦٠٢هـ =

۱۲۰۵م) کال د برات پر ۳ شهید سو.

سلطان محمد معزالدین غوري هم د خپل ورور په شان د آسیا په زړه کي یو لوی هیواد وساته او د غور د شهنشاهۍ حدود ئې په هندوستان کي د گنگا تر سواحلو ورسول او هم ئې هند د اسلام په نور روښانه کی. د ده هیواد لمرخاته خوا ته د گنگا تر کڅو (سواحلو) پوري او لمر لوېدو پلو ته د خراسان او خوارزم او نسا او باورد تر پایه پوري غځېدلی وو او جنوب ته د بحیرۀ عرب سره نښت، د ده حکمداران په لاندي ځایو کي دا کسان ول: په غور کي ملک ضیاء الدین او په بامیان کي ملک تاج الدین زنگي او په ملتان کي ملک حسام الدین علي کرماج او په لاهور کي ملک قطب الدین ایبک او په غزنه او کرمان کي ملک تاج الدین یلدوز او په سند هواچه کي ملک ناصرالدین قباچه، او په بامیان کي سلطان بهاء الدین سام، او په فیروز کوه کي سلطان غیاث الدین محمود او په سیستان کي ملک تاج الدین حرب او په مکران کي ملک تاج الدین او په وخش کي ملکشاه.

د ده نومیالي وزیران ضیاء الملک درمشي او مؤید الملک محمد عبدالله سجزی او شمس الملک عبدالجبار گیلاني دي. د ده قاضیان صدر شهید نظام الدین ابوبکر او سید شرف الدین ابوبکر او د صدر شهید زوی او د لښکر قاضي ئې شمس الدین بلخي وو. د پاچهۍ بیرغونه ئې پر راسته لاس سور او پر چپه لاس تور وو. منهاج سراج د سلطان په شاهي خزانه کي د ډېر ثروت یادونه کوي چي د خواجه اسماعیل خزانه دار په قول د غزني په خزانه کي یوازي د الماس له جنسه یو زر او پنځه سوه منه موجود ول.

د پټې خزانې په کتاب کي د پښتو ژبي محلي روایتونه د پخوانیو کتابو په حواله دا څرگندوي چي د محمد غوري په دربار کي د پښتو ژبي شاعران ول، چي یو له هغو څخه ښکارندوی د فیروزکوه د کوټوال احمد زوی دئ چي په هند کي د محمد د فتوحاتو په ستاینه کي ئې یوه ډېره ښه او خوندوره قصیده ویلې او په پټه خزانه کي رانقل سوې ده او د پښتو ژبي له خورا مهمو ادبي، تاریخي آثارو څخه گڼل کېږي (۵۴ لمبر تصویر دي وکتل سي).

د معزالدین محمد غوري تر شهادت وروسته هغه لوی هیواد ټوټې ټوټې سو، د افغانستان شرقي برخه له غزني څخه تر سنده پوري د تاج الدین یلدوز لاس ته ورغله چي د غور د دربار له خدمتگارانو څخه وو او د محمد خدمت ئې کاوه.





افغان شهنشاه سلطان غیاث الدین غوري (۵۵۸هق)
۵۳ - لمبر عکس

دې تاج الدین خپله يوه لور ملک قطب الدين ايبک (د هند حکمران) ته او بله لور ئې هم ناصرالدين قباچه (د سند حکمران) ته ورکړې وه او غزنه ئې د سند تر سينده ونيوه، خو هغه وخت چې قطب الدين ايبک له لاهور څخه پر غزني يرغل وکی يلدوز د سند په پنج آب کې ورسره جگړه وکړه او مات سو او د کرمان د (کورم) ناوې ته ولاړ او له هغه ځايه ئې په غزني کې پر قطب الدين حمله وکړه، او قطب الدين په غزني کې تر څلوېښتو ورځو پاچهی. وروسته بيرته هند ته ولاړ او غزني د يلدوز په لاس کې پاته سو او لکه چې وويل سوه د سلطان غياث الدين محمود په ملاتړ د هرات په جگړه کې د سلطان محمد خوارزمشاه په مقابل کې ودرېد او پر سيستان ئې هم لښکر ويوست او د تاج الدين حرب سره چې د سيستان ملک وو روغه وکړه (٦٠٢هـ). ده نه کاله د معزالدين محمد په نامه سکه وو هله او پر هغې باندې ئې (عبده) وليکل. څنگه چې د سلطان محمد خوارزمشاه لښکريان له تخارستانه پر غزني راغلل او تر گردېزه ئې ونيول نو تاج الدين يلدوز هندوستان او لاهور ته ولاړ او په هغه جگړه کې چې په تراين کې ئې د سلطان التتمش سره وکړه ونيول سو او په بدوان کې ووژل سو (د ٦١١هـ = ١٢١۴م شاوخوا). د غوريانو د سلسلې د شلېدلو په وخت کې (٦١٢هـ شاوخوا) خوارزمشاهيانو شمالي ولايت او غور او هرات ونيول او سيستان تر بست او تگين آباد او زابلستان پورې د سيستان د محلي ملکانو لاس ته ورغی او د غزني ولايت او کابل او شرقي سيمي تر سنده پورې په تاج الدين يلدوز پورې اړه ومونده او تر ده وروسته د خوارزمشاهي له درباره ملک کربر په غزنه کې او امين ملک په هرات کې او اختيارالدين محمد خرپوست په پېښور کې حکم کاوه (د آل شنسب وروستنی پېښې د چنگيز د راوتلو په شرح کې راوړه کېږي).

د غوريانو په وخت کې دغزنويانو د دورې مدنيت د کمال درجې ته ورسېد، د دري ژبې ادبيات د غوري فاتحينو په واسطه تر ډهلي پورې خپاره سوه او پښتو ژبه هم د سوريانو په کهاله کې پاللې سوې او د شعر او ادب ژبه سوه. د اسلام دين ئې په ټول افغانستان او د هند په زياته برخه کې خپور کی او صنعت او عمران چې نمونې ئې د هرات جامع مسجد او د غور د جام څلی (منار) (۵۵ – ۵٦ لمبر عکسونه دې وکتل سي) او د ډهلي قطب منار دي ډېره ترقي وکړه او علوم او فنون د غوريانو په لوی هيواد کې د نامتو پوهانو او شاعرانو سره وپالل سوه او د (افغان او هند) اسلامي مدنيت چې لوديانو او غزنويانو ئې بنسټ ايښی وو د پخوالي مرتبو ته ورسېد.



د هرات تاریخي مسجد جامع، ۵۵-لمبر عکس



په غور کې د جام منار
د سلطان غیاث الدین غوري یادګار
۵۶ – لمبر عکس

د غوریانو د دورې نومیالي پوهان او شاعران دا ول: امام فخرالدین رازي، نظامي سمرقندي، احمد میداني نیشاپوري (د مجمع الامثال خاوند)، علي باخرزی (د دمیة القصر خاوند)، قاضي منهاج سراج جوزجاني (د طبقات ناصري خاوند)، قاضي وحیدالدین شافعي مرورودي، صدرالدین کرامي نیشاپوري، معزالدین هروي، شیخ الاسلام جلال الدین ورساد، مولانا سراج الدین جوزجاني، ابو نصر فراهي، محمد عوفي (د لباب الالباب خاوند)، اسعد سعوري، شیخ تیمن، تایمني، ملکیار غرشین، قطب الدین بختیار، ښکارندوی (پښتو شاعران) ملک الکلام فخرالدین مبارکشاه (د غوریانو د منظومې نسب نامې خاوند) او نور.

د غوریانو درباري ژبه پښتو او دري وه، څنګه چې غوریان د پښتنو له سوري ټبر څخه ول نو ځکه د دوی په وختو کې پښتانه د غور او سلیمان له غرو څخه د ترنک او ارغنداو او هلمند او کابل او هریرود ناوو ته راشوه سول او د هند په فتوحاتو کې ئې د پاچهانو په لښکرو کې هم ګډون وکی او د پښتنو د قبیلو زیات خلک او مشران په هند کې د شهنشاهانو او د هغو پر ځای ناستو کسانو سره پاته سول، چې د هغو پایڅوړ تر اوسه هم په ټول هند کې ډېر سته، لکه: لودیان، سوریان، نیازیان، مومندان، شیرانیان، بهریچان (بړېڅان) چې زیاتره ئې په هند کې د روهیله یا پټان په نومو یادېږي او دا خلک حتی تر اوسه هم د هند په مختلفو سیمو کې خاص حکومتونه او د ریاست او نفوذ سیمې لري.

د غور د شاهي کهول نومیالي:

۱. شنسب د خرنک زوی (د ۴۰ – ۸۰ هـ شاو خوا)
۲. امیر پولاد د شنسب زوی (د ۱۳۰هـ شاو خوا)
۳. امیر کروړ د پولاد زوی (۱۳۹ – ۱۵۴هـ)
۴. امیر ناصر د کروړ زوی (د ۱٦۰هـ شاو خوا)
۵. امیر بنجي د نهاران زوی (د ۱۷۰هـ شاو خوا)
٦. امیر سوري د ؟ زوی (د ۲۵۳هـ شاو خوا)
۷. امیر محمد سوري (د ۴۰۵هـ شاو خوا)
۸. امیر بوعلي د محمد سوري زوی (د ۴۲۵هـ شاو خوا)
۹. عباس دشیش زوی او د بوعلي وراره (د ۴۵۰هـ شاو خوا)

۱۰. امیر محمد د عباس زوی (د ۴۰۵ هـ شاوخوا)
۱۱. قطب الدین حسن د محمد زوی (د ۴۶۰ هـ شاوخوا)
۱۲. ملک الجبال عزالدین حسین د قطب الدین حسن زوی (د ۵۱۰ هـ شاوخوا)
۱۳. قطب الدین محمد د عزالدین زوی (په ۵۴۱ هـ کې وژل سوی)
۱۴. بهاء الدین سام د عزالدین زوی (۵۴۴ – ۵۵۴ هـ)
۱۵. ملک شهاب الدین خرنک د عزالدین زوی (د ۵۵۰ هـ شاوخوا)
۱۶. ملک شجاع الدین د عزالدین زوی (د ۵۵۰ هـ شاوخوا)
۱۷. سلطان علاء الدین حسین جهانسوز د عزالدین زوی (۵۵۴ – ۵۵۱ هـ)
۱۸. سلطان سیف الدین د عزالدین زوی (۵۴۳ – ۵۴۴ هـ)
۱۹. ملک فخرالدین مسعود د عزالدین زوی (د ۵۴۰ هـ شاوخوا)
۲۰. سیف الدین محمد د جهانسوز زوی (۵۵۱ هـ)
۲۱. سلطان غیاث الدین محمد سام (۵۵۸ – ۵۹۹ هـ)
۲۲. سلطان معزالدین محمد سام (۵۶۹ – ۶۰۲ هـ)
۲۳. سلطان غیاث الدین محمود د غیاث الدین محمد زوی (۵۹۹ – ۶۰۷ هـ)
۲۴. سلطان بهاء الدین سام د محمود زوی (۶۰۷ هـ)
۲۵. علاء الدین اتسز د جهانسوز زوی (۶۰۷ – ۶۱۱ هـ)
۲۶. علاء الدین درغور (۵۹۹ – ۶۱۲ هـ)
۲۷. ملک ناصرالدین گزیو د شهاب الدین خرنک زوی (د ۶۱۸ هـ شاوخوا)
۲۸. سلطان شمس الدین محمد د فخرالدین مسعود زوی (د ۶۵۰ هـ شاوخوا)
۲۹. سلطان بهاء الدین سام د شمس الدین محمد زوی (۵۸۷ – ۶۰۲ هـ)
۳۰. جلال الدین ابو علي د بهاء الدین سام زوی (۶۰۲ – ۶۱۲ هـ)
۳۱. علاء الدین مسعود د بهاء الدین سام زوی (۶۰۲ – ۶۱۲ هـ)
۳۲. علاء الدین مسعود د شمس الدین محمد زوی (د ۶۱۰ هـ حدود)

**مأخذونه:**

طبقات ناصري، ابن اثیر، دول اسلامیه، پټه خزانه، آداب الحرب، دایرة المعارف اسلامي، فرشته، شوکت افغاني، معجم الانساب، گزیده، لب التواریخ، فتوح السلاطین عصامي (۵۷ – ۵۸ لمبر شجرې دې وکتله سي).

لومړۍ برخه

# غوريان (۴۹۳ - ٦١٢هـ)

۵۷ - لمبر

امير محمد (حدود ۴۰۰هـ) ... امير سوري (حدود ۲٦۰هـ) ... بنجی نهاران (حدود ۱۷۰هـ)

ابو علي (حدود ۴۱۰هـ)

شيث بن ← عباس ← بن محمد (حدود ۴۵۰هـ) ← بن قطب الدين حسن ← بن عزالدين حسين (۴۹۳هـ)

قطب الدين محمد
ملک الجبار
(مقتول ۵۴۱هـ)

۲ –سيف الدين سوري
(مقتول در غزنه
۵۴۴هـ)

۳ –علاء الدين حسين ×
جهانسوز (۵۴۴ – ۵۵۱هـ)

بهاء الدين سام ۵۴۴ هـ غور

دوهمه برخه وګورئ

۵– غياث الدين محمد
(۵۵۸ – ۵۹۹هـ)

ملكه خراسان

٦ –معزالدين محمد ×
(۵٦۹ – ٦۰۲هـ)

۴ –سيف الدين محمد ×
(۵۵۱ – ۵۵۸هـ)

۹ –علاء الدين أتسز
(٦۰۷ – ٦۱۰هـ)

جوهر ملک
(د ملک غياث الدين ماينه)

ماه ملک
(د علاء الدين محمد ماينه)

۷ –غياث الدين محمود ×
(۵۹۹ – ٦۰۹هـ)

(لور)
د علاء الدين محمد ماينه

جمشيد

ناصرالدين محمد
بندار

فخرالدين
مسعود غرستان

۸ –بهاء الدين سام (٦۰۷ – ٦۰۹ هـ)

لور

شمس الدين محمد (متولد ۵۹۹هـ)

# غوريان (۴۹۳ - ٦١٢هـ)






**ماخذونه**: د دهلي افغان شاهان، د توماس تاليف: لندن ۱۸۷۱م، طبقات ناصري، دائرة المعارف اسلام، ايراني نومونه: ۱۵۵، دول اسلاميه: ۴۵۸. معجم زمباور: ۲/ ۴٦۰.

# خوارزمشاهیان

خوارزم یو سرسبز او ودان مشهور ولایت وو چي د امو له سینده اوبېده او د اتیا فرسخو په شاوخوا کي ئې اوږدوالی درلود، ښارونه ئې له بازارو ډک او کلي ئې یو بل ته سره نژدې ول، هم ئې ماڼۍ درلودلې او هم د کرهڼې ځمکې، پایتخت ئې گرگانج (جرجانیه) نومېده او له ډېرو پخوانیو زمانو څخه ئې د افغانستان د شمالي او مادون النهر د ښارو سره اقتصادي او سیاسي او فرهنگي روابط درلوده او د مارکوارت په قول ایریانم ویجو (باختر ته تر هجرت دمخه د آریائیانو اصلي ټاټوبی) همدا ځای وو او دا نوم په اوستا کي XVARIZEM او په پخواني فرس کي (هوارزمیش) وو او خوارزمي ژبه نورو آریایي ژبو ته نژدې یوه ژبه وه چي په وروستنیو کیندنو کي ئې آثار راوتلي دي او البیروني هم دا ژبه په آثارالباقیه کي یوه مستقله ژبه گڼلې ده او د هغې د میاشتو نومونه ئې لیکلي دي او وایي چي د خوارزم ملکانو ته (خوارزم شاه) وایي. د ۳۲ه په شاوخوا کي احنف د قیس زوی عربي فاتح مادون النهر سیمي له تخارستانه تر تالقان او فاریاب او جوزجان پوري ونیولې او د آمو له غاړو خوارزم ته پرېووت خو هغه ئې و نه نیولای سو او د معاویه د زوی یزید په وختو کي هم سلم د زیاد زوی د خوارزم د خلکو سره په څلور سوه زره درهمه روغه وکړه او څنگه چي یزید د مهلب زوی د حجاج له خوا خراسان ته راغی دی هم د خوارزمیانو سره وجنگېد (د ۸۲ه په شاوخوا کي) او د (۸۶ه په شاوخوا کي) قتیبه د مسلم باهلي زوی هغه فتح کی.

د البیروني په قول د خوارزمشاهیانو د کهول لومړی مؤسس کیخسرو وو او د اسلام له اوایلو څخه خوارزم د حکومت له حیثه پر دوو برخو وو وېشل سو:

شمالي برخه ئې چي پایتخت ئې (گرگانج) وو معمولاً د عربي امیرانو له خوا اداره کېده او جنوبي برخه چي مرکز ئې (کات) وو د خوارزمشاهیانو سیمه وه او د خوارزمشاهانو مشهوره کورنۍ تر اسلام دمخه او وروسته مامونیان ول چي په اسلامي دوره کي ئې مؤسس ابو سعید احمد د محمد زوی وو چي د (۳۴۰ه په شاوخوا کي) ئې

ژوند کاوه او د ده د ۳٦٦ هـ کال سکې سته او له دې کورنۍ څخه ارثموخ خوارزمشاه وو چې د هجري سنې د سر په شاوخوا کي اوسېد او نسب ئې د البیروني په قول افریغ ته رسېده او چې قتیبه دوهم وار پر خوارزم برى وموند، خوارزمشاه اسکجموک د ازکاجوار زوی د سبري نمسی د سخر کړوسی او د نوموړي ارثموخ کوسی ئې په خوارزمشاهي وپېژند د (۸٦هـ شاوخوا) چې د احمد د احمد نسب سلسله ده ته په دې ترتیب رسېدله: احمد د محمد زوی د عراق نمسی د منصور کړوسی د عبدالله کوسی چې هغه بیا د ترکسباثه زوی او د شاوشفر نمسی او د اسکجموک کړوسی وو.

دوهم: ابو عبدالله محمد د احمد زوی چې د ابن اثیر په قول په ۳۸۵هـ کال مړ دئ.

دریم: مامون د محمد زوی چې کورنۍ ئې د ده په نامه (مامونی) یادېږي د سامانیانو له خوا د خوارزم والي وو په گرگانج کي او د ابو عبدالله خوارزمشاه سره وجنگېد او بریالی سو او د خوارزمشاهي لقب ئې په ۳۸۵هـ کي خپلي کورنۍ ته واړاوه، په ۳۸۷هـ وفات سوی او یوه لور ئې د سلطان محمود ماندینه وه.

څلرم: ابوالحسن علي د مامون زوی په ۳۸۷هـ کي پر تخت کښېنوست او د سبکتگین لور حره ئې وکړه او په خوارزم کي ئې ابن سینا ته بنه راغلی وویل او سکه ئې سته.

پنځم: ابوالعباس مامون د مامون زوی په ۳۹۰هـ کي.

شپږم: ابوالحارث محمد د علي زوی او د مامون نمسی چې په ۴۰۷هـ کال ئې سکه ووهله او په ۴۰۸هـ کال سلطان محمود له منځه یووی او د غزنه له درباره ئې لوی حاجب لتونتاش د خوارزم په حکومت وگوماره او د خوارزمشاه لقب ئې ورکی او د مامونیانو د کورنۍ کمبله ټوله سوه او تر التونتاش وروسته ئې زوی هارون ۴۲۳هـ او اسماعیل خندان د التونتاش زوی (۴۲۵هـ) او شاه ملک (۴۲۹هـ) په خوارزم کي حکومت کاوه چې په (۴۳۴هـ) کال طغرل بېگ سلجوقي له منځه یووړل.

د خوارزمشاهیانو د دوهمي کورنۍ بنسټ د انوشتگین په لاس کښېښود سو چې د بلگاتگین له مریانو څخه وو او د ۴۷۰هـ په شاوخوا کي ئې د سلجوقي دولت په وختو کي شهرت وموند او د (غرشاه) لقب ئې واخیست، څنگه چې په ۴۹۰هـ کي اکنجي قجقار د برکیاروق گومارل سوی حکمران ووژل سو، نو د خراسان والي امیر داد حبشي د برکیاروق په تصویب قطب الدین محمد د انوشگین زوی په خوارزمشاهي وټاکه او تر

هغه وروسته دا لقب د چنګیز تر راتلو پوري په دې کورنۍ کي پاته سو، چي یو وخت ئې د واکمنۍ سیمه تر زمینداوره هم رسېدله او په ٦۱۷هـ کي وروستنی خوارزمشاه جلال الدین منکبرني د افغانستان په خاوره کي د چنګېز د لښکریانو سره زیات مقاومتونه وکړه.

د دې کهول نور کسان چي خوارزمشاهۍ ته رسېدلي دي:

۳/ اتسز د محمد زوی چي په **۵۲۱**هـ کال پاچا سو او سکه ئې ووهله، په **۵۳۳**هـ کي ئې له سلطان سنجره ماته وکړه خو په **۵۳۵**هـ کي ئې بیا د خوارزم تخت ده ته ورکی.

د ده په وختو کي علي چتري په هرات کي پورته سو، خو اتسز د سنجر ټول ملکونه ونیول، او دربار ئې د فاضلانو د راغونډېدو ځای سو او رشیدالدین وطواط خپل کتاب حدایق السحر ئې د ده په نامه ولیکه، د **۵۵۱**هـ کال په دریمه خور (جمادی الاخر) کي مړ دئ.

۴/ ایل ارسلان د اتسز زوی: د پلار تر مړیني وروسته پر خوارزمشاهي تخت کښېنوست او د قراخطا او قفچاق د قبیلو سره ئې روغه وکړه او د سنجري ملکانو پایڅوړ ئې له خراسانه وشاړه او یا ئې روغه ورسره وکړه او په **٦۵۸**هـ مړ سو.

۵/ سلطان شاه ابوالقاسم محمود د ایل ارسلان زوی (**۵٦۸ – ۵۸۹**هـ) چي د ورور سره د دښمنۍ په سبب ئې د غور د سلطان غیاث الدین دربار ته پناه یووړه، خو څنګه چي د غور دربار د سلطان تکش سره تړون درلود څه مرسته ئې ورسره و نه کړه او محمود ماوراء النهر ته ولاړ او د خطا له خانه ئې کومک واخیست او خراسان ئې د غز د امیرانو له جوره او لاسه وژغوره او په مرو کي ئې دارالملک جوړ کی او د هرات ملک بهاء الدین طغرل هم ورسره یو ځای سو او د غور سرحدو ته ئې زحمت پېښاوه، خو سلطان غیاث الدین غوري په مرو رود کي د غور او بامیان او سیستان لښکري راغونډي کړې او تر شپږو میاشتو ئې جګړه وکړه، څو په پای کي د غور د سلطان لښکري له مرغابه پورېوتلې او بهاء الدین ئې وواژه او محمود د ماتي په حال کي په **۵۸۸**هـ کال مرو ته وګرزېد او زهر ئې وخوړل او مړ سو (**۵۸۹**هـ).

٦/ ابوالمظفر سلطان تکش د ایل ارسلان زوی: د **۵۸۹**هـ کال د لومړۍ خور (ربیع الاول) پر ۱۲مه پر تخت کښېنوست. دی لوی عالم او هنرور پاچا وو، چي نیم خراسان ئې په خپل قوت تر لاس لاندي کی او د ده د هیواد وېش د هلمند تر غاړو

رسېده. لکه چي د ده زياتي سکې په داور (زميندا ور) کي وهلي سوي او له هغه ځايه لاس ته راځي. تکش د ققچاق او خطا د قبيلو سره روغه کړې وه او مازندران او د عراق يوه برخه ئې ونيوله او د سنجر وراره سلطان طغرل ئې بندي کی او د بغداد د خلافت دربار ئې تهديد اوه او د بغداد وزير ابن القصاب ئې مات کی، د خلافت دربار خپل دوه تنه سفيران ابن الربيع او ابن الخطيب د غور د فيروز کوه دربار ته واستول چي د سلطان غياث الدين غوري حضور ته د تکش له تېري استغاثه وکي، خو سلطان تکش د ۵۹۶ھ کال د روژې پر نهمه مړ سو.

۷/ علاء الدين محمد د تکش زوی د پلار تر مړيني وروسته خوارزمشاهي ته ورسېد او نشاپور ئې خپل ورور عليشاه ته (چي په ۶۰۹ھ وژل سوی) ورکی او د غور او غزنه دربارو ته ئې سفيران واستول او روغه ئې وغوښته او د غور تر پاچهانو وروسته ئې خراسان ونيو او ملک عزالدين خرميل غوري د ده سره يو ځای سو او تر يوولسو مياشتو کلابندۍ وروسته ئې هرات ونيو او بلخ ئې هم فتح کی او د ده د هيواد سرحدونه تر بلاساغون او کاشغر او خطا پوري ورسېدل او تاينکو طراز او گورخان خانان په ترکستان کي د ده اطاعت ته غاړه کښېښوده او تاج الدين يلدوز ئې د هند خوا ته وشاړه او د ده د هيواد وېش د سند تر سينده ورسېد او خپل زوی جلال الدين بن منکبرني ئې د افغانستان په حکمرانۍ وگوماره، خو په ۶۱۷ھ کال د چنگيز لښکر د لمرخاته له خوا د ده پر هيواد يرغل وکی او دی د مغلوبۍ په حال کي د آبسکون جزيرې ته فراري سو، او په همهغه کال مړ سو.

د علاء الدين له ورونو څخه يو يونس خان د تکش زوی د عراق حکمران او بل ملک خان د نشاپور او خراسان حکمدار او دريم علي شاه د عراق او اصفهان حکمران وو او څه موده هم د علاء الدين محمد له زامنو څخه ارزلوشاه په ۶۱۷ھ کال د پلار تر فرار وروسته پر تخت کښېنوست، خو د چنگيز لښکريانو خوارزم ونيو.

همدارنگه رکن الدين غوريشانستي د علاء الدين محمد زوی څه موده د عراق حکمراني وکړه، څو چي په ۶۱۷ھ کال د چنگيز لښکر دی همهلته وواژه او آق سلطان د علاء الدين محمد بل زوی هم څه موده په کرمان کي پاچا وو څو چي د خطائي براق حاجب په لاس ووژل سو.

۸/ د سلطان محمد خوارزمشاه مشر زوی او وروستنی زړور پاچا جلال الدين

منکبرني دئ چي په ٦١٧هـ کال د خپل فراري پلار پر ځای کښېنوست او د چنګېز د لښکریانو سره ئې په مړانه مقاومتونه وکړه.

دی د پلار په ژوند د خراسان او غور او غزنه نایب السلطنه او وزیر ئې شهاب الدین الپ سرخسي وو، چي له خپلي خوا ئې غزنه ملک کربر او فیروزکوه ئې مبارزالدین سبزواري ته او کرمان ئې ملک الامراء او برشور (پېښور) او بوبکر پور ئې ملک اختیارالدین محمد علي خرپوست ته وسپارل.

هغه وخت چي ئې پلار په ٦١٧هـ کال د چنګیز له حملې وتښتېد، په نشاپور او د خراسان او کرمان په بیابانو او د نیمروز او بست او داور په ښارو کې مقاومتونه وکړه ځو چي په غزني کي ملک خان امین حاجب د هرات مات سوی حکمران هم د ده سره یو ځای سو، چنګیز خپل زوم قوتو قونوین ئې په دوی پسي وګوماره او د کابل د پروان په شاوخوا کي ئې درې واره جګړه وکړه او قوتوقو ئې مات کی، ځو چي چنګیز د خراسان له تالقانه د ده جګړې ته راغی او جلال الدین د پرشور (پېښور) خوا ته پر شا سو او چنګېز د سند د سیند تر غاړو پسي ولاړ او په هغه جګړه کي چي د سند د اوبو پر غاړه ئې وکړه مات سو او ځان ئې اوبو ته واچاوه او د اوچه او ملتان او کرمان له لاري پارس ته ولاړ (٦٢١هـ)، ځو چي د ٦٢٨هـ کال د شوال پر ۱۵مه د کردانو د لاسه ووژل سو او د ده د مړیني سره د دې کهول کمبله هم ټوله سوه او د دې پېښو تفصیل به د چنګېز خان د حالاتو په شرح کي راسي (د دې مخ مخامخ ۵۹ لمبر شجرې ته دي رجوع وسي).

## مأخذونه:

طبقات ناصري، ابن اثیر، معجم الانساب، د پاول هورن د ایران مختصر تاریخ، تاریخ ګزیده، جهان کشای جویني، سیره جلال الدین منکبرني، نفثة المصدور، د بارتولد ترکستان، د عباس اقبال تاریخ مغول.

لومړۍ برخه

۵۹ - لمبر

# خوارزمشاهیان (۳۰۰ - ۶۲۸هـ)

## لومړۍ کورنۍ

محمد (۳۰۰ هـ حدود)

۱ - ابو سعید احمد × (۳۴۰هـ حدود) (سکه لري - ۳۶۶هـ)

۲ - ابو عبدالله محمد (مړ ۳۸۵هـ)

۳ - مامون ۳۸۵هـ (پخوا د سامانیانو عامل وو)

۴ - ابو الحسن علی × (۳۸۷هـ) (حره د سبکتګین لور ئې ماینه وه)

۵ - ابو العباس مامون (۳۹۰هـ)

لور (د سلطان محمود ماینه)

۶ - ابو الحارث محمد (سلطان محمود دی عزل کی او په ۴۰۸هـ ئې التونتاش وګماره) ← (معجم الانساب زامباور: ۲/ ۳۱۶)

## دوهمه کورنۍ

۱ - التونتاش د سلطان محمود لوی حاجب - ۴۰۸هـ

۲ - هارون ۴۲۳هـ (د ده استقلال ۴۲۵هـ)

۳ - اسمعیل خندان (۴۲۵هـ)

۴ - شاه ملک (د سلطان مسعود له خوا د جند والي ۴۲۹هـ د سلجوقیانو په جنګ کي ومړ - ۴۳۴هـ)

ماخذ: د ابن اثیر په حواله د زمباور معجم ۲/ ۳۱۶، طبقات ناصری، جستي، سخاو.

دوهمه برخه

## دریمه خوارزمشاهي کورنۍ (۴۷۰ - ۶۲۸هـ)

۵۹ - لمبر

۱ - انوشتګین غرچه یا غرشاه (۴۷۰ - ۴۹۱هـ) په خپوه کي د ملکشاه سلجوقي والي وو

۲ - قطب الدین محمد (۴۹۱ - ۵۲۲هـ)

فلان؟

۳ - آتسز (۵۲۲ - ۵۵۱هـ)

لور (د سلیمان بن محمد سلجوقي ۵۴۹هـ ماینه)

سلیمان

۴ - ایل ارسلان (۵۵۱ - ۵۶۸هـ)

۵ - سلطان شاه محمود (۵۶۸هـ - مړ ۵۸۹هـ)

۶ - علاءالدین تکش × (۵۶۸ - ۵۹۶هـ)

علي شیر (په اوزګند کې سکه ووهله - ۶۱۰هـ)

یونس خان (ری)

۷ - علاءالدین محمد (۵۹۶ - ۶۱۷هـ) (راتلونکی مخ وګورئ)

تاج الدین علیشاه (کردستان)

ناصرالدین ملکشاه (خراسان) (مړ - ۵۹۳هـ)

ارسلانشاه

هندوخان

# دریمه خوارزمشاهي کورنۍ (۴۷۰ - ۶۲۸هـ)

علاءالدین محمد (۵۹۶ - ۶۱۷هـ)

- خان ملک (د عثمان ایلک مایینه)
- اغول ملک (لور)
- ۸ - جلال الدین منکبرنی (۶۱۷ - ۶۲۸هـ)
- آق سلطان
- غیاث الدین (شېرشاه) مقتول: ۶۲۷هـ په کرمان کي
- کوجاتګین
- یحیی خورشاه
- رکن الدین (غورشانستی) غورسانجي (مړ: ۶۱۹هـ)
- قطب الدین (ازلاغ - ارزلو؟)

ماخذونه: ابن اثیر، طبقات ناصري، دول اسلامیه: ۲۵۹، زمباور: ۲/ ۳۱۸

څلورمه برخه:

# د خوارزمشاهانو وروستۍ ماته او د چنګېز راوتل

(٦١٦ – ٦۴٠هـ)

د چنګېز د رواتلو په وخت کي د غزنوي او غوري کورنيو مرکزي واکمني له منځه تللې وه او د هيواد د شمالي سيمو واک د خوارزمشاهي دربار په لاس کي وو. په سيستان کي د نيمروز محلي ملکانو کمزوري حکومت چلاوه. د افغانستان د لمر خاته برخي هم د هغو اميرانو په لاس کي وې، چي د غور سلاطينو کښېنولي ول او په هرات کي د کرت حکمرانانو حکومت کاوه (ال کورت).

په داسي حال کي چي د هيواد قوتونه سره تيت او پاشلي سوي ول، پر ودان افغانستان او د هغه پر مترقي او مدني ښارو باندي د آمو له ها خوا څخه د چنګېز دهشتناک يرغلونه شروع سول او د (٦٠٠هـ = ١٢٠٣ م) په شاوخوا کي د چنګېز خان (تموچن د يسوکای بهادر زوی چي د قيات په ټبر کي په ۵۴۹ هـ = ١١۵۴ م زېږېدلی وو) تر فرمان لاندي د منګوليا په قراقروم کي يوه لويه امپراطوري جوړه سوه، چي حدود ئې د چين له سينده تر پاميره رسېده او د سلو مليونو په شاوخوا کي د منګوليا د ټولو طايفو وړي او وحشي خلک د چنګېز تر کلکي اداري او خونړي تېغ لاندي د ده فرمان ته منتظر ول.

دا وخت سلطان علاؤالدين محمد خوارزمشاه له اورګنجه پر ماوراءالنهر او د افغانستان او ايران پر يوې برخي حکومت کاوه. ده د سمرقند د ترکانو او قراخطائيانو دولت چي د خوارزمي دولت او چنګېزي قواوو تر منځ حائل وو، له منځه يووی او هم ئې د افغانستان غوريان چي د ده ملاتړ ول او له غزنه او د افغانستان له نورو سيمو ئې د وحشي غزانو په پوپنا کولو کي امتحان ورکړی وو، له پښو واچول او د بغداد د خليفه الناصرالدين الله (۵۷۵ – ٦٢٢ هـ) سره ئې هم اختلاف درلود او د هغه نوم ئې له خطبې او سکې څخه ايسته کړی وو او نوموړي خليفه د خپلو ليکنو له لاري چنګېز خان د

خوارزم پر دولت یرغل ته پاڅاوه او پخپله د سلطان درباریانو هم د چنګېز سره مکاتبه درلوده او د هیواد په چارو کي هم د سلطان د مور ترکان خاتون له لاسه ګډوډۍ او وراني راغلی وو. تر دې حده چي د دې ستمګاري ملکې له لاسه د هیواد ټول مشران پزي ته راغلي ول او ګواکي له دننه او دباندي د خوارزمشاهي دولت د نړېدو سببونه راغونډ سوي ول.

د چنګېز امپراطوري د خوارزمشاهي دولت سره په (٦١٦ هـ – ۱۲۱۹ م) کال ونښته او په همدغه کال کي وو چي سلطان خوارزمشاه د تاتار تجارتي کاروان تالا کی او د چنګېز سفیر ئې وواژه. چنګېز له ډېره قهره د دوو سوو زرو تنو لښکر سره د طوفاني سېلاب په څېر د خوارزمشاه پر هیواد راوخوت او تر شا ئې یو ملیون نور ملاتړ هم درلود. د ده لښکر تر سیحون راپوري ووت ا و سلطان محمد خوارزمشاه ئې مات کی ا و په یو داسي زور او وحشت چي په تاریخ کي ئې ساری نه وو لیدل سوی پر اسلامي ودانو ښارونو لکه بخارا او سمرقند او بناکت او خجند او د ماوراء النهر پر نورو ښارونو یرغل وکی او دا ښارونه ئې په خورا دهشت وران او خلک ئې ووژل (٦١٧ هـ = ۱۲۲۰م).

خوارزمشاه چي د چنګېز له زوروړو حملو څخه تر جیحون راپوریوتلی او په بلخ کي ناست وو د ماوراءالنهر د ورانۍ د خبر تر اورېدلو وروسته مخامخ طوس ته وتښتېد او دا ښارونه ئې دې لاندي امیرانو ته وسپارل چي د چنګېز مخه ونیسي:

ترمذ ئې د سیستان د لښکر مشر امیر زنګي ابي حفص ته او د تخارستان ولخ ئې امیر سرهنګ سام ته، د بامیان کلا ئې امیر عمر باوردي، پېښور او غزنی ئې ملک اختیارالدین خرپوست ته ، د غور سنګه ئې ملک حسام الدین سرزراد د غور نور ي کلاوي ئې ملک قطب الدین حسن، د هرات کالیون ئې اختیارالملک دولت یار، هرات ئې شمس الدین جوزجاني، د غرجستان فیوار ئې پهلوان اصیل الدین نشاپوري، د تالقان نصرت کوه ئې د الغ خان خدمتګارانو ته، د غرجستان کلاوي ئې عمید پهلوان شروان، د فېروز کوه ښار ئې مبارزالدین سبزواري ته او د تولک کلا ئې امیر حبشي نېزه ور ته وسپارل.

خو د چنګېز لښکري د جبه او سبتای او تغاجار په مشرۍ د (٦١٧هـ = ۱۲۲۰م) کال په لومړۍ خور (ربیع الاول) کي له جیحونه راپوریوتلې او د بلخ تر نیولو وروسته

ئې په خوارزمشاه پسې د هرات لاره واخیسته او د هرات حکمران امین ملک ئې کلابند کی او تر پوشنجه پورې ئې خلک قتل عام کړل او په ډېرې چټکۍ ئې ځانونه طوس ته ورسول، خو محمد خوارزمشاه په ډېره نامرادۍ د آبسکون جزیزې ته وتښتېد او د (٦۱۷ ه) کال د کوچني اختر (شوال) په میاشت په داسې حال کې چې کفن ئې نه درلود مړ سو او چنگېز خان د هغه هڅوکي وسوځل. تر هغه وروسته د چنګېز لښکر د خوارزمشاهیانو مرکز یعنې د (جرجانیه) د اورګنج ښار چې د اسیا خورا ودان ښار وو او د علم او پوهې او ادب زانګو وه وران کی او خلک ئې له یوه سره ووژل (٦۱۸ه = ۱۲۲۱م کال صفرې میاشت) او د محمد خوارزمشاه مور د هغه کهاله د نورو غړو سره د چنګېز د لښکر په لاس کې بندیان سول او د محمد خوارزمشاه زړور زوی جلال الدین د نشاپور او زوزن له لارې بست ته راغی او ځان ئې هرات ته ورساوه له هغې خوا پخپله چنګېز د آمو غاړې ترمذ ته راغی او تر یوولسو ورځو جګړې وروسته ئې د هغه ښار خلک قتل عام کړل او د بلخ خلک ئې هم تر تېره تېغ تېر کړل او زوی ئې (تولی) د خراسان ښارونه له مرو او نسا څخه نیولې تر هرات او فېروز کوه او استیه او تولک پورې ونیول او وران ئې کړل او یوازې د مرو په لوی ښار کې ئې تر دوه ملیونه زیات خلک ووژل (٦۱۸ه = ۱۲۲۱م). د هرات خلکو چې د شمس الدین جوزجاني په مشرۍ د تولی سره جګړه کوله تر اوو ورځو کلابندۍ وروسته تسلیم او په سوو زره تنه ئې ووژل سول او یوازې سل زره نجونې او پېغلې ئې بندیانې سوې. تر هغه وروسته چنګېزیانو د جوزجان ولایت او اندخوی او میمنه او فاریاب تر تالقانه پورې ونیول او د تالقان د نصرت کوه کلا لس میاشتې کلابنده وه او ټولو اوسېدونکو ئې تر وروستۍ سوګلۍ پورې مقاومت وکی او ګرده ووژل سول. تر هغه وروسته ئې بیا پر بامیان یرغل وکی خو د بامیان په جګړه کې چې د چغنای زوی موتوچن ووژل سو، چنګېز له ډېره درده پر انسانانو سربېره د بامیان ښاروي هم ووژل او هغه ښار ئې ماوبالیغ (بدمرغه ودانۍ) وباله او داسې ئې له بېخه ګډوډ کی چې بیا څوک پکښې و نه اوسېدل. تر هغه وروسته ئې د تخارستان ښارونه ونیول (٦۱۸ه = ۱۲۲۱م). په دې وخت کې جلال الدین منکبرني خوارزمشاه له هراته غزني ته راغی او د افغانستان وطني مشران لکه امین ملک له خپل دېرشو زرو تنو لښکر سره او سیف الدین اغراق او اعظم ملک او مظفر ملک افغاني مشران هم د ده سره یو ځای سول او پر پروان (د کابل شمالي ته په اوسني جبل السراج

کي) ئې د چنګېز ۴۵ زرو لښکريانو سره، چې د قوتون په مشرۍ جنګېدل جګړه وکړه او تر دوو ورځو جګړې وروسته ئې چنګېزي لښکرو ته سخته ماته ورکړه او چنګېزيانو د تخارستان د ولخ کلا پرېښووه او وتښتېدل خو د جلال الدين د بريالي لښکر ملکان د يو بل په غاړه کي سره ولوېدل او پېښور ته وګرزېدل او هلته ئې تر درو مياشتو پوري يو بل وژل، څو چي چنګېز خان د پروان د ماتي د کسات اخيستلو له پاره د تالقان نصرت کوه تر نيولو وروسته د باميان له لاري پر غزني يرغل وکی او جلال الدين له غزني څخه ووت د ګردېز خوا ته پر شا سو. چنګېز غزني ته راغی او وروسته تر هغه چي هلته ئې خپل حاکم کښېناوه د سند خوا ته پر مخ ولاړ او (د اټک جنوبي خوا ته) د نېلاب پر ګودر ئې جلال الدين چي تر سينده پوريووت ګير کی. اته کلن زوی ئې ور وواژه. جلال الدين خپله مور او ماندينه او د حرم نور غړي په سيند کي ډوب کړل او پخپله د اوو سوو تنو سره د چنګېز د لښکر په مقابل کي جنګېده، خو په پای کي ئې خپل ځان پر يوه آس باندي سپور د سيند تر اوبو پوري يوست. چنګېز د سلطان پاته کسان او خپلوان ووژل او درې مياشتي ئې په پېښور او د پنجاب پر وېش خلک وژل او د سيند پر راسته غاړه ئې تر چتراله يرغل وکی او تر هغه وروسته ئې دوه زامن اوګدای او چغتای په هغو سيمو کي پرېښوول او پخپله د کابل او باميان له لاري د جيحون غاړي ته ستون سو (٦١٨ په شوال) او درې کاله وروسته په (٦٢١ هـ) کال تر لي نوين د چنګېز د لښکر سردار ناصر الدين قباچه ئې په ملتان کي څلوېښت ورځي محاصره کی او بېرته ناکامه راوګرزېد.

د جلال الدين راوتل په ټول خراسان کي د چنګېز پر خلاف خلکو ته جرئت ورکی. په مرو او هرات کي او نشاپور کي د ده کوټوالانو او حکمرانانو ته پورته سول، خو د چنګېز لښکر د مرو څخه تش ډاګ جوړ کی او هراتيان ئې چي د ملک مبارزالدين سبزواري په سالاري جنګېدل ټول د (٦١٩ هـ) کال په وروستۍ خور (جمادي الاخري) ووژل او ښار ئې د چنګېز د لښکرو د افسر (ايلچيګدای نويان) په امر وران کئ او په (٦٢٠ هـ) کي ئې د غرجستاني امير محمد چي د مور له خوا د غور ملکانو ته منسوب وو او د اشيار په کلا کي ئې مقاومت کاوه وواژه.

او په غزني کي هم اوګدای بې له کسبګرانو نور ټول خلک بيابان ته وکوچول او هلته ئې تر تېغ تېر کړل او حتی فېروز کوه ئې په (٦١٩ هـ) کال داسي وران کی چي اوس ئې د ځای ټاکل هم مشکل دي. همدا شان چغتای د سند او مکران او کرمان (په فتحينو

د کورم په ناوه کي) ولایتونه چور او چپاو او ویران کړل. څنګه چي چنګېز د سند د سیند پر غاړه د اوبو او هوا د خرابۍ په وجه ناروغه سو، ځکه نو دی او زامن ئې په (٦١٩هـ =۱۲۲۲م) کال ماوراء النهر ته ستانه سول او په (٦٢١هـ = ۱۲۲۴م) کال د خپلي کورنۍ اصلي چونۍ (اردوګاه) ته ورسېد او چنګېز هغه مدهشه بلا د (٦٢۴هـ = ۱۲۲٦م) کال په روژه کي د (۷۲) کالو په عمر د تنګت په صحرا کي مړ سو او یو عالم خلک ئې له خپل وحشت او عذاب څخه ارام کړل. (د چنګېز د فتوحاتو شرح او په نوره دنیا کي د ده ورانی د افغانستان په تاریخ اړه نه لري).

خو جلال الدین خوارزمشاه هغه ننګیالی مېړه چي په ډېري بې وسۍ کي ئې هم خپل همت له لاسه ورنه کی څه موده ئې د سیند چپه خوا ته په ځنګلو کي تېره کړه او ډېر ژر ئې یوه ډله پر ځان راټوله کړه او د سند د حکمران ناصرالدین قباچه سره ئې په رقابت لاس پوري کی او د ډهلي له لوی پاچا سلطان شمس الدین ایلتتمش (٦٠٧هـ – ٦٣٣هـ) څخه ئې مرسته وغوښتله خو سلطان په دې پلمه چي د ډهلي هوا خراپه ده دی و نه مانه او جلال الدین په لاهور کي د هند د یوه راجا لور وکړه او د هغه په ملاتړ ئې ناصر الدین قباچه ته سخته ماته ورکړه او ډېره ولجه ئې په لاس ورغله او د تهته او دېبل تر ښاره پر مخ ولاړ، مګر سلطان شمس الدین ایلتتمش د جلال الدین د ورځ په ورځ زیاتېدونکي اتلتوب (نبوغ) څخه وبېرېد او دېرش زره تنه لښکر ئې د ده د مخنیوي له پاره واستول.

که څه هم د جلال الدین د لښکر یو مشر د ډهلي لښکر مات کی خو جلال الدین د څلورو زرو ملګرو سره په (٦٢١هـ = ۱۲۲٦م) کال د مکران له لاري د ایران کرمان ته ولاړ او تر تفلیس او اخلاط او ګرجستان او ارمنستان پوري ئې ونیول او په (٦٢٨هـ) کال په میافارقین کي د کردانو له لاسه ووژل سو او د ده د مړیني سره د خوارزمشاهي د کهول وروستنۍ ډېوه مړه سوه (د جلال الدین منکبرني د فتوحاتو او احوال نوره شرح د افغانستان په تاریخ اړه نه لري).

د چنګېز لښکریانو په جلال الدین پسي د ایران تر پایه وځغستل او په خراسان کي د بقیة السیف ښارو او ستمدیده خلک د ساتني له پاره لږ عسکرو ته اړ ول او په غزني او بامیان او غور کي د چنګېز له خوا د (٦٢٢هـ له شاوخوا څخه بیا تر ٦٣٣هـ = ۱۲۳٦م) پوري سیف الدین حسن قرلغ حکمران وو او همدې سړي په (٦٢٢ هـ) کال د بغداد د خلیفه الظاهر په نامه سکه وهلې ده. په (٦٢٦هـ = ۱۲۳۱ م) کال چي اوګتای قاآن پر

تخت کښېنوست، د خراسان خلک د قراچه ویغان سنقور په مشرۍ د دوی کوټوالانو او حاکمانو ته پورته سول . اوګتای په بادغیس کي له اوسېدونکو لښکریانو څخه یوه برخه د طایر بهادر په مشرۍ ور واستول او قراچه ئې تر دوو کالو پوري د سیستان د ارګ په کلا کي کلابند وساته او داسي شورشونه په ټول افغانستان کي پیدا سول ځکه نو تاتاریانو دوهم وار د غور او هرات او غرجستان او سیستان او کالیون او فوار او تولک او سیفرود او خیسار او غزنه په ښارو او جنګي کلاوو کي د هغو خلکو په وژلو لاس پوري کی چي د دوی له تېغه ژوندي پاته سوي ول او هم ئې بیا هغه ودانۍ چي د دوی له ورانۍ څخه خوندي پاته وې وراني کړې او تر هغه وروسته جنتمور د خراسان په حکمدارۍ وګمارل سو (۶۳۵هـ =۱۲۳۷م) او ده بیا ملک بهاوالدین د خراسان امیر وټاکه او تر هغه وروسته د (۶۳۵هـ = ۱۲۳۷م) په شاوخوا کي نو سال او د (۶۳۸هـ =۱۲۴۰م) په شاوخوا کي ګرګوزو او له (۶۴۱هـ تر ۶۵۴هـ = ۱۲۴۲ – ۱۲۵۶م) پوري امیر ارغون د چنګېزیانو له درباره د خراسان حکمرانان ول او د کرت ملکانو د دوی تر اطاعت لاندي پر هرات او فېروزکوه او غرجستان (د افغانستان پر غربي مهمو برخو) باندي حکومت کاوه او دا بلا وهلي ښارونه ئې د تاتار له بلا څخه ساتل. لکه د (۶۴۳هـ = ۱۲۴۵م) په شاوخوا کي چي هولاګو (۶۳۹هـ – ۶۴۹هـ) د چنګېز نمسی خراسان ته راغی. امیر ارغون د هرات د پاچا ملک شمس الدین کرت په ملګرۍ د هغه حضور ته د اطاعت منلو په توګه ورغلل.

چغتائیانو چي په ماوراءالنهر کي اوسېدل د افغانستان ولایتونه: تخارستان، بلخ، میمنه، جوزجان، غرجستان، غور، هرات، بادغیس، سیستان، زابل تر غزنه او کابل پوري مستقیماً د تېغ په زور او یا بالواسطه اداره کوله. دوی په دېرش کاله کي هغه لوی ښارونه چي په اسیا کي د مدنیت او ثقافت او اسلامي علومو مهم مرکزونه ول وران کړل. خلک ئې بېرحمانه له یوه سره ووژل او په زرو لوېي کتابخانې ئې وسوځولې، ځکه نو د ثقافت او مدنیت او صنایعو او علومو او تجارت او ادب بازار سوړ سو. خراسان په جغرافي مفهوم د سند تر غاړو پوري یوه هولناکه کنډواله سوه او د مؤرخینو په اتفاق د چنګېز فاجعه د تاریخ له خورا مدهشو او خورا سوزناکو فاجعو څخه وه چي د ابن اثیر په قول ټولو خلکو ته ئې زیان ورسېد او څنګه چي د چنګېزیانو اردو هر ځای ته رسېدلی او د لښکر مشران ئې د خلکو باداران ول، ځکه نو د افغانستان د خلکو په

مدنيت کي چي تر هغه وخته ئې د لرغوني آريايي او اسلامي عربي مدنيتو يوه ګډه بڼه درلوده او ساماني او غزنوي او غوري لوی پاچهانو پاللی وو يو بل نوی عنصر هم زيات سو چي هغه ته (مغولي عنصر) وايو. مغولي آدابو د هغو د ژبي او لغاتو سره په دري ژبه کي چي رسمي او درباري ژبه وه اغېزه وکړه. د ژوندون ډول خويونه، اخلاق او کالي هم د دوی په تقليد واړول سول.

(د هغو محلي ملکانو يادونه به په راتلونکي مبحث کي وسي چي د چنګېزيانو په دربار کي په آزاده توګه او يا اطاعت له لاري اوسېدل).

سره له دې چي په خراسان کي د چنګېزيانو ګډوډيو او وينو تويولو عالمان او مدرسې او کتب خانې له منځه يووړې خو بيا هم وينو چي په دغه دوره کي داسي شاعران او عالمان ول چي اسلامي ثقافت ئې د خراساني اجتماعي ممېزاتو سره ساته او ځيني هم د وحشت او سفاکۍ له دې ډګره د هند هيواد او د روم ښارو ته وتښتېدل.

په خراسان کي د مغولي دورې عالمان او شاعران دا دي: حضرت مولوي بلخي (د مثنوي خاوند)، شيخ نجم الدين دايه (د مرصادالعباد ښښتن)، خواجه نصير الدين طوسي (نامتو حاکم)، معين الدين جويني (د نګارستان خاوند)، شيخ عطار نيشاپوري (نامتو صوفي او د تذکرة الاوليا ښښتن)، پور بهاء جامي (شاعر)، امامي هروي (شاعر)، امير حسيني غوري (د نزهة الارواح خاوند)، ابن يمين فريومدي جويني (شاعر)، سليمان ماکو (د پښتو تذکرۀ اوليا – ٦١٦ ه په شاو خوا کي).

د چنګېزيانو په وخت کي اداري او سياسي تشکيلات او اصطلاحات له هغه شکله چي د خلفاوو او غزنويانو او غوريانو په وخت کي ول په بل ترتيب واړول سول. په دې معنا چي په ټولو مفتوحه هيوادو کي د چنګېز لښکري سپه سالارانو د ياسا په توګه يعني د چنګېزي احکامو او قوانينو پر اساس په ډېر شدت حکم کاوه. په دې ياسا کي د لښکرکښيو او د ښارو د ورانولو او ملک د مصالحو او د شورۍ د ترتيب او د جزاګانو د ډول او د تاتاريانو د ژوند د دود او دستور قواعد درج ول، چي هغه ته بې د آسماني کتاب په څېر په درنه سترګه کتل او توره (د قومي آدابو او د نيکه ګانو دساتيرو مجموعه) ئې هم ورته ويل. همدا راز د فرانسوي مستشرق کانرمر په قول (د جامع التواريخ رشيدي په مقدمه کي) چنګېزي پاچهانو هريوه اسلامي مشاوران د حاجب په عنوان هم درلودل، چي د هغو په واسطه او د قاضي القضات په حکم ئې د مسلمانانو په

منځ کي اسلامي احکام او آداب ساتل او د دوی په منځ کي د (بخشي و توين) په نامه کشیشان هم ول، چي د کوډو او سحر مخنیوی بې کاوه او هم د دوی تر منځ اویغوري لیک دود رسم الخط رواج درلود. د مغولي دورې په کاردارانو کي دا رتبې وې: قورچي (وسله وال)، چربي (د وره ساتندوی دربان)، داروغه (د خاصه قراول آمر)، کشیکچي (گارډ)، بهادر (مبارز).

په دربار کي دا لويان ول: نوین یا نویان (شهزاده) او الغ نویان (لوی شهزاده) ترخان (عسکر افسر) پخپله ئې پاچا ته خان او قاآن ویل او د دوی لښکر په لس زري (نومان) وېشل سوي ول، چي هرو زرو تنو ته ئې (هزاره) او سلو تنو ته ئې (صده) ویل او د جگړې په ډگر کي په جرنغار ( میسره) او برنغار (میمنه) او قول (قلب چي خان دریځ وو) او چنداول (ساقه) او هراول (مقدمه) او قراول (کشاف) باندي وېشل کېده.

عسکري بنه، ارزاق او ښځي ئې (اغروق) بللې. پر لویو لارو ئې د مسافرانو له پاره سرایونه (یام) ودان کړي ول، چي په هر یام کي دولتي چاپار آسان د (الاغ) په نامه موجود ول او د هغو په واسطه ئې شاهي مخابرات او مواصلات اجرا کول.

قضایي محکمې ئې (یرغو) او قاضي ئې (یرغوچي) او د محکمې د حکم سند ئې (موچلکا) بلل، حشر (اشر) یعني عسکري او اجباري کار او خدمت ئې هم په خلکو کاوه. د باچا مهر ساتونکي ته ئې (تمغاچي) او مهر ته ئې (تمغا) ویل، هر یرلیغ (فرمان) چي به دا مهر پر باندي وو، واجب الاطاعه گڼل کېده. دا فرمانونه د ایلچي په لاس استول کېده. زیات وختونه به د سردارانو شوری چي (توریلتای) نومېده جوړېده. د لښکر چوڼۍ (یورت یا اردو) به په ییلاق (صیفیه) او قشلاق (شتائیه) کي ول او افسرانو ته ئې (یورتچي) ویل. په دې عصر کي د چین د نقاشۍ فن په منځنۍ آسیا کي ښه اغېزه وکړه او دا صنعت ډېر پر مخ ولاړ. همدا رنگه کاشي کارۍ او معمارۍ او ورېښمني نساجۍ او زرینو جامو او مرصع او زربفت او د غالیو او الیچي اودلو هم پرمختگ وکی او چین او مغول او د هند تجارتي روابط د خراسان له لاري د اېران او عراق او روم سره زیات سول او مشهوره ورېښمینه لار چي د ورېښمو د تجارت په مناسبت په دې نامه یاده سوې ده، له چین څخه خراسان ته او له هغه ځایه لیرو غربي هیوادو ته تله او د پېښور او کابل او بلخ یا کندهار او هرات او سیستان له لاري د هند او سند له لاري د چنگېز د امپراطورۍ تجارتي روابط پراخ کړي ول. دا ځکه چي مغولي

خانان هم د خراسان له لاري اروپا ته تله، خو دا تجارتي پراختيا هغه وخت منځ ته راغله چي چنګېز مړ سو او څه نه څه د ده د اولادو او نمسو شدت او وحشت لږ سو. چنګېزي پاچهانو په دې کلو کي پر افغانستان حکومت کړی دئ:

۱. *چنګېز (په افغانستان کي) (٦١٦ – ٦١٨ ھ)
۲. *اوګدای د چنګېز زوی (٦١٨ ھ)
۳. *چغتای د چنګېز زوی (٦١٨ – ٦٣٩ ھ)
۴. *تولی د چنګېز زوی (٦٢٠ھ په شاوخوا کي)
۵. *قراهولاګو د تولوی زوی او د چنګېز نمسی (٦٣٩ – ٦۴٩ھ)
۶. *ارغون د اباقا زوی او د هولاکو نمسی (٦۴٣ ھ)

**مأخذونه:**

طبقات ناصري – جامع التواريخ رشيدي – جهانکشای جويني – تاريخ وصاف – ابن ثمر – دول اسلاميه – د پاول هورن تاريخ اېران – د عباس اقبال از چنګېز تا تېمور – حبيب السير – تاريخ ګزيده – د محمد نسوي سيرة جلال الدين – تاريخ سند – د براون تاريخ ادبيات اېران – د پښتو ادبياتو تاريخ: ۲ – روضة الصفا – د ابن عبري مختصر الدول.

# د چنګېزیانو په وخت کې

## د کرت اولاده او افغاني امیران



(۶۰۰ - ۷۸۳هـ)

د سلطان غیاث الدین محمد سام غوري په وخت کي (۵۵۸ - ۵۹۹هـ) دوه ورونه یو تاج الدین عثماني مرغني او بل عزالدین عمر مرغني د غور د سلطان د اکا زامن د دربار مخور کسان ول او په اسلامي دایرة المعارف کي د لانکورث دیمز په قول دوی د هغه امیر محمد غرجستاني له اولادې څخه دي، چي په (۶۲۰هـ = ۱۲۲۳م) کال د اشیار په کلا کي د مغلو په لاس وژل سوي ول. ( خو دا قول غور غواړي) عزالدین د سلطان وزیر وو او د هرات سیمه ده ته سپارل سوې وه. ده غرجستان حسام الدین علي عمر مرغني او خیسار ئې تاج الدین عثمان ته سپارلي ول چي دې وروستي د سر جاندار منصب درلود او د عزالدین لور عایشه خاتون د سیستان د ملک ناصرالدین عثمان حرب ماندینه وه (د ۶۱۲هـ = ۱۲۱۵م). دا دوه ورونه د ملک ابوبکر کرت کړوسیان ول، چي د غور د ملکانو په وخت کي ئې شهرت درلود او ملک رکن الدین محمد د تاج الدین عثمان زوی او د خیسار کوټوال د سلطان غیاث الدین محمود (۵۹۹ - ۶۰۷هـ) لور ئې کړې وه او نامتو مؤرخ منهاج سراج د ده له درباریانو څخه وو. دی د چنګېز د ایلچیانو سره په نرمۍ چلېده او چي د چنګېز له خوا د خیسار او غور او د هغې سیمي نور تابعه ښارونه ده ته وسپارل سول نو خپل خوریي ملک شمس الدین محمد مهین ئې خپل ولیعهد او د چنګېزخان مصاحب وټاکه او په دې سبب د چنګېزیانو په دربار کي مقرب او د اعتبار خاوند سو او چي په (۶۴۳هـ = ۱۲۴۵م ) کال رکن الدین مړ سو نو شمس الدین محمد مهین ئې پر ځای کښېنوست. ده په (۶۴۴هـ) کال د سالین نوین سره چي د چنګېزیانو سپه سالار وو پر ملتان حمله وکړه او د لاهور او ملتان ملکان ئې د ځان تابع کړل او د لاهور په حکمرانۍ وګمارل سو خو چنګېزیان د مسلمانانو د طرفدارۍ په سبب

وربانديِ په ښېښم سول. ده تاتاري حکمران طاير بهادر ته پناه يووړه او (د کندهار په شاوخواکي) د تګين آباد حکمران سو او ځنګه چي د افغانستان (دا نوم په تاريخ کي لومړی وار له همدې وخته ياد سوی- د سيفي تاريخ هرات ۱۶۳ مخ) د خلکو په حمايت تورن وو، ځکه نو له هغه ځايه د منګو خان حضور ته ورغی (۶۴۵ هـ = ۱۲۴۷م) او منګو خان د ده د تېر کهول د قدردانۍ له مخي د ټول هرات او جام او باخرز او کوسويه او فوشنج او تولک او غور او فېروز کوه غرجستان او مرغاب او فارياب او مرجق د آمو تر سينده او فراه او سجستان او تګين آباد او کابل او تيراه او بست او افغانستان د سند تر سينده ده ته پرېښوول او د اوسني ټول افغانستان د سند تر غاړو او خراسان پوري خپلواک حکمران وګاڼه سو او د (۶۴۶هـ = ۱۲۴۸م) په شاوخوا کي ئې د خپل دربار خپلواک سرداران مامور کړل، چي د غور او هرات حکمران اشرف الدين بيتکچی ئې چي پر خلکو ئې ظلم کاوه ونيو او د هغه د تابعينو سره ئې وواژه. تر هغه وروسته په (۶۴۷هـ) کال ملک فخرالدين د تالقان حکمران او ملک شمس الدين د اسفزار حکمران او محمد عوض د خواف حکمران او ملک شمس الدين (په ميمنه کي) د ګرزيوان حکمران او ملک عزالدين او حسام الدين او شمس الدين د تولک حکمرانان او ملک علي مسعود ازابی او ملک تاج الدين د فراه حکمرانان او هم له سيستانه ملک علي مومن او نصرالدين نيهي د شمس الدين مهين حضور ته راغلل او د اطاعت غاړه ئې کښېښووه خو د غرجستان ملک سيف الدين غاړه کښې نه ښووه او رانغی، ځکه نو ملک مهين د خپل لښکر سرداران غرجستان ته واستول او سيف الدين ئې ونيو او د هراته فراه ته راغی او د سيستان لښکر ئې هم له ځانه سره واخيست . د خيسار کلا ته ولاړ او له هغه ځايه د غور د لښکر سره تګين آباد ته رهي سو او غوښته ئې چي افغانستان ونيسي (په هغه وخت کي د افغانستان کلمه د کندهار او غزني تر منځ بيا د سند تر سينده اطلاقېدله) د دې سيمو لوی اميران دا ول:

۱- فخرالدولة والدين ملک شاهنشاه لوی افغاني حکمران چي له خپل پايتخت مستنګ څخه ئې (چي په اوسني بلوچستان کي وو) ( د هغه وخت) پر ټول افغانستان حکومت کاوه او د مغولو ماليه ئې منلې نه وه.

۲- ملک ميرانشاه د شاهنشاه زوی.

۳- ملک بهرام شاه د شاهنشاه زوی.

۴- ملک تاج الدين هرموز (د کندهار شمال ته) په تيري کي.
۵- حسام الدين جاول په زاول کي
٦- پهلوان جلم
۷- سندان افغان
۸ -احمد توری
۹- مهتر کيورا
۱۰- مهتر سيورا
۱۱- رانا کنجر
۱۲- جمال الدين بهروز کهيرائي.

افغاني امير شهنشاه چي تر اوسه په مستنگ کي خپلواک حکومت درلود، ملک ته پيشنهاد وکی، چي کالني ماليات دي وتاکي، چي ور وائيږ ستوي او د ده وطن ته دي لښکر نه راولي خو شمس الدين د مستنگ تر وېشه پر مخ ولاړ (۶۵۱هـ - ۱۲۵۳م) ملک تاج الدين د مېرانشاه (د افغانستان له خاوري څخه د ۵۰ پرسخه مځکي د حکمران) ورور او نور افغاني ملکان هم ده ته تسليم سول او شمس الدين په (۶۵۲ هـ) کال مستنگ محاصره کی مگر امير شهنشاه او بهرام شاه او ميراشاه د پنځو زرو جگړونو سره د خاسک کلا ته پناه يووړه او تر اوو جگړو او څلورو کلا بنديو وروسته شهنشاه او بهرام شاه د نوي تنو خپلوانو سره ووژل سو خو ميرانشاه په ډېره مېړانه د شمس الدين د لښکر پر زړه (قلب) حمله وکړه، تر ووت او سيستان ته ئې پناه يووړه. څو چي په (۶۵۸هـ = ۱۲۵۹م) کال بيا مستنگ ته راغی او د شمس الدين مهين د لښکريانو سره په يوه جگړه کي ووژل سو .

د افغانانو بل مرکز د تېري حصار وو، چي اوس هم د کندهار شمال ته څلوېښت ميله ليري په همدې نامه سته. د دې حصار امير المار افغان وو چي د طاير بهادر او قرانوين او سالي نوين لښکري ئې څو واره مکرري ماتي کړي وې او د چنگېزيانو اطاعت ته ئې غاړه نه وه ايښې. په دې وخت کي چي شمس الدين مستنگ ونيو د تېري پر حصار ئې هم يرغل وکی او المار ئې تر سختي جگړې وروسته وواژه او حصار ئې امير حسام الدين جاول (د زاول مرادف) ته وسپاره (د ۱۲۵۵م صفره). همدا رنگه شعيب نامي پښتون له نوميالیو افغانانو څخه وو. د (۶۵۳هـ) کال د برات د مياشتي په

لومړيو ورځو کي له کشميره راوګرځېد. د تګين آباد په شاوخوا کي ئې د آل کرت پر حکمران حمله وکړه خو شمس الدين مهين له خيساره ژر راورسېد او دی ئې د کهيرا په حصار کي ووا ژه او تر هغه وروسته د شعيب د اکا زوی سندان افغان ته چي په خټه سوراني وو، متوجه سو او هغه ئې (د اوسني بلوچستان) د دوکی په حصار کي تر سختو جګړو وروسته د جګړې په ډګر کي ووا ژه. په دې جګړو کي خورا لوی جنګيالي کسان لکه د تولک ملک عزالدين او د بغني ملک تاج الدين او ملک تاج الدين کرت د آل کرت د لښکر په مشرتوب جنګېدل (۶۵۳هـ = ۱۲۵۶م کال منځ). په دې جګړې پسې لښکري مشرانو د سليمان د غره تر لمنو پوري په خپلو مخالفينو پسي ولاړل او چي په لاس ورتلل وژل ئې او د ساجي حصار ئې چي د سرحد د نورو پښتنو اميرانو مرکز وو، هم تر سختو جګړو وروسته ونيو (۵۵۵هـ) او شمس الدين په تګين آباد کي پهلوان مبارز الدين محمد نهي حکمران وټاکه او پخپله هرات ته ولاړ خو يو کال وروسته ئې چي د سيستان ملکانو د خپلو اکی ډغ پورته کاوه د مسعود زوی ملک علي ئې ووا ژه او د هغه وراره ئې ملک نصرالدين او ملک علاء الدين ئې مستنګ ته فرار کړل او سيستان ئې ټول ونيو او سيستانيان ئې بې وسلې کړل (۶۵۷هـ = ۱۲۵۸ م) او چي سرکښان ئې له پښو واچول نو په (۶۵۷هـ = ۱۲۵۸م) کال ئې د سند د رود پر غاړه د بهکر حصار محاصره کی او د لسو زرو دينارو او ډېرو ولجو تر اخيستو وروسته بېرته راوګرزېد او په دې توګه شمس الدين مهين ټول افغانستان د هرات تر مرکزيت لاندي راووست او تر غوريانو وروسته ئې د هيواد يووالي ته ښکاره بڼه ورکړه او سره له دې چي د دې وير ليدلي هيواد بدن د چنګېزيانو له لاسه ډېر مادي او معنوي ټپونه ليدلي ول خو بيا هم دې ننګيالي پاچا پر هغو تبو د سياسي يووالي د ملهم پټی کښېښووه.

په (۶۵۹هـ =۱۲۶۰م) کال چي ملک تاج الدين کرت ياغي سو او د امير هرموز تېري او امېر هوبو پښتنو سردارانو په ملاتړ د مستنګ کلا ته راغی نو د دوی سره د کرت د لښکر افسرانو ملک اختيارالدين د تولک او د محمدنهي او د بغني تاج الدين جګړې وکړې او شمس الدين تر (۶٦۵ هـ = ۱۲٦٦م) کال پوري اېران او نورو ځايو ته د چنګېزي پاچهانو په سفرو کي اخته پاته سو او په (۶٦٦هـ) کال ئې د افغانستان په خاوره کي تر تېرا پوري جنګونه وکړل او هغه خلک ئې د ځان تابع کړل او باج ئې پر کښېښووو. څنګه چي هرات په همدې وختو کي د چنګېزي شهزادګانو د جګړې ډګر وو

نو ځکه شمس الدین مهین انزوا غوره کړه او د خیسار په کلا کي ئې ځان گوښه وساته.
هغه وو چي شهزاده براق د آباقا له لښکر څخه ماته وکړه او بیا د پخوانیو ولایتو فرمان د
شمس الدین مهین په نامه صادر سو او دی ئې هرات ته راووست (۶۷۴هـ = ۱۲۷۵م)
خو څنگه چي چنگېزي شهزادگانو و نه غوښته چي پر خراسان باندي دي د خپل خراسان
یو غښتلی او مقتدر سړی حکومت وکي، په تېره بیا چي شمس الدین مهین خراسان او
افغانستان ته سیاسي وحدت هم ورکړی وو، ځکه نو له ده څخه وبېرېدل او اصفهان ته
ئې وغوښت او په تبرېز کي ئې په (۶۷۶هـ =۱۲۷۸م) مسموم کی او وې واژه.

تر شمس الدین مهین وروسته ئې زوی ملک رکن الدین (د شمس الدین کهین په
لقب) په (۶۷۷هـ) کال په هرات کي د پلار پر ځای کښېنوست او د هرات او خراسان په
وداني کي ئې زیار ویوست او د عدل او نیاو کمبله ئې وغوړوله او تر (۶۷۸هـ) پوري
ئې د غور او خیسار نوري ټولي کلاوي ونیولې او په (۶۸۰هـ =۱۲۸۱م) کال ئې د
کندهار کلا هم ونیوله خپل زوی ملک علاء الدین ئې په هرات کي خپل نایب پرېښوو او
پخپله د غور د خیسار په کلا کي کښېنوست (۶۸۲هـ = ۱۲۸۳م) او د پلار غوندي ئې د
چنگېزي شهزادگانو سره دوستانه روابط ټینگ کړل او تاتاري هندو نوین ئې چي د
هرات په سیموکي ئې خلک ازارول ونیو او هرات بیا د شهزادگانو یرغلو او کورنیو
جگړو وران کی او ملک شمس الدین مهین په همدې حالاتو کي په (۷۰۵هـ) کال مړسو
خو یو کال دمخه په ((۶۸۳هـ = ۱۲۸۴م) کال د ده مشر زوی ملک فخرالدین چي پلار
بندي کړی وو له بندیخانې څخه ووت او له خیساره هرات ته ولاړ او له هغه ځایه ئې
خواف او فراه او د خراسان نور ښارونه ونیول (۶۸۵هـ = ۱۲۸۶م) او په (۶۹۷هـ =
۱۲۹۷م) کال په هرات کي پر تخت کښېنوست او غازان خان د ده حکومت له هراته د سند
تر اوبو او آمو په رسمیت وپېژاند.

فخرالدین علم پالونکی عمران دوسته او ادیب پاچا وو او خطیب پوشنجي چي
ربیعي ئې تخلص وو، د کرت نامه کتاب د ده په نامه منظم کړی دئ ده په (۷۰۱هـ =
۱۳۰۱م) کال څو واره پر اسفزار یرغل وکی خو چي چنگېزی اولجایتو پاچا سو، دی ئې
له هراته مبارکۍ ته ورنغی، ځکه نو اولجایتو دانشمند بهادر د لسو زرو سپرو سره د ده
د سرټکولو له پاره هرات ته واستاوه فخرالدین د غور یو زړور جمال الدین سام ئې د
هرات د کلا ساتلو ته وگوماره او پخپله د امانکوه کلا ته ولاړ او نوموړی سام دانشمند

بهادر وواژه او د هغه لښکر ئې مات کی اولجایتو له ډېره غضبه امیر یساول او بوجای د دانشمند بهادر زوی ئې د ډېرشو زرو سپایانو سره په منډه ورواستول. په دې وخت کي فخرالدین (۷۰٦هـ = ۱۳۰۷م) او د سردارانو اختلاف او کاختیٔ سام غوري هم مجبور کی چي کلا تسلیم کي او پخپله دی او ملگري ئې د یساول په حکم ووژل سول.

اولجایتو د هرات او اسفزار او فراه او سیستان او غور او غرجستان حکومت د فخرالدین ورور ملک غیاث الدین محمد ته وسپاره (۷۰۷هـ) او چي د اولجایتو له حضوره هرات ته ورسېد نو غور او خیسار او اسفزار ئې هم ونیول خو ځینو امیرانو اولجایتو د ده په باب کي بدبینه کی ځکه ئې نو په (۷۱۱هـ = ۱۳۱۱م) کال دی خپل اردو ته وغوښت او تر (۷۱۵هـ = ۱۳۱۵م) پوري ئې د بېرته تلو اجازه ور نه کړه او د ده تر شا اودلدای او بوجای د بلوا له ببري د هرات پر خلکو ظلم او ستم را اخیستی وو او له تاتاري شهزاده گانو څخه یوه عادل شهرزاده چي داود خواجه نومېد غزنه او بست او زابل او تگین آباد لاس ته وروستلي ول خو غیاث الدین محمد په (۷۱۵هـ = ۱۳۱۵م) کال بیا د اولجایتو له درباره د افغانستان تر پایه او د آمو تر وېش پوري د هرات په حکمرانیٔ وگومارل سو. په دې وخت کي چنگېزي شهزادگانو او د بدخشان ملک غیاث الدین علیشاه د آمو پر غاړه سره ونښتل او له شبرغان څخه تر بلخ او مرغاب پوري د جگړې ډگر سو. په دې جگړه کي د دانشمند بهادر زوی بوجای ووژل سو او په (۷۱٦هـ) کال د نکودریان امیر آوجي بلا د غیاث الدین له لاسه ووژل سو او خپل نوي مخالفین ئې هم پر سر وټکول او د خراسان او سیستان کلاوي ئې ونیولې او په اسفزار کي ئې ملک قطب الدین او په فراه کي ئې ملک ینالتگین او د زره باخرز په حصار کي ئې ملک عبدالعزیز او په تولک کي ئې ملک فرخ زاد وترټل او په (۷۲۱هـ ۱۳۲٦م) کال ئې خپل زوی شمس الدین محمد په هرات کي پر خپل ځای کښېناوه او پخپله حج ته ولاړ اوهمدا غیاث الدین وو چي په (۷۲۷هـ = ۱۳۲٦م) کا ل ئې امیر چوپان وواژه او په (۷۲۸هـ) کي د ابو سعید دربار ته ولاړ او په (۷۲۹هـ = ۱۳۲۸م) کال چي له حج څخه راغی په هرات کي مړ سو.

د ملک غیاث الدین تر مړیني وروسته ئې زامن ملک شمس الدین محمد (۷۲۹ – ۷۳۰هـ) او ملک حافظ (۷۳۰ – ۷۳۲هـ) او ملک معز الدین حسین (۷۳۲ – ۷۷۱هـ) پاچهیٔ ته ورسېدل او دا ملک معز الدین د آل کرت له نومیالیو او د علم او ادب له

روزنکو ځخه وو، چي مولانا سعدالدين تفتازاني خپل مطول د ده په نامه وليکه او امير مسعود (د خراسان د سربدارانو د سلسلې د مؤسس) خواجه عبدالرزاق باشتيني ورور په زاوه کي د ده سره جګړه وکړه او مات سو (۷۴۳هـ = ۱۳۴۲م کال د صفري په ۱۳).
حسين برى وموند او خپل دښمن ته ئې کاري ضربه ورسوله او تر هغه وروسته ئې په بادغيس کي د اندخود او شبرغان اميرانو ته ماته ورکړه او څنګه چي امير قزغن د آمو له ها خوا ځخه راغی هرات ئې کلابند کی نو په (۷۵۲هـ =۱۳۵۱م) کال ئې د هغه سره روغه وکړه او بل کال چي ماوراء النهر ته ولاړ د ده په غياب کي ئې ورور امير باقر د پاچهۍ دعوه وکړه خو حسين ژر راوګرځېد او باقر ئې بندي کی. معزالدين حسين تر ۳۹ کالو پاچهۍ وروسته په (۷۷۱هـ = ۱۳۶۹م) کال کي مړ سو او د ملک غياث الدين زوی ئې په (۷۷۱ – ۷۸۳هـ) کال د ده پر ځای کښېنوست. دی د سبزوار د سربدارانو په جګړه کي بريالی سو او خپل زوی پيرمحمد ته ئې د امير خورزه وکړه خو په (۸۳۴هـ = ۱۳۸۱م) کال چي امير تېمور هرات ونيو نو غياث الدين د هغه د زوی پير محمد او ورور محمد سره ماوراء النهر ته تبعيد کی او په (۸۳۴هـ = ۱۳۸۵م) کال ئې وواژه او د آل کرت د سلسلې کمبله ټوله سوه.

په سيستان کي د نيمروز ملکان د آل کرت معاصرين ول، چي د هغو حالات مو د صفاريانو د مبحث په پای کي راوړي دي او بل کهول چي د آل کرت معاصر وو د ترنک د رود د غاړي د اميرانو کورنۍ هوتکيان او د راتلونکي افغاني هوتکي دولت اسلاف ول، چي د غلجيو د کلات د ترنک د رود د غاړي په غرو کي ئې حکمراني کوله او د چنګېزيانو د يرغلو مخه ئې نيوله، چي يو له هغو ځخه بابا هوتک د تولر زوی (چي په ٦٦١ هـ کي زېږېدلی او په ۷۴۰هـ کي مړ دئ) د پښتنو نوميالی عارف او شاعر د چنګېزيانو په مقابل کي له لويو مدافعينو ځخه وو. تر هغه وروسته ئې زوی شيخ ملکيار د (۷۴۹هـ = ۱۳۴۸م) په شاوخوا کي د نوميالیو جګړنو اميرانو ځخه او د پښتو ژبي شاعر وو، چي د ترنک د رود پر غاړه ئې د دښمنانو په مقابل کي جګړې کولې او همدې کهول په دوولسمه هجري پېړۍ کي د کندهار هوتکي دولت جوړ کی (په دې کتاب کي دي د هوتکيانو شرح حال وکتل سي). شيخ متي خليل (٦٢٣ – ٦٨٨م) د پښتو صوفي شاعر وو. محمد د علي بستي زوی د تاريخ سوري مؤلف، احمد د سعيد لودي زوی د اعلام اللوذعي في اخبار اللودي مؤلف (٦٨٦هـ)، شيخ کټه متې زی خليل

(د ۷۵۰ هـ په شاوخوا کي) د لرغوني پښتانه مؤلف هم د افغانستان د دې دورې له علمي کسانو څخه ول.

آل کرت علمدوسته فاضل پروره او عمران خوښونکي پاچهان ول. د دوی په وخت کي د چنگېزيانو د چور او چپاو سره سره علم او ادب او صنعت في الجلمه ژلميتوب وموند. د دوی دربار د پوهانو او شاعرانو د غونډېدو ځای وو. د ربيعي پوشنجي کرت نامه، د تفتازاني مطول، د هرات تاريخ د سيفي هروي مجموعه غياثي او سامنامه او د امير حسيني غوري نزهة الارواح او زادالمسافرين د آل کرت د دربار له مشهورو مؤلفاتو څخه ول.

د هرات د کرت اولاده:

۱. ملک کرت د (۵۰۰هـ) په شاوخوا کي
۲. تاج الدين عثمان مرغني د (۶۰۰هـ) په شاوخوا کي
۳. عزالدين عمر مرغني د (۶۰۰هـ) په شاوخوا کي
۴. ابوبکر کرت د(۶۰۰هـ) په شاوخوا کي
۵. رکن الدين خيسار د (۶۴۳هـ) په شاوخوا کي
۶. ملک شمس الدين محمد د ابي بکر کرت زوی (۶۴۳ – ۶۷۶هـ)
۷. ملک رکن الدين ملقب په شمس الدين کهين د ابي بکر کرت زوی (۶۷۷ – ۷۰۵هـ)
۸. ملک فخرالدين د کهين زوی (۷۰۵ – ۷۰۶هـ)
۹. *ملک غياث الدين محمد د کهين زوی (۷۰۶ – ۷۲۹هـ)
۱۰. ملک شمس الدين د غياث الدين محمد زوی (۷۲۹ – ۷۳۰هـ)
۱۱. ملک حافظ د غياث الدين محمد زوی ۷۳۰ – ۷۳۲هـ)
۱۲. *ملک معز الدين د غياث الدين محمد زوی (۷۳۲ – ۷۷۱هـ)
۱۳. باقر د غياث الدين محمد زوی (۷۵۳هـ)
۱۴. *ملک غياث الدين پير علي د معزالدين زوی (۷۷۱ – ۷۸۳هـ)

(۶۱ شجرې ته دي رجوع وسي).

**مأخذونه:**

تاريخ هرات د سيفي – د (تعديل در نسب نامه آل کرت) مقاله د آريانا په مجله

کي د حبيبي په قلم- تاريخ ايران در عصر مغول د عباس اقبال - پټه خزانه - لب التواريخ - تاريخ سيستان- تاريخ ادبيات ايران ۴ ټوک د براون - تاريخ ادبيات پښتو ۲ ټوک -تزک تيموري -حبيب السير -روضة الصفا -طبقات ناصري.

۶۱ - نمبر

# د هرات کرتیان

کُرت (تر ۵۹۹هـ وروسته)

؟ (حدود ۵۶۰هـ)　　؟ (حدود ۵۶۰هـ)

تاج الدین عثمان　　حسام الدین علي مرغنی (؟)　　عزالدین عمر مرغنی

مرغني (حدود ۶۰۰هـ)　　عایشه

لور (د ابوبکر کرت мاینه - ۶۰۰ حدود)　　رکن الدین خیسار (۶۴۳هـ)

شمس الدین محمد مهین (۶۷۶هـ)

محمدرکن الدین (شمس الدین کهین) متوفا ۷۰۵هـ

ملک فخرالدین (۷۰۶هـ)　　ملک غیاث الدین محمد (۷۲۹هـ)　　ملک علاء الدین (۷۱۳هـ)

ملک شمس الدین (۷۳۰هـ)　　ملک حافظ (۷۳۲هـ)　　ملک معزالدین حسن (۷۷۱ هـ)　　باقر (؟) (۷۵۳هـ)

محمد　　غیاث الدین پیرعلي (۷۸۳هـ)

پیرمحمد (حدود ۸۰۰هـ)

چنګیز خان



(۶۰) - لمبر

پنځمه برخه:

# د هرات تیموریان

(۷۷۱ – د ۹۲۰ تر شاوخوا پوري)

تیمور (په پخوانۍ املا تمر د اوسپني په معنا) مشهور په کورګان یعني زوم او تیمور لنګ د تراغای برلاس زوی د چنګېز کهول ته منسوب د قرجارنوین له تکومه د ماوراء النهر د کش په ښار کي د ۷۳۶ هـ کال د برات پر ۲۷ د (۱۳۳۶م د اپرېل پر ۱۱) زېږېدلی او د دنیا له لویو فاتحینو او خونخوارو پاچهانو څخه وو. تیمور په (۷٦۱هـ = ۱۳۵۹م کال) شهرت وموند او د (۷۷۱هـ = ۱۳٦۹م) کال په برات کي ئې د ماوراء النهر حکمران امیر حسین مغلوب کی او په (صاحبقران) ملقب سو او د ماوراء النهر د سیمو تر تصفیې وروسته په (۷۸۲هـ = ۱۳۸۰م) کا ل د آمو تر سیند راپوریووت اندخود او سرخس او پوشنج ئې ونیول او د هرات نیولو ته ئې ملا وتړله او د آل کرت وروستنی حکمدار غیاث الدین پیر علي ئې له منځه یووی. د تیمور بل یرغل د (۷۸۵ هـ = ۱۳۸۳م) په شاوخوا کي د افغانستان پر سبزوار او فراه شروع سو. زره او سیستان ئې چور او چپاو او اوسېدونکي ئې قتل عام کړل او ودانۍ ئې داسي ورانې کړې چي کنډوالې ئې تر اوسه لیدلې کېږي او ډېر کله منارونه ئې جوړ کړل. په دې سفر کي ئې بست او کندهار هم وران کړل. تیمور د خپل ژوند تر پایه ۳۵ واره له چینه تر مصره او له ډهلي څخه تر استانبول او مسکو پوري لښکرکښۍ او خونرېزۍ وکړې چي د ده نور فتوحات د افغانستان په تاریخ پوري اړه نه لري، خو په (۸۰۰هـ = ۱۳۹۷م) کال چي د هند د نیولو په نیت راووت د افغانستان پر ستم لیدلي هیواد ئې بیا یرغل وکی او هغه ښارونه چي تر چنګېزي چور او چپاو وروسته د آل کرت په وختو کي بیرته ودان سوي ول، بیا وران کړه سول.

په همدې کال تیمور خراسان له فېروزکوه څخه تر ري پوري خپل زوی شاهرخ ته

وسپارل او کابل او غزنه او کندهار ئې خپل نمسي پیرمحمد ته ورکړه. پیر محمد د سلېمان په غره کې د سند تر سینده پورې د اوغانانو (افغانانو) سره جګړې وکړې . واچه ئې کلابند کی او د سارنګ خان د ګومارل سوو کسانو سره ئې لاس واچاوه او ملتان ئې هم تر شپږو میاشتو کلابندۍ وروسته ونیو. تیمور هم د اندراب پر لار له هندوکشه راواوښت او د کابل تر نیولو وروسته د لغمان سهول ته ووت او له هغه ځایه د شمال خوا ته د (کیتر)[1] د تور کالیو (سیاه پوشو) کافرانو سره جګړې وکړې او د چغان سرای په شاوخوا کې ئې د خپلو فتوحاتو یوه کتیبه په غره کې وکیندله، چې تر اوسه سته. تر هغه وروسته ئې هند ته مخه کړه او د (۸۰۱ھ کال د محرم پر ۱۲ او د ۱۳۹۸م کلا د سپتمبر پر ۲۴) د سند د نیلاب له ګودره پوریووت او هندوستان ئې تر ډهلي پورې چور او یو لک تنه ئې ووژل. په دې سفر کې دولس زره پښتانه د ملک بهاءالدین جلواني او ملک یوسف سرواني او ملک حبیب نیازي په مشرۍ د ده سره ول. تیمور تر ورانیو او د لویې امپراطورۍ تر تاسیس وروسته د (۸۰۷ھ = ۱۴۰۴م) کال د برات پر ۱۷ د ۷۱ کلنۍ په عمر مړ او په سمرقند کې ښخ سو.

د تیمور د مړیني پر وخت د تیمور نمسی پیرمحمد د غیاث الدین جهانګیر زوی د کابل او د افغانستان له آمو او بلخ څخه د سند تر سینده حکمران وو. ده په لهو او فسق ژوند تېراوه، ځکه نو په سمرقند کې د تیمور نمسي د میرانشاه زوی خلیل د چارو واګې په لاس کې ونیولې او تر (۸۱۲ھ = ۱۴۰۹م) پورې ئې د ماوراء النهر پر ځینو برخو حکم چلاوه، خو شاهرخ د تیمور زوی د (۸۰۷ھ) کال په روژه کې په هرات کې پر تخت کېنیوست. دی د شرق له لویو علم دوستو او عمران خوښوونکو پاچهانو څخه وو، چې تر شل کاله ئې زیات په هرات کې پاچهي وکړه او په افغانستان کې ئې د چنګېزي او تېموري فتوحاتو پر ټولو هغو ټپو ملهم کېښښوو، چې د چنګېز او تیمور د یرغلو په اثر پیدا سوي ول. مجللي ودانۍ او مدرسې او خانقاوي ئې جوړې کړې چې تر اوسه ئې هم په هرات او ټول خراسان کې لکه د مشهد د بقعه رضوي ماجت او نوري نخښې ستهء. د ده او د ده د ملکې (ګوهرشاد) نومونه په علمدوستۍ او ادب پرورۍ او عمران او عدالت مشهور دي. ده د خپل سلطنت په لومړي کال د سلطان علي سبزواري ښور ښت آرام کی

---

[1] د کوچنیو کوشانیانو د لقب (کداره) قیدار، یو شکل دئ چې اوس هم په دې نامه یادېږي.

او په ۸۰۸ هـ کال ئې د تیمور نمسی سلطان حسین او امیر سلېمانشاه له پښو واچول او د ده زوی میرزا الغ بېگ اندخود او شبرغان ونیول او د ټول خراسان حکمراني تر طوس او نشاپور پوري ده ته وسپارله سوه. کله چي ملک صالح د ملک اسماعیل زوی له هنده غور ته راغی او د محمد سپهبد غوري په ملگرۍ ئې هلته ښورښت پیدا کی نو امیر لقمان برلاس او امیر حسین جاندار د هغي پېښي مخه ونیوله (۸۰۹ هـ = ۱۴۰۶م) او یو کال وروسته شاهرخ د پیرعلي تاز د مخنیوي له پاره بلخ ته مخه وکړه. پیرعلي هندوکش ته وتښتېد او شاهرخ تر تخارستان او ختلان پوري د افغانستان ټولي شمالي سیمي ونیولې (۸۱۰هـ). په (۸۱۱هـ) کال ئې په فراه کي ینالتگین، شاه اسکندر او پهلوان شمس الدین دراز تر کلا بندۍ وروسته د ځان تابع کړل او د اوک او جوین کلا ئې ونیوله او شاه قطب الدین د ملک محمود زوی ئې بېرته د سیستان په زره کي کښېناوه او هغه ولایت ئې پهلوان جمال ته وسپاره او د کندهار او غزنه او کابل ولایتونه ئې تر سند پوري خپل زوی میرزا قیدو او د بلخ او تخارستان او بدخشان ولایتونه ئې میرزا ابراهیم نامي ته وسپارل او شیخ زین الدین خوافي ئې د سیستان امارت ته واستاوه (۸۱۲هـ) او ځنگه چي په کندهار کي د دوو ورڼو امیر تومان کندهاري پیرمحمد د امیر کتلو زوی مشهور په پیرک او د مودود گرمسېري تر منځ مخالفت پېښ سو. دواړه هرات ته ولاړل او په نتیجه کي د هغه ځای حکومت پیرک ته وسپارل سو او مودود د هرات په دربار کي مقرر سو (۸۱۳هـ = ۱۴۱۰م).

د (۸۱۴ هـ = ۱۴۱۱م) په سر کي د هند د پاچا له خوا د ملتان قاضي خضر خان د سفیر په حیث د شاهرخ دربار ته راغی او په بادغیس کي ئې ورسره وکتل. د عبدالرزاق سمرقندي په قول په هند کي د شاهرخ په نامه خطبه ویلي سوي او سکه وهل سوې وه.

په (۸۱۵هـ = ۱۴۱۲م) کال د بدخشان حکمران شاه بهاء الدین یاغي سو او د شاهرخ لښکریانو له بغلان او اشکمش څخه پر بدخشان یرغل وکی او په بهاء الدین پسي تر پامیره ولاړل او د هغه ولایت حکومت ئې د بهاء الدین ورور شاه محمود ته ورکی، خو څلور کاله وروسته میرزا غتمش د بدخشان حکمران سو او په (۸۱۶ هـ = ۱۴۱۳م) کال د هرات د ښار د اختیار الدین حصار چي فخرالدین کرت جوړ کړی او د تیمور په یرغلو کي وران سوی وو، د شاه رخ په امر بېرته ودان سو او په (۸۲۰هـ = ۱۴۱۷م) کال چي د دوو محلي حاکمانو د سیفل کندهاري د زوی او ملک محمد تر منځ

شخړه پېښه سوه او د کندهار پښتنو د سند تر سینده او گرمسېره پوري بلوا وکړه. شاهرخ صدرالدین ابراهیم صدر عالي د هزاره سیمي ته ولېږه او د هغه ځای مشران ئې د پاچا خدمت ته راوستل او د بدخشان لښکریان د میرزا سیور غتمش سره او د سیستان سپایان د ملک قطب الدین سره یو ځای سول او د شاهرخ تر رکاب لاندي ئې پر کندهار یرغل وکی او د هزاره گانو امیران د برمل افغان د مشرانو سره د خواجه لقمان (نعمان) تر مشرۍ لاندي د غزني له شا و خوا څخه راغلل او اطاعت ئې ومانه او کابل میرزا قیدو ته وسپاره سو او شاهرخ د هلمند د غاړي څخه د اغرق له لاري بېرته هرات ته ولاړ او امیر عبدالصمد ئې د گرمسېر په حکومت او امیر حسام ئې د کندهار په کوتوالي وټاکل، خو څنگه چي میرزا قیدو یاغي سو او د اوبې د ناب تر جگړې وروسته گرفتار او په هرات کي بندي سو نو شاهرخ د کابل او غزنه او کندهار ولایت او افغانستان د هند او سند تر حدودو پوري خپل زوی میرزا سیور غتمش ته ورکی (۸۲۱هـ) او نهه کاله د ټول افغانستان حکمران وو، څو چي د (۸۳۰ هـ = ۱۴۲۶م) کال د محرمي په میاشت د کابل په ښار کي مړ سو او شاهرخ هغه ټول ولایت د هغه زوی میرزا سلطان مسعود ته وسپاره.

شاهرخ پر یو ارت هیواد له سیحونه د عرب تر بحیرې او د فارس له لودیځو څنډو څخه د سند د سیند تر غاړو پوري پنځوس کاله په بري سره حکم چلاوه او یو اویا کلن د (۸۵۰هـ = ۱۴۴۶م) کال د ذیحجې د میاشتي پر ۲۵ په ري کي مړ سو. د شاهرخ تر مړیني وروسته د ده په ارت هیواد کي د تیموري شاهزادگانو تر منځ نفاق او شخړي پیدا سوې او په سمرقند کي د ده عالم او منجم زوی الغ بېگ (د زیج الغ بېگ او اولوس اربعه مؤلف او د سمرقند د رصدگاه ۸۴۱ هـ مؤسس) د ده پر ځای کښېنوست او د خپل لښکر سره بلخ ته راغی او د افغانستان شمالي ولایتونه ئې ونیول او خپل زوی میرزا عبداللطیف ئې د هغو ولایتو حکمران وټاکه او پخپله سمرقند ته ولاړ (۸۵۱هـ)، خو په همدې وخت کي د میرزا علاء الدوله د بایسنقر زوی او د شاهرخ نمسي پر هرات قبضه وکړه او د عبداللطیف د مقابلې له پاره ئې پر بلخ او شبرغان یرغل وکی، خو بې له دې چي خپل مقصد ته ورسېږي تر چور او چپاو او ورانولو وروسته هرات ته ستون سو (۸۵۱هـ = ۱۴۴۷م). الغ بېگ د ماوراء النهر او ختلان او کندوز او بغلان او بدخشان او میمنې او فاریاب پوري لښکر راغونډ کی او د هرات خوا ته پر مخ ولاړ، خو میرزا علاء الدوله د خپل لښکر سره د سنجاب د کوتل له لاري مقابلې ته وروووت او د هرات په ۱۴

فرسخي په ترناب کي سره ونښتل. د میرزا علاء الدوله لښکر ماته وکړه او پخپله مشهد ته وتښتېد او خپل ورور میرزا ابو القاسم بابر ته ورغی او الغ بېگ سید عمادالدین ته وزارت او مولانا قطب الدین احمد امامي ته د قضای اعلی منصب ورکی او پخپله ئې د مشهد خوا ته مخه وکړه (۸۵۲هـ) د ده تر شا امیرزاده یارعلي او امیر سلطان ابو سعید چي د هرات د نره تو په حصار کي بندیان ول، له زندانه ووتل او په هرات کي ئې اړودوړ جوړ کی. الغ بېگ له مشهده بېرته د هرات خوا ته مخه کړه او د ښار دباندي ئې چور کی او د هغه ځای حکمراني ئې میرزا عبداللطیف ته پرېښووله او پخپله تر آمو پوریووت (۸۵۲هـ). میرزا عبدالطیف پنځلس ورځي وروسته هرات میرزا ابوالقاسم بابر ته چي له سرخسن څخه پر مخ راتی پرېښوو او پخپله بلخ ته وتښتېد. بابر میرزا هرات ونیو او امیرزاده یارعلي ئې وواژه (۸۵۲هـ پای).

تر هغه وروسته بابر میرزا سیستان او نیمروز هم پخپل هیواد پوري وتړل، خو څنگه چي د ده ورور علاء الدوله په بلخ او بدخشان کي ورته پورته سو، نو بابر د هرات د لښکر سره د بدخشان د غرو خوا ته وخوځېد او شمالي ولایتونه ئې له بدخشانه څخه تر مرغاب پوري امیر ناصرالدین او امیر مبارزالدین هزارسپي ته وسپارل (۵۴هـ). بابر میرزا تر (۸٦۱هـ = ۱۴۵۸م) پوري پر هرات او سیستان او د افغانستان پر شمالي ولایتو باندي تر بدخشان او خراسان پوري سلطنت وکی او په همدې کال مړ سو، خو عبداللطیف په بلخ کي د خپل پلار پر خلاف بیرغ پورته کی او په (۸۵۳هـ = ۱۴۴۹م) ئې خپل پلار الغ بېگ او خپل ورور عبدالعزیز ووژل او یو کال وروسته دی پخپله هم ووژل سو (۸۵۴هـ =۱۴۵۰م).

د هرات د تیموریانو نومیالي سلطان ابو سعید گورگان د سلطان محمد زوی د میرانشا نمسی او د تیمور کړوسی دئ چي په (۸٦۱هـ = ۱۴۵٦م) کال د هرات د سلطنت پر تخت کښېنوست. ده هم پر زابلستان د خراسان او توران تر پایه حکم چلاوه او د شاهرخ نومیالۍ ملکه گوهر شاد ئې په (۸٦۲هـ) کال ووژله او تر لسو کالو پوري ئې په کامراني سره حکومت وکی او د کابل او غزنه او د افغانستان ولایتونه ئې د هندوستان تر وېش پوري زوی میرزا الغ بېگ ته ورکړي ول او د دې شهزاده ځیني سپاهیان د ملتان تر دروازې هم ورسېدل (۸۷۳هـ).

خو د بدخشان په ولایت کي د ابو سعید بل زوی میرزا سلطان ابوبکر (۸٦۵ –

۸۸۴هـ) حکومت کاوه چي د بدخشان يوه محلي شهزاده ورباندي حمله وکړه خو نوموړی شهزاده هم ووژل سو. همدا شان د کندهار او ګرمسېر ولايت ئې خپل بل زوی ميرزا سلطان مراد ته ورکړی وو. څو چي په (۸۷۳هـ = ۱۴۶۸ م) کال په يوه جګړه کي د اوزون حسن په لاس کښېووت او ووژل سو.

د ابو سعيد له لويو رقيبانو څخه يو هم سلطان حسين د منصور زوی د بايقرا نمسی، د عمر شېخ کړوسی او د تيمور کوسی دئ، چي علمدوسته فاضل پاچا وو. ده په ايران او ماوراء النهر کي ترا وږدې حکمرانۍ وروسته ډېري لوړې ځوړې وليدلې. څنګه چي سلطان ابو سعيد د ايران د شمال داران د قراباغ په اووه فرسخي کي د امير حسين بېګ د لښکر په مقابل کي ماته وکړه، بندي او ووژل سو (۸۷۳هـ د رجب ۱۴) نو سلطان حسين د (۸۷۳ هـ = ۱۴۶۸م) کال دروژې په لسمه د جمعې په ورځ په هرات کي د پاچهۍ پر تخت کښېنوست. د ده پاچهي هم د شاهرخ د دورې په شان د علم او ادب او صنعت د روزني دوره وه. د ده نامتو وزير امير علي شېرنوائي د علم او ادب او جهانداری په کارو کي بې ساری وو. (۹۰٦هـ = ۱۵۰۰م د جمادي الثاني – څلورمي خور پر ۱۲) مړ دی. واعظ کاشفي، علامه جلال الدين دواني، مولانا جامي نامتو عالم او صوفي، مير خواند، خواند مير او عبدالرزاق سمرقندي د دې دورې نوميالي تاريخ پوهان دي.

د هرات زبردست نقاش بهزاد د ده په عصر کي اوسېد او د سلطان حسين بايقرا د عمراني آثارو څخه د بلخ په خواجه خيران کي د هغه مزار ودانول دي چي حضرت علي ته منسوب دئ (د افغانستان په شمالي سيمه کي اوسنی مزار شريف) د ده په وخت کي امير ابو اسحاق ترخان د بلخ حکمران او ميرزا سلطان حسين د شبورغان حاکم وو، هغه وخت چي هغه دواړه مړه سول. مير مغول په بلخ کي او ملک يحيی په سيستان کي واليان سول او د (۸۷۴هـ = ۱۴۶۹م) په شاوخوا کي ميرزا محمدعمر چي له تيموري شاهزادګانو څخه وو له هراته د ګرمسېر د نيولو له پاره واستول سو او نظام الدين احمد برلاس چي د کندهار حاکم وو تسليم سو او ميرزا محمدعمر د هغې سيمي حکمران سو. همدا رنګه پخپله سلطان حسين د نره تو کلا ونيوله او د مرغاب غاړې ئې له مخالفينو څخه پاکي کړې. د ترکمنو قبيلو سره په اخ و ډب اخته وو. د ده وروريادګار ميرزا هرات ونيوه. هغه وو چي سلطان حسين د زرو سپرو سره له ميمنې او فارياب څخه تېر سو او

یادگار ئې په هرات کي د خوب په حال کي ونیو او وئې واژه او پخپله سلطان حسین تر ۳۹ کالو پاچهۍ وروسته د (۹۱۱هـ = ۱۵۰۵م) کال د ذیحجې د میاشتي پر ۱۱ په اویا کلنۍ کي مړ سو. (۶۲ – ۶۳ عکس).

دا هغه وخت وو، چي د هرات د دولت سیاسي او علمي اغېزه تر استانبول او جنوبي هندوستان پوري رسېدلې وه او له استانبوله د آل عثمان سلاطینو او له جنوبي هنده د اسلامي دولت نامتو ادیب وزیر محمود گاوان د هرات د دربار او مولانا جامي سره سیاسي او علمي لیکني درلودلې.

د سلطان حسین میرزا تر مړیني وروسته د هرات غښتلي مرکزي دولت د بدیع الزمان میرزا او مظفر حسین میرزا شاهزادگانو په لاس کي وو خو له بده مرغه هغه مدنیت دوسته او عمران پسنده دولت چي هرات ئې د آسیا د علم او ادب او صنعت مرکز گرزولی وو او د سند له غاړو د اېران تر پایه او د سیحون له سینده تر عربي بحیرې پوري ئې سیاسي نفوذ غوړېدلی وو، بیا د چنگېز نژاد ته منسوب د یوه سړي شیبک خان په لاس وران او برباد سو او هم د اوزبکانو او صفویانو په جگړو کي د سني او شیعه مذهبي اختلافاتو د هرات ښایسته ښار وران کی.

د هرات تیموري پاچهان:

۱. *تیمور د تراغای زوی (۷۷۱ – ۸۰۷هـ)
۲. *شاهرخ د تیمور زوی (۸۰۷ – ۸۵۰هـ)
۳. *الغ بېگ د شاهرخ زوی (۸۵۰ – ۸۵۳هـ)
۴. *عبداللطیف د الغ بېگ زوی (۸۵۳ – ۸۶۱هـ)
۵. *ابو القاسم بابر د بایسنقر زوی او د شاهرخ نمسی (۸۵۴ – ۸۶۱هـ)
۶. *ابو سعید گورگان د محمد میرانشا زوی او د تیمور نمسی (۸۶۱ – ۸۷۳هـ)
۷. *سلطان حسین د غیاث الدین منصور زوی، د بایقرا نمسی، د عمر شیخ کړوسی او د تیمور کوسی (د تیموریانو د نسب شجره دي وکتله سي).

**مأخذونه:**

ریاض الانشاء د محمود گاوان – مطلع السعدین د عبدالرزاق سمرقندي – تاریخ اېران در دوره مغول د عباس اقبال – تاریخ ادبیات اېران بعهد مغل د براون – رهنمای افغانستان – دایرة المعارف اسلامي – حبیب السیر – روضة الصفا.



سلطان حسین بایقرا

عکس نمبر – ۶۲

۶۴ - لمبر

# د هرات تیموریان




(تر نومو وروسته د وفات کلونه دي)

# د کونړ حکمرانان او یوسفزیان

(د ۸۰۰ – ۹۰۰هـ شاوخوا)

د (۸۰۰هـ = ۱۳۹۷م) په شاوخوا کې چې د افغانستان په سیمو کې د تیمور یرغلونه جاري ول، د کونړ په درو کې یوې محلي کورنۍ حکمراني کوله، چې د دې کورنۍ حکمران ئې (سلطان) باله. دې کهول د کونړ د پیچ په دره کې مرکز درلود او محلي افسانو دوی د ذوالقرنین اولادې ته منسوب بلل. د دې کهول له نومیالیو څخه یو سلطان پکهل او بل د هغه ورور سلطان بهرام ول، چې دوی بیا د سلطان کهجامن زامن او د هندو نمسیان ول. سلطان پکهل له لغمانه تر کونړه او باجوړ او سوات او کشمیر پورې حکومت کاوه او (د پېښور د هزاره ضلع) پکهلي نومې ځای همده ته منسوب دئ او د کونړ په درو کې د ده لیکنې (کتیبې) پاته دي او تر ده وروسته د ده زامن په سوات کې سره ونښتل او لوی جنګ ئې وکی.

خو سلطان بهرام لغمان او ننګرهار ونیول او خپل یوه برخه مخالفان ئې پېښور ته فرار کړل او د ده د حکمرانۍ مرکز د سپین غره په لمنه کې پاپین وو او تر ورور وروسته ئې د هغه د حکمرانۍ مځکې تر کشمیر پورې هم ونیولې او له کابله تر کشمیره ئې پر یوه هیواد باندې حکم کاوه او تر ده وروسته سلطان تومنا د حکمرانۍ واګې په لاس کې ونیولې. خو د دې کورنۍ حکمراني د شینوارو او کونړ او سوات باجوړ په غرو کې د هزاره تر ضلع او کشمیر پورې محدوده پاته وه. د کابل او ننګرهار او پېښور په غرو او رغو او د غرو په لمنو کې د کندهار د سیمو او د ارغسان د رود د غاړو د پښتنو مهاجرتونه د تیمور د اولادې په وختو کې شروع سول. د کند او زمند ټبرونه د ګاونډیانو د اختلاف او د ځړ د ځایو د لړوالي په سبب د کندهار له سیمو څخه د کابل خوا ته راوکوچېدل او د ګومل او نورو ځایو خلک د دوی سره یو ځای سول او د کابل په درو کې اوسېدل او د دوی حکمرانان مداد او مدو او شیخ عثمان ول او د (۸۷۰ هـ = ۱۴۶۵م) په شاوخوا کې چې میرزا الغ بېګ د سلطان ابو سعید کورګان زوی د کابل حکمدار وو. د دې ټبرو ټول مشران ئې د ملک سلطان شاه سره یو ځای راغونډ او وئې

وژل، خو د سلطان شاه یوسفزي وراره (احمد) له دې کشتاره خلاص سو او ترکلاني خلک ئې په لغمان کي مېشته کړل، خو په حصارک کي ئې مهمندزو د ننگرهار سيمي ونيولې او یوسفزيانو د باجوړ او بونير او سوات خوا ته مخه کړه. د هغه ځای بومي خلک چي دلازاک ول وتښتېدل او پرشور (پېښور) ته ئې پناه یووړه او یوسفزو د شلمانيو مشر چي جلو نومېد وواژه او د پېښور د شمال د اشنغر او دوابه پر ټولو ځمکو ئې قبضه وکړه. له ناوگي څخه ئې د (باجوړ) تر ارهنده ونيول. په دې وخت کي د یوسفزو حکمرانان ملک احمد او ملک ملي ول او دا شيخ آدم مشهور په (ملي) د یوسف زوی د پښتنو له سرېني ټبر څخه دئ چي د یوسفزو د قوم سر مشر، لارښوونکی، واکمن او نامتو مقنن (Law- Giver) او په تقوی او فضليت مشهور سړی وو. ده د (۸۲۰هـ = ۱۴۱۸م) په شاوخوا کي یوکتاب د شيخ ملي د دفتر په نامه د اجتماعي قوانينو، قومي دودونو او د ځمکو د وېش په باب کي وليکه، چي یوسفزيانو له هغه وخته تر وروسته څلورو پېړيو پوري هم خپلي ميراثي ځمکي د هغه دفتر د قوانينو په اساس وېشلې. په دې قوانينو کي د کرهڼي، څړ او اوسېدو ځمکي د عدالت او مساوات له مخي وېشلي سوي او تر لسو کالو وروسته د کورنيو د غړو د زیاتوالي یا لږوالي پر اساس نوی وېش کېده او دا کتاب د پښتو د نثر له پخوانيو آثارو څخه وو او په هغه کي د دې قبيلې د مهاجرت تاریخ د پښتنو د ټبرو د نسبو د شرحي سره ليکل سوی وو.

تر شيخ ملي وروسته د یوسفزيانو واکمني کجو خان رانيي زوی ته ورسېدله (د ۹۰۰هـ = ۱۴۹۴م شاوخوا) کجو خان هم یو کتاب وليکه چي د شيخ ملي د دفتر پایڅوړیا تکمله وه او په هغه کي ئې د یوسفزو د تاریخ شرح او د شيخ ملي د وضع کړو قوانينو سمون او تکميل راوړی وو او ډېره موده د دې قوم مشر او واکمن وو او د (۱۲) زرو سپرو په مرسته ئې په شيخ پټور کي د غوریه خيلو سره جگړه وکړه او مات ئې کړه او د یوسفزو بله مهمه جگړه په لنگر کوټ کي د دلازاک سره وه چي دلازاک ته ئې وروستنۍ ماته ورکړه. تر کجو خان وروسته د یوسفزو دوه تنه شاه منصور د ملک سليمان زوی او سلطان ويس سواتي د هغو سيمو حکمرانان ول چي د (۹۱۰ – ۹۲۵هـ) په شاوخوا کي محلي واکمنان گڼل کېدل او د شاه منصور یوه لور بي بي مبارکه د بابر مانديه وه او همدا رنگه سلطان علاء الدين سواتی او طاووس خان د بابر له معاصرو نوميالیو څخه

ول، چي ده پخپله دا نوميالي ياد کړي دي.

د دې حکمرانانو نوميالي:

۱. سلطان پکهل د کونړ د کهجامن زوی او د هندو نمسی (د ۸۰۰ هـ شاوخوا)
۲. سلطان بهرام د کهجامن زوی (د ۸۱۰هـ شاوخوا)
۳. سلطان تومنا (د ۸۱۵هـ شاوخوا)
۴. ملک احمد یوسفزی (د ۸۱۵هـ شاوخوا)
۵. شیخ آدم ملي د یوسف زوی (د ۸۲۰هـ شاوخوا)
۶. کجو خان رانی زی (د ۹۰۰هـ شاوخوا)
۷. شاه منصور د ملک سلیمان زوی (د ۹۱۰هـ شاوخوا)
۸. سلطان ویس سواتی (د ۹۱۰هـ شاوخوا)
۹. سلطان علاء الدین سواتی (د ۹۱۰هـ شاوخوا)
۱۰. طاووس خان (د ۹۱۰هـ شاوخوا)

**مدارک**:

تاریخ مرصع- تذکرة الابرار والاشرار- تاریخ پشاور- حیات افغاني- نسب نامه افاغنه مجله آثار عتیقه هند - سالنامه های کابل- پټه خزانه -تاریخ ادب پښتو ۲ ټوک- خورشید جهان- صولت افغاني- بابر نامه.

# د هند تیموریان

## د ارغونیانو او اوزبکو او صفویانو اغېزه

(۹۱۰ – ۱۱۵۱)

د هرات د تیموریانو د دورې په پای کې ظهیرالدین بن محمد بابر د عمر شېخ میرزا زوی او د هرات د پخواني سلطان ابوسعید کوگان نمسی د (۸۹۹هـ = ۱۴۹۳م) کال د روژې د میاشتې پر پنځمه د فرغانه په اند جان کې په یوولس کلنۍ پر تخت کښېنوست. دا وخت د هرات شهزادګان پخپلو منځو کې سره نښتي او اخته ول او د هرات سلطنت کمزوری سوی وو. ځنګه چې بابر د پلار او مور له خوا چنګېز او تیمور ته منسوب وو، ځکه نو که څه هم د سن له مخي کوچنی وو خو بیا ئې هم وکولای سوه چې پاچهي وساتي. په دې وخت کې د ده اکا سلطان احمد میرزا په سمرقند کې او سلطان محمود میرزا د بدخشان په کندوز کې حکومت کاوه او د بابر سره ئې مخالفت درلود او د بابر ورور جهانګیر میرزا هم د ده رقیب وو چې دې مخالفینو او د ده نورو رقیبانو د ده ورور له اندجانه ویوست او شیباني خان (۹۰۵ –۹۱٦هـ) د ابراهیم زوی چې د چنګېز د زوی جوجي له تکومه وه سمرقند ونیو او د بابر سره ونښت چې هغه د افغانستان په تاریخ پوري اړه نه لري.

بابر تر (۹۰۹هـ = ۱۵۰۳م) پوري د شیباني په مقابل کې جګړه وکړه او ځنګه چې ئې خپل بډ (حریف) غښتلی ولید، نو د افغانستان خوا ته ئې مخه کړه او په همدې کال له جیحونه راپوریووت او د بدخشان حکمران خسرو شاه ته چې په کندوز کې وو، ورغی او تر لږې مودې وروسته ئې د خسرو د لښکر اته زره سپاره او پلي پر ځان راټول کړل او خسرو ئې د میمنې خوا ته وشاړه چې د تېموري شهزادګانو بدیع الزمان میرزا ته ئې پناه یووړه. پخپله بابر د خسرو مالونه د ځان کړه او د خسرو د لښکریانو او درې څلور زرو مغولي کورنیو سره ئې له کندوزه کابل ته مخه کړه، خو په دې وخت کې د کابل حکمران

عبدالرزاق میرزا د الغ بیگ میرزا کوچنی زوی وو، چي د حکومت چاري ئې د شیرم زکه (زکي) نامي په لاس کي وې او د کابل مشرانو لکه امیر محمد یوسف او محمد قاسم بیگ او امیر یونس علي دی په سلطاني دېوانخانه کي وواژه. په همدې وختو کي د افغانستان د جنوبي سیمو د کندهار او گرمسیر حکمراني د میر حسن د زوی امیر ذوالنون ارغون په کهاله اړه درلودله. دا امیر ارغون (چي په بلوڅي روایاتو کي په زنو مشهور دئ) د ابو سعید کورگان له نوکرانو څخه وو، چي سلطان حسین بایقرا د غور او غرجستان او زمینداور په حکمرانۍ ټاکلی وو. ده په (۹۰۴هـ) کال د هزاره او نکدري قبیلې رعیت کړې او د دې خدمت په پاداش کي ئې د فراه او غور او کندوهار حکومت وموند او په (۹۰۲هـ = ۱۴۹۶م) کال ئې شاهزاده بدیع الزمان ته خپله لور ورکړه او د هغه سره ئې په هغه یاغیتوب کي چي خپل پلار سلطان حسین بایقرا ته باغي سوی وو مرسته وکړه او په (۹۰۴هـ = ۲۴۹۸م) کال ئې هرات ونیو او چي بدیع الزمان پر بلخ بری وموند، ارغون سیستان ونیو او هغه وخت چي سلطان حسین بایقرا په (۹۱۱هـ) کال مړ سو، نو د ارغون نفوذ لا زیات سو او له کندهاره ئې د شال او بولان او مستنگ (اوسنی بلوچستان) پر ولایت د سند تر غاړو پوري قبضه وکړه او پخپله د هرات په کلابندۍ او د شیباني په جگړه کي ووژل سو (د ۹۱۳هـ = ۱۵۰۷م شاوخوا) خو تر ده وروسته ئې دوو زامنو شاه بیگ او محمد مقیم ارغون له کندهاره د سند تر سینده حکم کاوه او د هرات تر نیولو وروسته ئې د شیباني خان سره روغه وکړه. بیا چي زکي ووژل سو او د کابل چاري ویجاړې پاته سوې، نو محمد مقیم ارغون د کندهار له گرمسېره پر کابل یرغل وکی او په (۹۰۸هـ) کال ئې میرزا عبدالرزاق د لغمان خوا ته پر شا وشاړه او کابل ئې ونیو د الغ بیگ لور ئې وکړه. هغه وخت چي بابر د شمال له خوا تر هندوکش راتېر سو او محمد مقیم له کابله کندهار ته ولاړ نو بابر کابل ونیو (۹۰۹هـ = ۱۵۰۳م).

محمد مقیم په کندهار کي د لښکر په تجهیز لاس پوري کی او بابر د غزني خوا ته ووت او د غلجیو تر کلات پوري پر مخ ولاړ او خپل ورور جهانگیر میرزا ته ئې د غزني حکومت ورکی (۹۱۱هـ = ۱۵۰۵م) یو کال وروسته د افغانستان ټول تیموري شاهزادگان د شیباني د ورځ په ورځ زیاتېدونکي قوت په مقابل کي د مرغاب پر غاړه سره غونډ سول او بابر ئې هم وروغوښت. بابر چي د سلطان حسین د مړیني خبر اروېدلی وو او پخپله د ده په قول په زړه کي ئې د هرات خرخښه وه نو د هزاره او یماق له لاري مروچاق

ته ولاړ او د کل باغان په پړاو کي د نوموړو شهزادګانو سره یو ځای سو. د (۹۱۲ هـ ثلورمه خور جمادي الاخر ۱۵۰۶ م). څنګه چي شیباني جنګ ته را وړاندي نه سو او د بلي خوا له کابل څخه هم د خړپړتیا خبر بابر ته راورسېد نو بابر بېرته په سره ژمي کابل ته راغی او په لاره کي درانه تلفات ور پېښ سول. دا ځکه چي د ده تر شا د کابل ځینو مشرانو د بابر اکا جان میرزا په پاچهۍ منلی وو، خو چي بابر کابل ته راورسېد، اکا ئې کندهار او سیستان ته وتښتېد. په همدې وختو کي شیباني پر بدخشان یرغل وکی او د بابر کشر ورور ناصر میرزا ئې د کابل و خوا ته پر شا وشاړه.

بابر په افغانستان کي تر چنګېز او تېمور وروسته غښتلی پاچا وو، چي د هغو پښتني قبایلو سره ونښت، چي په غرو او رغو کي د کوچیتوب په حال کي د رمو او ګلو په روزنه بوخت ول او هغه درانه تلفات ئې چي د هرات په سفر کي ورپېښ سوي ول، د غزني د لمر ختیځ، جنوب د غلجیو قبایلو په چور او چپاو تلافي کړه (۹۱۳هـ). په همدې کال چي شیباني خان د هرات او فراه تر یرغل وروسته ګرمسېر ته ورسېد، نو بابر له کابله ور ووت او د کندهار په خالیشک نومي ځای کي ئې د شاه بېګ او محمد مقیم ارغون سره جګړه وکړه او د خپلو دوو زرو تنو لښکرو په مرسته ئې کندهار ونیو او شاه بېګ مستنګ ته او مقیم زمینداور ته وتښتېده. بابر د کندهار ایالت خپل ورور ناصر میرزا ته وسپاره او پخپله کابل ته را رهي سو، خو د ارغون زامن چي شیباني ته ئې پناه وړې وه، د شیباني په ملاتړ ئې بېرته پر کندهار یرغل وکی او ناصر میرزا ئې کابل ته وشاړه. شیباني کندهار شاه بېګ ته وسپاره او پخپله بېرته خراسان ته ولاړ (۹۱۳هـ).

دمخه مو وویل چي میرزا عبدالرزاق د محمد مقیم له لاسه ماته وکړه او له کابله د افغانستان لمرختیځي خوا ته وتښتېد او په ننګرهار کي ئې د علي شبکور سیستاني او محمد علي شیباني او عبدالله صف شکن او نظر او یعقوب او نورو په مرسته ئې د پاچاهۍ بیرغ پورته کی. بابر په (۹۱۴هـ =۱۵۰۸م) کال پر هغه حمله وکړه او د خپلو درې، څلور زرو تنو لښکرو سره په ننګرهار کي وجنګېد او عبدالرزاق ئې وواژه او هم ئې زبیر راعي چي په بدخشان کي ئې د بابر سره مقابله کوله د خپل اکا جان میرزا په واسطه له منځه یووړ. په همدې وختو کي چي بابر په کابل او بدخشان کي اخته وو، په هرات کي د تیموري شهزادګانو د حکومت کمبله د شیباني له خوا ټوله کړه سوه او شیباني ته ټول خراسان تر کندهاره پوري لاس ته ورغی، ځکه په (۹۱۶هـ = ۱۵۱۰م) کال

صفوي پاچا شاه اسمعیل مرو ته ولاړ او شیباني ئې هلته کلا بند کی او شیباني د برات د میاشتي پر ۲۶ د پنځلسو زرو تنو سره پر صفویانو یرغل وکی او په دې جنگ کي لس زره اوزبک پخپله د شیباني سره ووژل سول او شاه اسمعیل د (۹۱۷هـ = ۱۵۱۱م) کال په پسرلي کي تر امو پوري پر مخ ولاړ او بیرته هرات ته راغلی او ځنګه چي د صفویانو په جګړه کي د بابر لوی رقیب شیباني خان ووژل سو نو ځکه بابر د شپېتو زرو تنو سره له کابل او بلخ څخه پر ماوراء النهر یرغل وکی او تر ډېرو فتوحاتو وروسته تر (۹۲۰هـ = ۱۵۱۴م) پوري ئې هغه نیولي ښارونه بېرته له لاسه ووتل او ناکامه کابل ته راوګرځېد.

ځنګه چي بابر په ماوراء النهر کي د ډېرو غښتلیو او کلکو رقیبانو سره مخامخ کېده نو ځکه ئې تر هغه وروسته هغې سیمي ته توجه و نه کړه او وې غوښتل چي د هند ارتو ملکو په نیولو لاس پوري کړي. د دې کار لومړني مراتب ئې په کابل کي تهیه کړي او له (۹۲۵هـ = ۱۵۱۹م) څخه ئې پر هند باندي خپل لومړی یرغل شروع کی او د سند نیلاب له ګودره د پنجاب تر بهره پوري ورسېد او هغه سیمي ئې حسین بېګ اتکه ته وسپارلې او د ککهړان پر ولایت او د پرهاله پر کلا ئې حمله وکړه او د بهر او سند تر منځ ولایت ئې محمد علي ته وسپاره. بېرته کابل ته راغلی او په لاره کي ئې د پېښور شمال د یوسفزو ډېري قبیلې د ځان پر خوا کړې او د یوسفزیو د یوه مشر شاه منصور لور ئې وکړه او په دې وسیله ئې وکولای سوه، چي د سبکتګین په څېر (چي د محمد مور ئې د زابلي پښتنو څخه کړې وه) د پښتنو زړه ور او ننګیالي قبایل ځان ته متمایل کړي او د هغو په قوت او ملاتړ د هند راتلونکی امپراتور سي، ځکه چي یوسفزیان د خیبر او سند تر منځ په ارته سیمه کي پراته ول او امکان ئې نه درلود چي د دوی بې مرستي څوک له کابله د هند او ماورای سند خوا ته تېر سي.

ځنګه چي په دې وسیله د بابر کار اسانه سو، نو په دوهم یرغل کي چي د (۹۲۵هـ) کال په پای کي ئې وکی تر اټک پوري یووت او چي بېرته راوګرزېد نو په لاره کي ئې د حضر خېل قبیلې چور کړې. په دریم یرغل کي (۹۲۶هـ = ۱۵۱۹م) کي د پنجاب تر سیالکوټه پر مخ ولاړ. سید پور ئې وران او خلک ئې قتل عام کړل، کابل ته راغلی.

ځنګه چي شاه بېګ ارغون له سنده پر کندهار یرغل کاوه نو ځکه بابر کندهار کلابند کی او د شاه بېګ سره ئې روغه وکړه، بېرته کابل ته ستون سو (۹۲۶هـ = ۱۵۱۹م رجب) او بل کال ئې بیا کندهار کلابند کی او شاه بېګ ئې د شمال خوا ته پر شا وشاړه او د (۹۲۸هـ

= ۱۵۲۱م) کال د کوچني اختر د میاشتي پر ۱۳ ئې د کندهار ښار په روغه ونیو او شاهزاده کامران ئې د هغه ځای حکمران کی.

د بابر ځلورم سفر په (۹۳۰هـ = ۱۵۲۳م) کال تر لاهور او سیالکوټه پوري وو او په پنځم سفر کي ئې (د ۹۳۲ هـ د رجب پر ۸) د پاني پت په جګړه کي سلطان ابراهیم لودي وواژه او (د ۹۳۲هـ = ۱۵۲۵م د رجب پر ۱۲) د ډهلي پر تخت کښېنوست. په دې وخت کي وو، چي د پېښور او کوهاټ او بنو خوا د یوسفزو د لویو قبیلو مهاجرتونه بشپړ سول او د بلوڅو لویو قبیلو د سند سیمه د غازي خان تر ډېرې او د پنجاب تر جنوبه ونیوله.

تر هغه وروسته افغانستان له کابل او بدخشان او کندهار له ډهلي څخه د بابر له خوا اداره کېده او خواجه کلان د غزني او ګردېز حکمران (۹۳۲هـ) او شهزاده همایون د کابل او بدخشان حکمران (۹۳۳هـ = ۱۵۲٦م) او شهزاده کامران د کندهار حکمران وو. همدارنګه همایون په (۹۳۵هـ) کال هند ته ولاړ. سلطان سعید خان کاشغري پر بدخشان حمله وکړه، خو د بابر زوی هندال میرزا هغه ته ماته ورکړه او د بدخشان حکمراني د بابر له خوا سلیمان میرزا ته وسپارل سوه.

کندهار تر کامران وروسته شهزاده عسکري ته وسپارل سو او ده په (۹۳۰هـ = ۱۵۲۳م) د کندهار د چهل زینې په دالان جوړولو او کتیبه لیکلو لاس پوري کی او تر (۹۵۳هس = ۱۵۴٦م) پوري ئې پای ته ورساوه.

بابر د افغانستان یو نومیالی زړور خونرېزه پوه او مؤلف پاچا وو، چي له بلخ او بدخشان او کابل او کندهاره ئې تر ډهلي پوري پر یو لوی هیواد حکومت کاوه. ده په فارسي او ترکي شعر وایه او څو مهم تالیفونه لري او د (۹۳۷هـ = ۱۵۳۰م) کال په څلورمه خور – جمادي الثاني په آګره کي مړ او د ده د وصیت له مخي د کابل د بابر په باغ کي ښخ سو او د ده هدیره په (۱۰۵٦هـ = ۱٦۴٦م) کي شاه جهان جوړه کړه، چي تر اوسه په کابل کي مشهوره ده. تر ده وروسته د ده زوی نصرالدین همایون د ډهلي پر تخت کښېنوست او پنجاب، پېښور، لغمان، کابل، کندهار او بامیان ئې د خپل ورور شهزاده کامران د حکمرانۍ سیمه وبلله او بدخشان ئې د بابر د اکا جان میرزا زوی میرزا سلیمان ته وسپاره. د (۹۴۲هـ = ۱۵۳۵م) کال په شاوخوا کي صفوي سام میرزا له هراته پر کندهار یرغل وکی او د کندهار ښار ئې د میرزا کامران د حکمران له لاسه ویوست. هغه وو چي کامران له لاهوره کندهار ته راغی. سام میرزا ئې مات کی او کندهار ئې خواجه



په کابل کي د بابر مقبره

٦٦ -لمبر عکس




شېرشاه سوري

٦٧ –لمبرعکس

کلان بېگ ته وسپاره پخپله لاهور ته ولاړ او د بل کال په سر کي پخپله صفوي شاه طهماسپ کندهار بیا له خواجه کلان څخه واخیست او میرزا بداغ خان قاجار ته ئې وسپاره او هغه وخت چي شاه طهماسپ اېران ته ولاړ، بیا کامران له لاهوره راغی او کندهار ئې ونیو (۹۴۳هـ = ۱۵۳٦م).

خو همایون په هندوستان کي و نه سو کولای چي د خپل پلار د پاچهۍ مقام وساتي. دا ځکه چي بابر د لودیانو شهنشاهۍ برباد کړې او په هند کي ئې افغاني تاریخي عظمت ته صدمه رسولې وه، نو له همدې سببه پښتانه د خپل تاریخي عظمت د راګرځولو په تکل کي ول او د هند شهنشاهي ئې خپل موروثي ملک ګاڼه او څنګه چي سلطان ابراهیم لودي د بدي اداري او د سالم عقل د نه درلودلو په اثر افغاني قوت تیت کړی وو او نتیجه ئې د پاني پت په جګړه کي د بابر په مقابل کي ولیدله. نو ځکه په همدې وخت کي یو نابغه هوښیار پښتون لکه فرید خان مشهور په شېر شاه په هند کي د سوري له ټبره منځ ته راووت. په هند کي افغاني تیت قوتونه ئې سره راټول کړل او د افغاني عظمت نغری ئې بیا تود کی او د پښتنو د چارو تر تنظیم او د دوی تر اتحاد وروسته ئې پر همایون او مغولي قوتو حمله وکړه. همایون مات سو او د هند د شهنشاهۍ مقام بېرته د هغه د تاریخي خاوندانو په برخه سو. د ماتي په همدې کال د (۹۴۷هـ ۱۵۴۰م په رجب کي) همایون د سند عمرکوټ ته ورسېد او د شال او مستنګ او د افغانستان د جنوب ګرمسېر او سیستان له لاري هرات او مشهد ته ولاړ او صفوي دربار ته ئې پناه یووړه، خو میرزا کامران په کابل او میرزا عسکري او میرزا هندال په کندهار کي پناه سول او تر څه مودې وروسته میرزا کامران له کابله هڅه وکړه او په نارین کي ئې د هغه د حکمران سلیمان میرزا سره جګړه وکړه او هغه ئې په جبر د ځان تابع کی او تر هغه وروسته ئې پر کندهار یرغل وکی او هغه ئې د هندال میرزا له لاسه ویوست. میرزا عسکري ته ئې وسپاره او هندال د (جلال آباد) جوی شاهي ته مقرر سو او په افغانستان کي خطبه او سکه د کامران په نامه جاري سوه. ده تر هغي جګړې وروسته چي په (۹۴۸هـ = ۱۵۴۱م) کال ئې په اندراب کي د سلیمان میرزا سره وکړه، ټول بدخشان ئې د خپل هیواد سره یو ځای کی او له بدخشانه تر کندهار او له کابله د سند تر سینده ئې حکم کاوه او د حکومت مرکز ئې کابل وو.

خو همایون د صفوي له درباره مرسته واخیستله او په (۹۵۱هـ = ۱۵۴۴م) کال د

دېرشو زرو تنو سره د هرات له لاري د هلمند غاړي ته راورسېد او په بست کي ئې د کامران حکمرانان شاهم علي او مير خليج کلابند کړل او ډېر ژر ئې کندهار تر شپږو مياشتو کلابندۍ وروسته په (۹۵۲هـ) کال له ميرزا عسکري څخه ونيو او د هغه تړون سره سم چي د صفوي پاچا سره ئې کړی وو، هغه ښار ئې شهزاده مراد صفوي ته وسپاره.
څنګه چي هغه کوچنی شاهزاده په کندهار کي مړ سو نو همايون هغه ښار بېرم خان ته وسپاره او صفوي لښکريان ئې بېرته رخصت کړل او پخپله ئې کابل ته مخه کړه او د شاه کامران حکمرانان ورته تسليم سول او د (۹۵۳هـ = ۱۵۴۶م) کال په روژه کي کابل هم د همايون لاس ته ورغی او کامران غزني ته وتښتېد او له هغه ځايه ئې د سند ارغونيه حکمرانانو ته پناه يووړه.

همايون په همدې کال سليمان ميرزا د هندوکش له شمالي ولاياتو څخه ماوراء النهر ته وشاړه او هغه ولايتونه ئې هم د ځان کړل. بيا همايون په ډېر تلوار له شمالي سيمو څخه راغی او د (۹۵۴هـ =۱۵۴۷م) کال په لومړۍ خور (ربيع الاول) ئې کامران مات کی او هغه بدخشان ته وتښتېد او کابل د همايون لاس ته ورغی.

خو څنګه چي کامران په بدخشان او تالقان او بغلان کي څه نفوذ وموند، نو همايون ئې بې له ځنډه په تالقان کي تسليمېدو ته مجبور کی او د کولاب ولايت ته ئې واستاوه او ميرزا ابراهيم ئې په هغه ولايت کي پرېښود، خپله کابل ته راغئ (۹۵۴هـ =۱۵۴۷م)، خو کامران په کولاب کي يوه ډله راټوله کړه او د پيرمحمد خان په کومک ئې بدخشان ونيو، ځکه نو همايون دريم وار د هندوکش شمالي سيمو ته ولاړ او د هغو سيمو تر تصفيې وروسته ئې د ختلان او کولاب سيمي ميرزا کامران ته او د ظفر او تالقان کلا ئې ميرزا سليمان او ابراهيم ته او کندز او اشکمش او نارين ئې ميرزا هندال ته ورکړه او پخپله کابل ته راغی (۹۵۵هـ = ۱۵۴۸م) د روژې دوهمه ورځ.

د همايون څلورم سفر بلخ ته د پيرمحمد خان په مقابل کي وو خو ناکامه راوګرزېد (۹۵۶هـ = ۱۵۴۹م) او په (۹۷۵هـ) کال چي کامران بيا په شمالي ولايتو کي څه قوت وموند نو همايون پنځم وار هغې خوا ته ولاړ، خو د غوربند په جګړه کي ئې ماته وکړه او کامران بيا کابل ونيو، خو همايون ډېر ژر لښکر راټول کی او په اشترګرام کي ئې د کامران سره جګړه وکړه. کامران لغمان ته وتښتېد او همايون کابل ونيو او ميرزا عسکري ئې چي په دې جنګ کي نيول سوی وو، بدخشان او بلخ ته واستاوه، چي له هغه

ځایه عربستان ته ولاړ او هلته مړ سو (۹٦۵هـ)، خو کامران بیا د پښتنو د مهمندو او خلیل قبیلو څخه لښکر جوړ کی او د جلال آباد د چهار باغ کلا ئې محاصره کړه، څو همایون هغه په جګړه کې له خیبره پېښور ته وشاړه او بیا په (۹۵۸هـ =۱۵۵۱م) کال په چپرهار کې د دې دوو ورونو تر منځ جګړه وسوه. میرزا هندال ووژل سو او کامران هند ته وتښتېد، مګر سلطان آدم ګهکر هغه ونیو او په (۹٦۰هـ ۱۵۵۲م) کال ئې همایون ته وسپاره او همایون په بېرحمۍ ړوند کی.

په دې وخت کې چې د بابر اولاده په افغانستان کې پخپلو منځو کې سره اخته ول او همایون خپل ورونه له منځه ایستل او د افغانستان خاوره په وینو لړلې وه، په هند کې شېرشا سوري د مدنیت او نظم او ودانۍ او جهانداری ګټور بنسټونه کښېښوول، خو دا مدنیت پالونکی شهنشاه د (۹۵۲هـ = ۱۵۴۵م) کال د لومړۍ خور (ربیع الاول) پر لسمه ورځ د کالنجر د کلا د اور لګېدلو په یوه ناوړه پېښه کې مړ سو او د ده اولادې و نه سوه کولای د ده په شان د افغاني عظمت نغری تود وساتي او افغاني مشرانو چې پوه لاربښوونکې ئې نه درلود نو سره خپاره واره سول، خو له دې خوا همایون ځان د ورونو له جنجاله وزګار کی. خپل ورور شهزاده محمد حکیم ئې په کابل کې حکمران پرېښوو او پخپله د (۹٦۲هـ) کال د صفري په میاشت د پېښور له لاري د هند د نیولو په نیت وخوځېد او د (۹٦۲هـ) کال د روژې په سر کې د ډهلي پر تخت کښېنوست او د (۹٦۳هـ=۱۵۵۵م) د لومړۍ خور (ربیع الاول) پر پنځمه په ډهلي کې مړ سو.

او د ده پر ځای د ده دیارلس کلن زوی جلال الدین محمد اکبر (۹٦۳هـ = ۱۵۵۵م) کال د دوهمي خور (ربیع الثاني) پر ۱۲ د جمعې په ورځ په لاهور کې پاچا سو. څنګه چې د همایو ن د مړیني خبر کابل ته ورسېد، نو میرزا سلیمان او زوی ئې محمد اکبر کابل ته راغلل او محمد حکیم ئې د کابل په ښار کې څلور میاشتې کلا بند کی خو څنګه چې د اکبر لښکر کابل ته راورسېد، نو سلیمان بې له دې چې د کابل ښار ونیسي بېرته بدخشان ته ولاړ (۹٦۳هـ) او د کابل د چارو واګې د شهزاده محمد حکیم مور (ماه چوچک خانم) په لاس کې ونیولې او مختلف امیران سره په شخړه اخته ول، څو چې په (۹۷۰هـ = ۱۵٦۲م) کال د اکبر له درباره منعم خان خانان کابل ته وګومارل سو. دی د جلال آباد په چهار باغ کې د کابل د لښکر سره مخامخ، ماته ئې وکړه او هند ته وتښتېد. څنګه چې همایون کندهار د کلات غلجي شاه محمد ته سپارلی وو نو ځکه صفوي شاه

طهماسپ یو لښکر د شاه اسمعیل صفوي د نمسي سلطان حسین میرزا په مشرۍ کندهار ته راوخوځاوه او په (۹۴۶هـ) کال ئې د کندهار ښار له شاه محمد څخه ونیو.

همدارنګه په (۹۶۷هـ = ۱۵۵۹م) کال میرزا سلیمان له بدخشانه د بلخ د نیولو په نیت لښکر راویوست او د ګازران پر چینه باندي ئې د پیر محمد خان د لښکر سره جګړه وکړه، خو مات سو او زوی ئې محمد ابراهیم د دښمن په لاس ووژل سو.

تر هغه وروسته ابو االمعالي ترمذي د (۹۷۱هـ =۱۵۶۳م) کال په شاوخوا کي د اکبر له درباره کابل ته راوتښتېد او د محمد حکیم خور ئې وکړه او د شهزاده مور ئې د ځینو نورو امیرانو سره ووژله. شهزاده او د کابل مظلومینو د بدخشان له حکمران میرزا سلیمان څخه مرسته وغوښتله. میرزا د غوربند د پله سره د ابوالمعالي او کابل د لښکر سره مخامخ سو. ابو المعالي ئې وواژه او د (۹۷۱هـ =۱۵۶۳م کال د روژې پر ۱۷) ئې کابل ونیو. سلیمان کابل خپل زوم شهزاده محمد حکیم او میرزا سلطان امیدعلي ته پرېښوو پخپله بدخشان ته ولاړ او محمد حکیم د اکبري دربار په ملاتړ له کابله د سند تر سینده او له کندهاره د هندوکش تر سلسلې پوري خپلواک حکمران سو او د میرزا سلیمان نفوذ له منځه ولاړ (۹۷۲ هـ = ۱۵۶۶م). څنګه چي محمد حکیم په کابل کي غښتلی سو نو د خپل ماما فریدون په لمسه ئې له پېښوره پر لاهور یرغل وکی خو په (۹۷۴هـ = ۱۵۶۶م) کال اکبر شاه له اګرې څخه لاهور ته راغی او محمد حکیم ئې بېرته پېښور ته پر شا وشاړه.

خو د محمد حکیم په غیاب کي میرزا سلیمان له بدخشانه راغلی او کابل ئې کلابند کړی وو او چي د محمد حکیم د بېرته راتلو خبر ئې واورېد کابل ئې پرېښوو، بدخشان ته ولاړ او له هغه ځایه د خپل نمسي شاهرخ د ابراهیم د زوی له لاسه چي په بدخشان او اندراب او تالقان او کندوز کي غښتلی سوی وو، د کابل له لاري هند ته وتښتېد او د بدخشان حکمراني د شارخ میرزا سوه (۹۸۳هـ = ۱۵۷۵م). خو سلیمان له هنده د بیت الله د زیارت په پلمه ایران ته ولاړ او له هغه ځایه کندهار او کابل ته راغی او په (۹۸۷هـ = ۱۵۷۹م) کال ئې د محمد حکیم په مرسته پر بدخشان او خپل نمسي یرغل وکی او شاهرخ ورسره روغه وکړه. له تالقانه تر هندوکشه سلیمان ته پرېښوو او پخپله ئې د بدخشان اکتفا وکړه (۹۸۸هـ).

شهزاده محمد حکیم تر دې روغي وروسته له کابله د پېښور او لاهور خوا ته

لښکر ویوست او دا ښار ئې کلابند کی، خو د (۹۸۹هـ = ۱۵۸۱م) کال په محرمه اکبر دی د لاهور له شاوخوا څخه تر شا وشاړه او پخپل ورور پسي تر کابله ولاړ دا د ده لومړی سفر وو، مگر کابل او زابلستان ئې بېرته محمد حکیم ته وسپارل او د (۹۸۹هـ کال د صفر پر ۱۴) له هغه ځایه هندوستان ته وگرځېد، خو په بدخشان کي د میرزا سلیمان او شاهرخ اختلاف ورک نه سواو له دې اختلافه د بلخ حکمران عبدالله اوزبک گټه واخیسته. دواړه ئې کابل ته پر شا وشړل او بدخشان ئې د هندوکش تر سلسلې پوري د بلخ سره یو ځای کی.

شهزاده محمد حکیم د (۹۹۳هـ =۱۵۸۵م) کال د برات پر ۱۲ په کابل کي مړ سو او اکبر پاچا د کابل د ساتني د پاره کنورمان سنگه د نوي قوت سره راواستاوه او زین خان کوکه ئې د دې ځای حکمران وټاکه او کابل مستقیماً د اکبري هیواد برخه سو (۹۹۵هـ = ۱۵۸۶م). د اکبر لښکري د سوات او باجوړ په سیمو کي د پښتنو د توریالیو قبیلو سره ونښتلې او پخپله اکبر هم په (۹۹۷هـ = ۱۵۸۸م) کال پېښور ته راغی او دا کابل ته د ده دوهم سفر وو او په کابل کي تر یوې میاشتي تېرېدو وروسته ئې د کابل حکمراني کابلي قاسم خان ته ورکړه او پخپله پېښور ته وگرزېد، خو د روښاني حکمدارانو او د بایزید د زوی جلال الدین سره ئې د افغانستان په جگړه کي څلوېښت پنځوس زره شاهي سپاره او د اکبري دربار مهم غړي راجه بیربل د پښتنو له لاسه ووژل سول او غزني د روښانیانو لاس ته ورغی، چي تفصیل به ئې د روښانیانو تر عنوان لاندي راسي.

لکه چي د مخه مو ولیکل د کندهار ښار د صفوي شهزادگانو په لاس کي وو او له اکبري هیواده بېل سوی وو، ځکه نو په (۹۹۹هـ =۱۵۹۰م) کال خان خانان د بلوچستان له لاري پر کندهار حمله وکړه او کابلي شاه بېگ خان دا ښار بیا د اکبري هیواد برخه کړه (۱۰۰۳هـ = ۱۵۹۴م) او د اکبر د دورې تر پایه د کندهار حکمران وو او په (۱۰۱۱هـ = ۱۶۰۲م) کال ئې د بدخشاني شاهرخ زوی میرزا حسین چي پر کندهار ئې حمله کړې وه، غور ته پر شا وشاړه او په (۱۰۱۴هـ = ۱۶۰۵م) کال چي د هند شهنشاه جلال الدین محمد اکبر له دنیا ولاړ، د هغه زوی نورالدین جهانگیر ئې پر ځای کښېنوست. دا وخت د هرات صفوي حکمران حسین شاملو د سیستان د حاکم په مرسته پر کندهار حمله وکړه، خو شاه بېگ خان په کلا کي بندي کی پښې ئې ټینگي کړې او جهانگیر هم له هنده ملاتړ لښکر کندهار ته راواستاوه او صفوي لښکر ناکامه وتښتېدل او د کندهار او سند او

ملتان حکمراني د جهانګیر له درباره غازي خان ته ورکړه سوه (۱۰۱۴هـ = ۱۶۰۵م). جهانګیر په (۱۰۲۰هـ = ۱۶۱۱م) کال چي روښاني پښتون احداد پر کابل یرغل وکی نو جهانګیر د شاه بېګ خان پر ځای قلیچ خان د کابل په حکمرانۍ وګوماره ( د اکبر او جهانګیر سره د روښانیانو د جګړو تفصیل دي د روښانانیانو په فصل کي ولوستل سي).

ځنګه چي کندهار تل د صفوي او بابري پاچهانو د جګړې ځای وو، اوس هغه د جهانګیر لاس ته ورغلی وو، خو په (۱۰۳۱هـ = ۱۶۲۱م) کال هغه شاه عباس صفوي ونیو او جهانګیر که څه هم په (۱۰۳۵هـ = ۱۶۲۵م) کال کابل ته خپل دوهم سفر وکی، مګر پر دې ئې برى و نه موند چي کندهار ته لښکر وباسي، ځکه ئې نو خواجه ابوالحسن د کابل او بنګښ د سیمو د سند تر سینده حکمران وټاکه او په خپله هند ته ولاړ او د (۱۰۳۷هـ = ۱۶۲۷م) کال د صفر په ۲۸ د یکشنبې په ورځ په لاهور کي مړ سو (۷۰ عکس) او د ده پر ځای شاهزاده خرم د ده زوی د هند پر تخت کښېنوست او په شهاب الدین محمد شاه جهان مشهور سو. د بایزید روښان د کهاله جنګونه چي په تېرا او پېښور او کابل او غزني او بنګښ کي د همایون او اکبر له عصره شروع سوي ول. د شاهجهان د جلوس تر وخته ئې دوام وکی، ځکه نو د ډهلي د دربار حکمرانان د افغانستان په سیمو کي د سختو مقابلو سره مخامخ ول (شرح به ئې د روښانیانو تر عنوان لاندي راسي). جهانګیر چي له دنیا ولاړ د افغانستان حکمران ظفر خان د روښاني احداد سره په جګړه اخته وو. په دې وخت کي د بلخ حکمدار نذرمحمد خان فرصت غنیمت وګاڼه او د بامیان د ضحاک پر کلا ئې یرغل وکی او د افغانستان د شمالي ولایاتو د ټولو سیمو تر نیولو وروسته تر هندوکش راتېر سو او کابل ئې په خونړیو جګړو کي درې میاشتي کلابند کی. شاهجهان خواجه ابوالحسن او مومند لښکر خان د ۱۵ زرو سپرو سره او سپه سالار مهابت خان د شلو زرو سپرو سره افغانستان ته راواستاوه (د ۱۰۳۷هـ = ۱۶۲۸م کال د ذیقعدې میاشت) او نذر محمد د غور له لاري بلخ ته پر شا سو او کابل د لښکر خان لاس ته ورغی (د ۱۰۳۸هـ = ۱۶۲۸م کال د محرمي میاشت). د دې کال په پای کي د شیخ رکن الدین افغان زوی کمال الدین د اټک له غاړو بیا تر کابل پوري پښتانه قبایل د ځان سره یو لاس کړه او د ډهلي د حکومت پر خلاف پورته سو او پېښور ئې کلابند کی، خو د کابل حکمران اسماعیل خان پورته سوي خلک سره تیت کړه او پېښور ئې وساته (د ۱۰۳۸هـ = ۱۶۲۸م کال د ذیحجې میاشت).

په اکبري عصر کي حسن خان ترين د اوسني بلوچستان د پښين د سيمو له غټو مشرانو څخه وو، چي زوی ئې شېر خان ترين د صفوي او د ډهلي د تيموري حکومتو تر منځ خپلواک اوسېد او په (۱۰۴۱هـ = ۱٦۳۱م) کال ئې د سيستان د نيولو هڅه هم وکړه. په دې وخت کي د کندهار صفوي حکمران علي مردان پر پښين حمله وکړه او شېر خان د دوکۍ او چيټالي کلاوو ته پناه يووړه خو شاهجهان د (۱۰۴۷هـ = ۱٦۳۷م) کال په منځ کي د کندهار خوا ته لښکر راواستاوه. صفوي حکمران علي مردان خان تسليم سو او کندهار ئې د شاهجهان لښکر ته وسپاره او د کندهار محلي مشران ملک مغدود او کامران (په دې کتاب کي دي د ابداليانو شرح ته رجوع وسي) د شاهجهان له درباره رسماً د کندهار حکمداران وپېژندل سول او د شاهجهان لښکر د هلمند تر غاړو او زمينداور او بست او گرشک پوري سيمي ونيولې (د ۱۰۴۸هـ = ۱٦۳۸م کال دريمه خور= جمادي الاولي) او د (۱۰۴۹هـ) په محرمه کي شاهجهان کابل ته خپل لومړی سفر وکی او د يوسفزو د جنبش د مخنيوي له پاره ئې چي په نوښار او پېښور کي ئې د شاهجهان غټ حکمرانان وژلي ول، علي مردان خان وگوماره (۱۰۵۰هـ) او سعيد خان ئې په کابل او قليچ خان ئې په کندهار کي مقرر کړ او نيم افغانستان ئې د هندوکش له حدودو څخه تر کندهاره پوري د ډهلي د تيموري دولت برخه کړه، خو پښتانه ملک اودل او ملک حمزه چي په هلمند او سيستان کي ئې خپله خپلواکي ساتله د (۱۰۴۹هـ) کال په برات کي ئې د هلمند پر غاړه د شاهجهان د لښکر سره جگړه وکړه خو ناکامه له منځه ولاړه او شاهجهان پر کندهار باندي د صفوي حملو د مخنيوي له پاره شهزاده داراشکوه د پنځوسو زرو سپرو سره وگوماره او بيا څنگه چي د کندهار صفوي قواوو او د هندوکش د شمالي ولاياتو حکمران نذر محمد خان کابل تهديداوه نو ځکه شاهجهان د (۱۰۵۵هـ = ۱٦۴۵م) کال په ذيحجه مياشت کي شهزاده مراد بخش د پنځوسو زرو سپرو او لسو زرو پليو او درنې توپخانې سره راوخوځېدل او دی پخپله هم د (۱۰۵٦هـ) کال په دوهمه خور کابل ته راورسېد او بې له ځنډه ئې د پروان او د هندوکش د درو له لاري پر شمالي ولاياتو يرغل وکئ او د بدخشان ټولي سيمي ئې تر بلخه پوري ونيولې او د ډهلي د تيموري هيواد وېش ئې د آمو تر سينده ورساوه او خواص خان ئې د کندهار په صوبه دارۍ وټاکه او خواجه عبدالرحمٰن ئې په بدخشان او سعادت خان ئې په ترمذ او اسدالله ئې په زميندا ور او ذوالفقار خان ئې په کابل کي وگومارل او پخپله د پېښور پر

لار لاهور ته ولاړ، خو د نذرمحمد خان زوی عبدالعزیز خان د توران والي په (۱۰۵۷هـ = ۱۶۴۷م) کال پر بلخ بیا یرغل وکی او د ده حملې د هندوکش تر کلاوو پورې ورسېدلې، ځکه نو شاهجهان کابل ته دریم سفر وکی او شهزاده اورنگ زېب د خپلو لښکرو سره د هندوکش په شمالي سیمو کې د اوزبکو د حملو د مخنیوي له پاره تر بلخ او اندخود او میمنې پورې پر مخ ولاړل، څنگه چې د هندوکش د شمال ساتنه سخته وه، ځکه نو شاهجهان بلخ نذرمحمد خان ته وسپاره او پخپله هند ته ولاړ (۱۰۵۷هـ = ۱۶۴۷م کال د رجب میاشت).

صفویانو کندهار هېر نه کی او په (۱۰۵۸هـ) کال ئې لومړی د کندهار د ښار د غوښتلو په باب کې د دوستۍ له لارې یو لیک شاهجهان ته واستاوه او تر هغه وروسته پخپله شاه عباس ثاني د لوی لښکر او پنځو بالیمز توپو سره له اصفهانه راووت پر کندهار ئې یرغل وکی او دا ښار ئې په ژمي کې د پنځوسو زرو سپرو په مرسته کلابند کی. د ډهلي له درباره شهزاده اورنگ زېب د اویا زره تنو لښکر د لاهور او کابل څخه کندهار ته متوجه سو، خو صفوي پاچا تر خونړیو جگړو وروسته کندهار ونیو او محراب خان ئې د لسو زرو سپرو سره هلته پرېښود. پخپله دی هرات ته ولاړ. شهزاده اورنگ زېب د ( ۱۰۵۹هـ = ۱۶۴۹م) کال په دریمه خور (جمادي الاولي) محراب په کندهار کې کلابند کی او پخپله شاهجهان هم کابل ته څلورم سفر وکی خو څنگه چې ئې کار پر مخ نه بوتی، نو امر ئې وکی چې اورنگ زېب دې د کندهار څلور میاشتنۍ کلابندي پرېږدي او لاهور ته دې ولاړ سي. دوه کاله وروسته شاهجهان کابل ته پنځم سفر وکی او شهزاده اورنگ زېب ئې د پنځوسو زرو سپرو او پلیو او شلو کلانړوونکو توپو او شلو میانه توپو او لسو مستو جنگي پیلانو سره کندهار ته واستاوه او سعدالله خان ئې د نور لښکر سره د شهزاده د ملاتړ په توگه وگوماره. دې درنو قواوو چې کندهار بیا کلابند کړی وو ، تر دوو میاشتو پورې ئې څه کار و نه سو کولای، هغه وو چې بېرته بې نتیجې کابل او لاهور ته ولاړل (د ۱۰۶۱هـ = ۱۶۵۰م د روژې میاشت). بل کال بیا شاهجهان یو لوی لښکر د شهزاده داراشکوه په مشرۍ د کندهار د دریم وار کلابندۍ له پاره راواستاوه چې په دې لښکر کې یو سل اویا جنگي پیلان او دېرش زره د توپ گولۍ وې. د کندهار کروړ حکمران محراب خان بیا ځان ټینگ کی او د کندهار کلا ئې پنځه میاشتې وساتله او شاهجهان بې له دې چې کندهار ونیسي دریم وار هم

ناکامه هند ته ولاړ او په دې توګه یوازې کابل او غزنی د شاهجهان په لاس کې پاته سول او د هغو د ساتنې له پاره ئې بهادر خان افغان وګوماره. کندهار او سیستان او هرات د صفویانو په لاس کې ول او شمالي ولایات له میمنې او اندخود څخه نیولې تر بلخ او تخارستان او هندوکش پورې د توران په حکمدارانو چې د نذرمحمد خان اولاده وه، اړه درلوده. کله چې شاهجهان په (۱۰۶۸هـ = ۱۶۵۷م) کال د خپل زوی اورنګزیب له خوا بندي سو او پر ځای ئې اورنګزیب د ډهلي پر تخت کښېنوست، نو اورنګزیب مهابت خان د کابل حکمران او شمشېر خان د غزني حاکم او سعید خان د افغاني کوهستان او پېښور فوج دار وټاکه.

د عالمګیر عصر د افغانستان ډېره له شوره ډکه دوره وه چې تل د هیواد سیمي له اټک څخه تر کابله د دربار د لښکرو او پښتنو تر منځ د جګړو ډګر وو.

لومړی د پېښور د شمال یوسفزیانو د باکو او ملا چالاک او سلطان محمود ګدون په مشرۍ پر پکهلي یرغل وکی. عالمګیر په (۱۰۷۷هـ = ۱۶۶۶م) د هغو د مخنیوي له پاره د اټک فوجدار کامل خان وګوماره خو د (۱۰۷۹هـ = ۱۶۶۸م) کال په شاوخوا کې ایمل خان مومند (چې د ایمل شاه په نامه ئې سکه وهله) په خیبر کې د خوشحال خان خټک (نومیالی او جنګیالی پښتون او د پښتو نامتو شاعر) په ملګرۍ د عالمګیر د قواوو پر خلاف ډېر جنګونه وکړل او درې کاله عالمګیر پخپله د دوی د مخنیوي له پاره په حسن ابدال کې پروت وو او شهزاده محمد اعظم په کابل کې وو او آغر خان د پښتنو سره خونړۍ جګړې وکړې، څو چې عالمګیر د تهترو او دوابه او نوښار او کنداب او خاپس تر پنځو جنګو او تقریباً د دواړو خواوو د یو لک تنو تر وژلو وروسته و نه سوه کولای چې د پښتنو نهضت له منځه یوسي، نو له دې اوږدې جګړې څخه ئې زړه تنګ سو. پخپله ډهلي ته ولاړ (۱۰۸۱هـ) او ایمل خان په لغمان کې د آغر خان سره خورا لوی خونړی جنګ وکی، څو چې په (۱۱۰۲هـ =۱۶۹۰م) کال آغر د پښتنو له خوا ووژل سو او د عالمګیر د دورې په پای کې شهزاده محمد اعظم بهادر شاه په کابل او پېښور کې حکمران وو چې په (۱۱۱۴هـ = ۱۷۰۲م) کال ئې د پښتنو قبایلو یو غټ مشر پردل خان چې د خپل لښکر سره له خوسته کابل ته راتی د کابل او پېښور د لارې د بندېدو او بلوا له بېرې وواژه.

عالمګیر چې په (۱۱۱۸هـ = ۱۷۰۶م) کال مړ سو معظم له کابله لاهور ته ولاړ او د

پاچهۍ بيرغ ئې پورته کی او د ډهلي د تيموري دورې په پای کې ناصر د کابل او پېښور او باقر خان د غزني حکمرانان ول او کندهار تر پښين او مستنګ او ډېره جاتو پوري د هوتکي پاچهانو په لاس کې وو. څو چې په (۱۱۵۱هـ = ۱۷۳۸م) کال نادر افشار د بابر د اولادې د پاچهۍ کمبله تر (۲۴۰) کالو وروسته له افغانستانه ټوله کړه. په افغانستان کې د هند د تيموري دورې دوه نيمي پېړۍ موده په خونړيو جګړو تېره سوه او افغانستان د ډهلي د امپراطورۍ او د ايران د صفويانو او د ماوراء النهر د توراني پاچهانو د درو لويو قوتونو د مخامخېدو او يو ځای کېدو نقطه وه، ځکه ئې نو د پاچهانو له مدنيت روزلو او صنعت او ادب پاللو څخه برخه وانه خيسته او دوه نيمي پېړۍ د خارجي تېري کوونکو سر د داخلي آزادۍ غوښتونکو په سختو جګړو کې وران سو او په افغانستان کې د هند د تيموري مدنيت له ودانيو او عمران څخه کمه نخښه و نه ليده سوه. بې له قهره او وينو او جاسوسۍ.

په افغانستان کې د خارجيانو د دې دوه نيمو پېړيو د ورانيو منظر ډېر زړه دردوونکی دئ او هغه څه چې د چنګېز او تيمور تر چور او چپاو وروسته د هرات د تيموريانو دولت جبيره کړي او مدنيت او صنعت او ادبي آثار ئې منځ ته راوړي ول، هغه په دې موده کې وران سول. خو همدا دوره د افغان ملت د خپلواکۍ غوښتلو او وطن سره د ميني درلودلو د حس خورا ښه ښکارندوی او مظهر دئ چې دوه نيمي پېړۍ د درو مدهشو قوتو سره وجنګېد او پردي قوتونه ئې پرې نه ښوول چې د دوی پر هيواد په خوښۍ او آرامۍ حکمراني وکړي.

په دې وخت کې د ډهلي تيموري پاچهانو په کابل او کندهار کې او صفوي پاچهانو په هرات او سيستان کې او توراني پاچهانو په بلخ او بدخشان کې سکه وهله او څنګه چې افغاني قومونه له درو خواو څخه تهديدېدل ځکه نو په دوی کې د مقاومت روح او د اتونومي ساتل تقويه کېده او پښتو ادبيات په همدې عصر کې نضج او پوخوالي ته ورسېدل او د آزادۍ او خپلواکۍ غوښتلو لارښوونکو لکه پير روښان او خوشحال خان او نورو په پښتو ژبه ډېر قيمي آثار وليکل او د همدې دورې له مميزاتو څخه دا هم دي چې د پښتو په ادبياتو کې د هند د بابري پاچهانو د پردۍ سلطې په مقابل کې يو راز سخته کرکه او تنفر پيدا سو.

په افغانستان کې د ډهلي د تيموريانو ملکي او لښکري تشکيلات د هند د

لودیانو او سوریانو پر اساس ول او مستر سمت او دولافوز په قول شېرشاهي مدني اساسو ته ئې توسعه ورکړې ده او افغانستان ئې پر څلورو صوبو وېشلی وو، چې له هغې جملې څخه د کابل صوبې د بابر د شهنشاهۍ له ابتدا څخه بیا د نادر افشار تر فتح پوري په ډهلي اړه درلوده، خو دوهمه صوبه کندهار کله په ډهلي او کله د اېران په صفویه اړه درلودلې وه. دریمه صوبه بدخشان د ډهلي د تیموریانو او د هغو د پلرني خپلوانو تر منځ د شخړیو ځای وو. څلورمه صوبه بلخ هم کله د ډهلي په بابري کهول اړه درلوده او کله ئې د توران په پاچهانو پوري. د کابل صوبې د بابر په وخت کي د ده په قول شل محله درلودل او عایدات ئې شل لکه شاهرخۍ وې چې د یو کروړ او اته ویشت لکه دام سره برابري وې او همدا صوبه د ابوالفضل په قول له پامیر او ګلګت او سوات او بنیر او باجوړ څخه تر کندهار او زابلستان پوري غځېدلې وه او په اکبري عصر کي پر دوه سرکاره کابل او کندهار وېشله کېدله او د کابل سرکار (۲۲) محله وه او (۴۶۵، ۸۰۵۰۷) دام نغدي او (۱۷۸، ۱۳۷) دام مالیه او (۱۸۷، ۲۸) سپاره او (۷۰۰، ۲۱۲) پلي او پخپله د کابل ښار (۴۱۰، ۷۵۸، ۱۲) دام نغد عایدات درلودل.

خو د کندهار سرکار (۲۴) محله او (۸۱۱۴) تومان (د کلیو مجموعه) او (۶۰۰، ۲۹) نغد دیناره او (۷۷۵، ۴۵) پسونه او (۴۵) بلوڅي آسان او (۹۷۷، ۷۵۱، ۳) خرواره غله او (۴۲۰) منه وریجي او دوه خرواره اوړه او (۲۰) منه غوړي او (۸۷۵، ۱۳) سپاره او (۲۶۰، ۲۷) پلي دولتي عایدات ول.

لاهوري عبدالحمید د شاهجهان په وخت کي د بابر د اولادې د هیواد له **۲۲** صوبو څخه د افغانستان څلور صوبې او د هغو دولتي عایدات داسي شمېرلي دي:

کابل شپاړس کروړه دام، کندهار شپږ کروړه دام، بلخ اته کروړه دام او بدخشان څلور کروړه دام (هر پنځه دامه د (۲) آنو سره برابر دي).

د ابوالفضل په قول هره صوبه پر څو سرکارو، ښارو، کلاوو او تاڼو وېشله کېده او صوبه دار ملکي او نظامي آمر وو، چې تر دوولسو کروړو دامه پوري ئې تنخا رسېدله. د صوبه دار تر امر لاندي یو کومکي (موقتي نظامي آمر) او تعینات (دایمي نظامي آمر) او فوجدار (د لوی نظامي افسر مرستیال) تاڼه دار او کوتوال یعني کلاوال په مهمو مرکزو کي د هیواد د ښارو، لارو او نظامي کلاوو عامه امنیت اداره کاوه او کله هم یوه صوبه د تیول (اقطاع) په توګه یوه ته د امیرانو او شهزادګانو ورکوله کېدله

او هغه ته ئې تيولدار وايه. په هره صوبه او ښار کې د مامور محاسبه او ملي چارو دېوان وو او د شرعي محکمو او عدليه چارې هم قاضي اداره کولې، چې د لښکر له پاره (د اردو عدالت) يو تن ځانته بېل عسکر قاضي موجود وو، بخشي يو مامور وو، چې د لښکر تنخا او لوازم ئې تهيه کوله او واقعه نويس د استخبار او جاسوسۍ چارې اداره کولې چې په هر ځای کې ئې د (هرکاره) په نامه جاسوسان درلوده او کله د ډهلي د بابر د اولادې په دربار کې د ناظم او نظامت په نامه هم فوق العاده تنظيمه رئيسان په موقتي توګه د ځينو مهمو چارو له پاره ټاکل کېدل او د دې ټولو دولتي کارکوونکو رتبې او تنخاوې دا ډول وې: لومړی لس زری (ده هزاری) چې (۷۰۰) اسان او دوه سوه پيلان او دوه سوه بار وړونکي څاروي او (۳۲۰) ګاډۍ (عرادې) ئې تر امر لاندې وې او د مياشتې ئې له (٦۰) زرو روپو تنخا اخيستله.

دا رتبې له لس زري (ده هزاري) څخه تر لس باشي (ده باشي) پوري (٦٦) رتبو ته رسېدلې او هر منصب له کښتي خوا له پنځه زري څخه د تنخا له حيثه درې مرتبې درلودلې مثلاً لومړی پنځه زری، دوهم او دريم پنځه زری.

د ډهلي د تيموري دورې له پاتو ودانيو څخه په افغانستان کې: يو د کندهار د اوسني ښار لمر لوېدو خوا ته د سرپوزې په غره کې د چهل زينې دالان دئ چې د هغه دالان د ليکني له مخې د هغه ځای ودانۍ په (۹۳۰هـ) کال کې ميرزا کامران او ميرزا عسکري او ميرزا هندال شروع کړې او په (۹۵۳هـ) کال ئې پای ته رسولې ده او تر هغو وروسته يو اکبري منصبدار مير معصوم نامي په (۱۰۰۴هـ) کال هلته د ماهرو ډبر توږونکو په واسطه په څلور کاله کې يوه ليکنه (کتيبه) د همايون او اکبر په نامه کيندلې ده. بله ليکنه دکندهاري بابا حسن ابدال د خوريي سيدحسن زنجيرپا د مزار کتيبه ده چې همدې مير معصوم په (۱۰۰۱هـ) کال کيندلې ده او همدا راز د کندهار د شمال خوا ته څلوېښت ميله ليري په خاکرېز کې د سيد عبدالجليل (مشهور په شاه مقصود) د مزار ودانۍ او کتيبه ده چې په (۱۰۵۵هـ) کال د سيد معصوم د زوی مير بزرک له خوا ودانه سوې او کيندلې سوې ده. سيد عبدالجليل د سلطان خليل زوی او د سلطان محمد نمسی په (۸۵۴هـ) کې مړ دئ.

د هغه وخت بله کتيبه د سيد محمد مشهور په سيد شېر قلندر د انصاري د زوی د مزار کتيبه ده، چې د تاريخ معصومي په قول د ۹۳۳هـ کال په محرمه کې وفات سوی او

په (۱۰۰۵هـ) کال نوموړي میر معصوم د کندهار د پنجوائي د سپېروان په غره کي کيندلې ده او ودانۍ ئې باندي جوړه کړې ده. بل د کندهار چار باغ دئ چي د ابوالفضل په قول د بابر له ودانيو څخه وو.

خو په کابل کي د شهرآراء باغ او چارباغ او د آهو باغ د عبدالحمید په قول د بابر د ودانيو له بقایاو څخه ول، چي جهانگیر ئې پخپل تزک کي هم ستاینه کړې ده. همدا شان د پغمان باغ (میرزا الغ بیگ او بابر جوړ کړی) او د بابر تخت چي پخپله د ده په امر په ۹۱۴هـ کال جوړ سوی او په (۱۰۱۶هـ) کال جهانگیر د کابل جنوبي خوا ته بشپړ کی او همدا راز د کابل چارچته (مشهور بازار چي علیمردان خان جوړ کړی وو)، د شور بازار مسجد (چي اورنگزېب ودان کړی وو)، د وفا باغ چي په (۹۱۴هـ بابر ودان کی)، د شهباز کلا (چي د ابو الفضل په قول په ۹۹۸هـ کال اکبر جوړه کړې وه) او د استالف باغ او د بابر د مزار مرمرین مسجد او د نملې باغ (د کابل لمر ختيځي خوا ته په ۱۰۵٦هـ کال ودان سوی) د شاهجهان له ودانيو څخه دي.

د کابل حصار چي له پخوا موجود وو. د جهانگیري تزک په قول میرزا کامران ترمیم کی او د بالاحصار ودانۍ د (۱۰۱۵هـ) کال په صفره کي د جهانگیر په امر ودانی سوې، خو د کندهار د ښار حصار چي په (۱۱۵۱هـ) کال نادرشاه وران کی او له پخوانۍ زمانې موجود وو، د عبدالحمید په قول شاهجهان هغه د اته لکو روپو په مصرف ترمیم کی. د کابل شمالي خوا ته د پروان کلا (اوسنی جبل السراج) هم په (۹۵۵هـ) کال همایون ودانه کړه چي د ده د لښکر مرکز وو.

د ډهلي د تیموري پاچهانو په وختو کي کابل او کندهار او بلخ او بدخشان دارالضرب هم ول او د ابوالفضل په قول د اکبر په عصر کي کابل یو له هغو څلورو صوبو څخه وو، چي د اکبر طلایي سکه پکښې وهله کېدله، په څلورو واړو صوبو کي د ډهلي د تیموري یا د صفوي پاچهانو له خوا د سپنو زرو او مسو سکې وهلي کېدلې او د جهانگیر په وخت کي په کندهار کي مسي سکې وهلي سوي دي، چي د تقویمي شمسي برجو شکل لري. همدا شان جهانگیر د خپل جلوس پر ۱۴ کال په کندهار کي د سپینو زرو روپۍ سکه ووهله چي دا بیت لري: (از جهانگیر بن اکبر شاه سکه قندهار شد د لخواه).

په افغانستان کي د ډهلي د تیموریانو د وختو علمي او ادبي نومیالي دا دي:

ابتري بدخشي (شاعر) ابراهیم بېټني (د مخزن افغاني بشپړونکی)، ملک ابوالفتح سیستاني (سردار شاعر)، آتشي قندهاری (شاعر- په ۹۷۳ھ کي مړ دئ)، شیخ احمد مجدد کابلی (سر هند عارف - ۹۷۱ - ۱۰۳۴ھ)، ارزاني (پښتو شاعر د ۹۵۰ھ په شاوخوا کي)، اشرف خان هجري (د خوشحال خټک زوی، پښتو شاعر)، میر اعجاز هروي (شاعر او نثر لیکونکی)، سلیم لودي افغان (شاعر)، افضل خان خټک (په ۱۱۸۳ھ کي مړ او د پښتو د تاریخ مرصع مؤلف وو)، ملا الف هوتک (د پښتو بحرالایمان ناظم - ۱۰۱۹ھ)، امام الدین متي زی (۱۰۲۰ - ۱۰۶۸ھ) د تاریخ افغان مؤلف، اماني کابلی (شاعر)، اماني افغان (شاعر-د ۱۰۷۷ھ په شاوخوا کي)، امیر (د پښتو شاعر - ۱۰۳۳ھ)، انوري هروي (شاعر)، بابا بلخي (شاعر - د ۹۵۰ھ شاخوا)، بابو جان (د پښتو شاعر - د ۱۰۵۰ھ شاوخوا)، خواجه باقي بالله کابلی (عارف او د سلسلة الاحرار مؤلف ۹۷۱ - ۱۰۱۲ھ)، شیخ بایزید افغان (د عالمګیر د وختو نامتو زاهد)، بایزید روښان (پښتون مشر او لیکونکی)، بای خان (پښتو شاعر - د ۱۱۰۰ھ په شاوخوا کي)، شیخ بستان بړیڅ (پښتون شاعر او عارف چي په ۱۰۰۲ھ کي مړ دئ)، بنایي کابلی (د همایون د وختو شاعر)، بوالعجب کابلی (د اکبري د دوري شاعر)، جهانګیر هروي (د مظهر الاثار ناظم چي په ۹۴۶ھ مړ دئ)، غزنوي (شاعر ۹۷۳ھ کال په پېښور کي مړ دئ)، تادیب هروي (شاعر ۱۰۸۰ھ)، تاش محمد کندزی (د حجة الاورنګ شاهیه مؤلف- ۱۱۰۰ھ)، ترابي بلخي (شاعر)، خوشحال خان خټک (د پښتنو نومیالی شاعر او جنګیالی مشر)، سلطان کندهاری (د اکبر د وختو شاعر)، ثابت بدخشي(شاعر)، ثابت بړیڅ (پښتون عارف)، ثاني خان هروي (د اکبري د دوري شاعر)، حبیبي کابلی (د یوسف او زلیخا ناظم- ۱۰۹۰ھ)، قاضي نظام بدخشي (د بابر د دوري قاضي خان)، حسام الدین بدخشي (د بابر او همایون د دوري قاضي)، حلیمه (پښتنه شاعره- د خوشحال خان خټک لور)، ملک حمزه سیستانی (شاعر- ۱۰۸۳ھ)، حمید ماشوخېل مومند (پښتو شاعر- ۱۱۰۰ھ)، حمید ګل (پښتو شاعر)، خان ګل خلیل (پښتو شاعر)، خاني کابلی (شاعر - ۹۸۵ھ)، خرد بېګي کابلی (شاعر- چي په ۹۷۵ھ کي مړ دئ)، خواندمیر (د حبیب السیر او خلاصة الاخبار او دستور الوزراء او نورو لیکونکی - په ۹۴۱ھ کي مړ دئ)، خواجه زاده کابلی (د اکبر د عصر شاعر)، خواجه حسن هروي (شاعر- چي په ۹۷۹ھ کي مړ دئ)، خواجه محمد بنګښ (د

عالمگیري عصر پښتو شاعر)، داعي کشمي (شاعر- په ۹۹۴ھ کال مړ دئ)، درویزه ننگرهاری (د پښتو لیکونکی او نامتو مبلغ)، دولت لوانی (د پښتو شاعر- د ۱۰۵۸ھ په شاوخوا کي)، رابعه کندهاری (د برابر د عصر شاعره)، دوست محمد کاکړ (شاعر او د پښتو غرغښت نامې مؤلف - ۹۲۹ھ)، دبیري کابلی (د شاهجهان د وختو شاعر)، ربیع بلخي (شاعر - ۱۰۸۰ھ)، رحمان بابا (د پېښور د پښتو نومیالی شاعر او نامتو عارف)، رونقي بدخشي (شاعر - په ۹۶۴ھ کي مړ دئ)، زایر بدخشي (شاعر په ۱۰۶۷ھ کي مړ دئ)، ساغري هروي (شاعر-د ۹۵۰ په شاوخوا کي)، سروري کابلی (د عالمگیر د عصر شاعر)، زرغونه کندهاری (د پښتو شاعره چي په ۹۰۳ھ کال ئې د سعدي بوستان په پښتو نظم کی)، سکندر خان (د پښتو شاعر او د خوشحال خټک زوی)، سلطان کندهاری (د اکبر د عصر شاعر)، سلطان علي اوبهي هروي (شاعر د ۹۵۰ھ په شاوخوا کي)، سلطان محمد خندان (د کابل خطاط او شاعر-د ۱۱۰۰ھ کال په شاوخوا کي)، سوسني کابلی (شاعر او د جهانگیر د عصر آمر)، سید احمد خټک (د اکبري عصر له مؤلفانو څخه)، سیف خان خوستی قطغني (په موسیقي کي د راگ پن مؤلف او د شاهجهان د وختو افسر - چي په ۱۰۹۵ھ کي مړ دئ)، ملا شاه بدخشي (شاعر او د تفسیر لیکونکی په ۱۰۷۰ھ کي مړ دئ)، شجاع سیستانی (شاعر)، شوخي هروي (شاعر)، شیدای بلخي (د بابر د حضور له پوهانو څخه وو)، امیر شېرعلي خان لودي (د مراة الخیال د تذکرې مؤلف - ۱۱۰۲ھ)، شېر محمد هوتک کندهاری (۱۰۹۲ - ۱۱۷۵ھ د اسرار العارفین ناظم په پښتو کي)، شیرمحمد ننگرهاری (د پښتو شاعر - ۱۱۰۰ھ)، صادق کندهاری (د همایون د عصر شاعر)، صبوحي بدخشي (شاعر - چي په ۹۷۳ھ کي مړ دئ)، صبوحي کابلی (د اکبر د دربار شاعر)، صدر خان خټک (د پښتو شاعر او د خوشحال خان خټک زوی)، حاجي عارف کندهاری (د بېرم خان د دربار شاعر او مؤرخ او په تاریخ کي د مطلع او مقطع لیکونکی - ۹۸۶ھ)، عارف کابلی (شاعر ۱۰۰۰ھ)، ملا عالم گلبهاری (د اکبر د وختو شاعر او د صلصلة الجرس ناظم او دلالة العقل او بحرالوجود او عوالم الاثار او فواتح الولایه لیکونکی چي په ۹۹۲ھ کي مړ دئ)، عباس سرواني (د تاریخ شېرشاهي مؤلف)، عبدالسلام پشاوری (د پښتو لیکونکی او د درویزه نمسی)، عبدالرحمٰن بختیار (۹۰۰ھ د شاوخوا عارف)، عبدالعزیز هروي (د بابر د وختو عالم)، عبدالرحمٰن رمزي بدخشي (د ردالشیعه او

اثبات نبوت مؤلف)، میر عبدالله د میر نعمان زوی (شاعر او د نقشبندیه له مشایخو ځخه وو)، عبدالعلي تالقاني (د انشاه لیکونکی –۱۰۶۰ھ)، عبدالله نیازي (د اکبري دورې عارف چي په ۱۰۰۰ھ کي مړ دئ او د شیخ سلیم چشتي او سید محمد جونپوري شاګرد)، عبدالله (د پښتو شاعر د ۱۰۰۰ھ په شاوخوا کي)، د هزاره د ضلع عبدالرحمٰن مانکراوي (په اکبري عصر کي د حسینه مؤلف)، عبدالرحیم منکراوي (د اکبر په عصر کي د ردالبدع مؤلف)، عبدالوهاب منکراوي (د اکبر په عصر کي د کنزالدقایق ناظم)، عبدالرسول د سید علي زوی (په ۱۱۱۸ھ کال کي د مجمع اللغات والاسماء مؤلف)، عبدالقادر خټک (د پښتو شاعر او د خوشحال خان زوی)، عبدالصمد بدخشي (د ۹۵۰ھ د شاوخوا شاعر)، عبدالرحیم هوتک کندهاری (د پښتوشاعر)، عبدالرشید د سلطان حسین زوی (د ۱۱۰۰ھ په شاوخواکي د رشیدالبیان ناظم)، عبدالرزاق کابلی (د شاهجهان د عصر عالم پر شرح تجرید محاکمات ئې حواشې لیکلي)، عزت هروي (شاعر او د عالمګیر د دربار لښکري افسر چي په ۱۰۸۰ھ کي مړ دئ)، عشقي کابلی (میر بخشي او د اکبري عصر شاعر چي په ۹۹۰ھ کي مړ دئ)، علي خان (د پښتو شاعر)، سید علي کندوزی د سید قنبر زوی مشهور په پیر بابا (نامتو عرف)، عمر خویشکي (د اکبري عصر له پوهانو او د پیر روښان له پیروانو ځخه وو)، عیسیٰ پشاوری د اخوند پنجو شاګرد (د اهل بیت د فضیلت د کتاب لیکونکی)، عیسیٰ مشوانی (د پښتو شاعر –۹۰۰ھ)، عیسیٰ اخوندزاده کاکړ (د پښتوشاعر –د ۱۰۵۰ھ په شاوخواکي)، میر کلان غزنوي (د اکبري عصر شاعر او آمر)، غلام محمد د شېر خان ګي ګیاني زوی (په پښتو د معراج نامې او سیف الملوک ناظم ۱۱۱۵ھ)، غیوري کابلی (شاعر او د شهزاده محمد حکیم نوکر)، فخري هروي (شاعر او د همایون د عصر مؤلف)، فصیح هروي (شاعر)، فصیحه هروي (شاعره)، فیاض پېښوری (پښتو د بهرام او ګل اندامي د کیسې ناظم)، فیاض هروي (شاعر – ۱۱۰۰ھ)، فېروزه کابلۍ (شاعره او د همایون د درباریانو ځخه)، قاسم کندهاری (د اکبر د عصر له پوهانو ځخه)، شیخ قاسم سلیماني پېښوری (د اکبر د عصر عارف او د تذکرة اولیاء افغان لیکونکی)، قاسم کاهي کابلی (د اکبر د دربار شاعر)، قاسم شینواری (په پښتو کي د فواید شریعت لیکونکی په ۹۶۷ ھ کي)، قلندر (د پښتو شاعر)، کاظم خان شیدا (د خوشحال خان خټک د کورنۍ د پښتو شاعر)، کاشفي بدخشي (شاعر – ۱۰۴۲ھ)،

میرزا کامل د احمد بخشي زوی (د بحرالزمان لیکونکی چي په ۱۱۳۱ھ کال مړ دئ)، گدایي کابلی (د همایون د عصر شاعر)، لایق بلخي (د توران د باچا امام قلي خان د دربار شاعر)، شیخ متي کاسی (د اکبر د وختو عارف چي په ۱۰۱۰ھ کي مړ دئ)، میرزا محمد زاهد هروي د قاضي اسلم زوی (د شاهجهان وقایع نویس ۱۰۶۴ھ او د خپل وخت عالم د شرح مواقف د حاشیې او د علامه دواني د شرح تهذیب د حاشیې او د قطب الدین رازي د تصور او تصدیق د حاشیې او د شرح الهیاکل و زاید ثلاثه د حاشیې لیکونکی)، قاضي محمد اسلم هروي (د جهانگیر په عصر کي د کابل او هند قاضي او د شاهجهان امام وو، چي په ۱۰۶۱ھ کال په لاهور کي مړ دئ)، شیخ محمد امین بدخشي (عارف او د قطرات در او د ضروریه د رسالې لیکونکی چي په ۱۰۹۸ھ کال په کشمیر کي مړ دئ)، محمد یوسف کابلی د شاه بېگخان زوی (وژلی سوی شاعر – ۹۸۰ھ)، شیخ محمد صالح الکوزی کندهاری (د پښتو شاعر– او د ۱۰۱۴ھ د شاوخوا عالم)، محمد صالح فارغي (د همایون د عصر شاعر)، محمد تالقاني غافل (شاعر چي په ۱۰۵۰ھ کي مړ دئ)، ملا محمد هروي (د اکبري عصر عالم– ۹۸۲ھ)، محمد هاشم کندهاری (بېرم خان د دربار شاعر)، محمد طاهر انصاري هروي (د ۱۰۰۰ھ د شاوخوا شاعر)، محمد د ابراهیم زوی (د سلطان ابراهیم لودي د عصر مؤرخ او د تاریخ ابراهیم شاهي لیکونکی)، علي محمد مخلص روښاني (۹۵۰ھ د پښتو شاعر)، ملامست زمند (۱۰۵۰ کال په شاوخوا کي په پښتو د سلوک الغزات لیکونکی)، مستفید جگدلکي (د ۱۰۰۰ھ په شاوخوا کي د بخارا د پاچا عبدالعزیز خان د دربار شاعر)، مسعود د عبدالله پېښوري زوی (د پښتو شاعر او د ۱۰۰۰ھ په شاوخوا کي د آدم او درخانۍ د نکل ناظم)، مصطفٰی خان بدخشي (د عالمگیر د دربار امیر او عالم او د قرآن د آیتو د استخراج په باب کي د امارات الکلم د کتاب لیکونکی)، مصطفٰی د نور محمد زوی د عبدالکریم نمسی او د درویزه کړوسی د ۱۱۱۲ھ کال د شاوخوا د پښتو لیکونکی)، مظفر الدین بدخشي (د ۹۸۷ھ د شاوخوا شاعر)، میر معصوم نامي د سید صفایي زوی د هغه بابا حسن ابدال له نسله چي په کندهار کي (د اکبر د دورې شاعر او نظامي افسر او د تاریخ معصومي او طب نامې مؤلف او د معدن الافکار او حسن ناز او اکبر نامې او پري صورت ناظم)، مغزي هروي (د میرزا کامران د عصر شاعر چي په ۹۸۲ھ کي مړ دئ)، معجز کابلی (د عالمگیر د عصر شاعر)، مفید بلخي (د ۱۰۵۰ھ کال په شاوخوا کي د

بخارا د عبدالعزيز خان د دربار شاعر)، مقصود هروي (د همايون د دربار خطاط)، تاج محمد ممنون (شاعر په ۱۱۵۰ه کي مړ دئ)، قاسم موجي بدخشي (امير او د همايون د دربار شاعر او د يوسف او زليخا او ليلى او مجنون ناظم چي په ۹۷۹ه کي مړ دئ)، مهري هروي (د ملکه نورجهان د دربار شاعره)، مير کلان هروي (د جهانګير ښوونکی او نامتو عالم چي په ۹۸۳ه کي مړ دئ)، ميرک بلخي چي فکري ئې تخلص وو (عالم او شاعر وو او په ۱۰۶۱ه کال په اصفهان کي مړ دئ)، ميرک هروي (د داراشکوه ښوونکی او د خپل وخت عالم او د عالمګير د وخت صدرکل چي په ۱۰۷۱ه کي مړ دئ)، مير دوست کابلی (د اکبري عصر خطاط)، ميرزا خان انصاري روښاني (د پښتو شاعر)، مير الهي بدخشي (د کولاب شاعر او قاضي د ۹۵۰ه په شاوخوا کي)، مير علي هروي (نامتو خطاط چي په ۹۶۶ه کي مړ دئ)، ميرزا قلي ميلي هروي (شاعر چي په ۹۸۳ه کي مړ دئ)، ناظم هروي (شاعر – د ۱۰۷۰ه په شاوخوا کي)، مير نصرالدين هروي (د عالمګير د دربار له پوهانو څخه)، قاضي نظام غازي خان بدخشي (د شهزاده محمد حکيم او اکبر د دربار امير او عالم او د اثبات کلام او بيان ايمان تحقيق او تصديق د رسالې مؤلف او د رسايل تصوف او پر شرح عقايد د حاشيې ليکونکی چي په ۹۹۲ه کي مړ دئ)، خواجه نظام الدين احمد هروي د محمد مقيم زوی د اکبر د دربار مؤرخ او د طبقات اکبري مؤلف (چي په ۱۰۰۳ه کي مړ دئ)، نظمي بلخي (د ۱۱۰۰ه د شاوخوا شاعر)، نعمت الله هروي د خواجه حبيب الله زوی (په ۱۰۱۸ه کي د مخزن افغاني مؤلف)، نعمت الله د رکن الدين تېراهي زوی (د ذکر و فکر د رسالې او رسايل تصوف مؤلف د ۱۰۰۰ه په شاوخوا کي)، نېکبخته د پېښور د شمالي د شيخ الله داد مموزي لور(د شېخ قاسم سليماني مور او په۹۶۹ه کال د ارشاد الفقرا مؤلفه)، واصب کندهاری (شاعر په ۱۰۵۰ه کال په اصفهان کي مړ دئ)، واصل (۹۰۰ه په شاوخوا کي د پښتو شاعر)، واصل کابلی (شاعر چي په ۹۶۸ه کي مړ دئ)، واقعي هروي (د اکبر ملازم – شاعر)، والای قطغني وداعي هروي (شاعر او د شاهجهان په وخت کي د کشمېر صوبدار، چي په ۱۰۷۴ه کي مړ دئ)، وداعي هروي (د اکبر د وخت شاعر)، وفای هروي (شاعر– چي په ۱۰۵۰ه کال په اصفهان کي مړ دئ)، وقوفي هروي (د اکبر د عصر شاعر او عالم)، ويسي هروي (۹۸۳ه په شاوخوا کي شاعر او خطاط)، هدايت بدخشي (د خسرو او شيرين ناظم چي په ۱۰۵۰ه کال مړ دئ)، همت خان (د شاهجهان د

دربار له اميرانو او شاعرانو څخه وو چي په ۱۰۹۲ه کي مړ دئ)، همت سيستانی د ملک همزه زوی (د شاهجهان د عصر شاعر)، ياري هروي (د ۹۵۰ه په شاوخوا کي شاعر)، يحيايي سبزواري (شاعر چي په ۱۰۳۵ه کي مړ دئ)، يکتای بلخي (د بخارا اسام قلي خان د دربار شاعر)، يگانه بلخي (د بخارا د امام قلي خان د دربار شاعر)، يونس خيبري (د پښتو شاعر).

د بابريانو په عصر کي هندوستان تر يوې سياسي اداري لاندي راغلی وو. په همدې وختو کي د ايران صفوي شهنشاهي د کمال لوړي مرتبې ته رسېدلې وه او هم په ترکيه او عربي هيوادو کي د عثمان د اولادې خلافت د افريقا تر پايه غځېدلی وو او په ماوراء النهر کي هم شيباني کهول (۹۰٦ -۱۰۰۷ه) اقتدار موندلی وو چي دې څلورو اسلامي شهنشاهيو او د گنگا له غاړو په اروپا کي د ايتاليا تر سواحلو او تر جبل الطارق او طنجې پوري ئې د آسيا او افريقا او اروپا پر لويو هيوادو حکم کاوه او د انگلستان او روسيې او هالند او پرتگال او هسپانيا د هيوادو سياسي او تجارتي روابط هم د هند او ايران او عثمانيه سره ټينگ سوي ول، ځکه نو د هند تجارت د پېښور او کابل او بخارا يا کندهار او هرات او بخارا او مشهد له لارو د ماوراء النهر او ايران سره پر مخ ولاړ او د شاهجهان په وختو کي د کابل او کندهار او بلخ او بدخشان له صوبو څخه په دولتي خزانه کي د دولت د عايداتو له زياتوالي څخه هم ثابتيږي چي تجارت او کرهڼي او صنعت پراختيا موندلې وه، ځکه د هند او ايران او عثماني امپراطوريو د صنايعو او تجارت او علومو د انکشاف په لاره کي ښه خدمتونه کړي دي. له ماوراء النهر او ايران او خراسان څخه به تل صنعت کاران هند ته او له هغه ځايه به نورو هيوادو ته تله او راتله. پوهانو او عالمانو به هم له يوه هيواده بل هيواد ته تگ راتگ کاوه. تاجرانو به هم د عثمانيه او ايران او ماوراء النهر نفيس کالي او مالونه د خراسان له لاري هند ته او هندي مالونه او عقاقير او دواگاني به ئې خراسان او ماوراء النهر او ايران او عثمانيه ته وړل راوړل. له دې جهته به نو تل تجارتي بدايي قافلې د کابل او د کندهار او هرات له لارو تېرېدلې او امرتسر او پېښور او ملتان او ښکاپور او کابل او کندهار او هرات او بخارا او خجند او مشهد د تجارتي لاري مهم مرکزونه ول:

په افغانستان کي د بابر اولاده:

۱. *بابر (۹۱۰ -۹۳۷ه)

۲. *همايون د بابر زوی (۹۳۷ – ۹۶۳هـ)
۳. *کامران د بابر زوی (د ۹۶۰هـ شاوخوا)
۴. *جلال الدين محمد اکبر د همايون زوی (۹۶۳ – ۱۰۱۴هـ)
۵. *محمد حکيم د همايون زوی (د ۹۹۰هـ شاوخوا)
۶. *جهانگير د اکبر زوی (۱۰۱۴ – ۱۰۳۷هـ)
۷. *شاهجهان د جهانگير زوی (۱۰۳۷ – ۱۰۷۶هـ)
۸. *اورنگزيب عالمگير د شاهجهان زوی (۱۰۶۸ – ۱۱۱۸هـ)
۹. *معظم شاه د عالمگير زوی (د ۱۱۱۸ – ۱۱۲۴هـ شاوخوا)

## مأخذونه:

تاريخ هند د دولافوز – بابر د فرانسوي فرنارد گرو نارد – اقبالنامه جهانگير – اکبرنامه – تزک جهانگير – منتخب اللباب – عالمگير نامه – طبقات اکبري – رياض السلاطين – دول اسلاميه – آئين اکبري – رقعات عالمگيري – منتخب التواريخ – تزک بابر – فرشته – مجمع السلاطين – کيمبرج هستري آف انډيا ۴ ج – دائرة المعارف اسلامي – سير المتاخرين – تاريخ معصومي – مفتاح التواريخ – مخزن افغاني – خورشيد جهان – تاريخ نظامي ايران – تذکرة الابرار والاشرار – سلوک الغزات قلمي پښتو – تاريخ مرصع پښتو – ديوان خوشحال خان پښتو – پټه خزانه پښتو – پادشاهنامه – عمل صالح – افغانستان در عصر تيموريان هند د حبيبي – تاريخ هند د سميت – ماثرالامرا – سبحة المرجان في آثار هندوستان – د کندهار د چهل زينې ليکنه – تذکرهٔ نصر ابادي – ذکر مجدد – تذکرة علمای هند – د پښتونخوا هار او بهار – پښتانه شعرا ۲ ټوک – روز روشن – تاريخ افغاني د امام الدين هفت اقليم – شمع انجمن – د راورټي د گرامر ديباچه – شکرستان افغاني – بهارستان افغاني – سکينه الفضلا – قاموس الاعلام ترکي – مذکر احباب قلمي – حجته الاورنگ شاهيه قلمي – آتشکده آذر – گلشن روه – چراغ انجمن – د خوشحال خان د کليات مقدمه – تذکرهٔ حسيني – کليد افغاني – سرو آزاد – تاريخچه شعر پښتو – تاريخ ادبيات پښتو ۲ ټوک – رياض الشعرا خطي – مرآة الخيال – ماثر رحيمي – مخزن اسلام پښتو قلمي – خزينه الصفيا – د عبدالقادر خان د ديوان مقدمه – تذکرة الخواتين – نفايس الماثر – فوايد الشريعه پښتو خطي.

# د هند بابري پاچهان او شهزادګان



# د هند بابري پاچهان او شهزادګان



شپږمه برخه:

# روښانیان

(۹٦۰هـ - ۱۰۴۷هـ)

لکه په تېرو بحثو کې چې مو لوستي دي، د غور د سوريانو دوره چې په خټه پښتانه او د افغاني مفاخرو ساتندوی ول په بې ساري برم او جلال تېره سوه او هغه شاهنشاهي د خراسان د لمر لوېديځو سيمو له پايه د گنگا تر غاړو خپره سوې وه. که څه هم د چنگېز وحشيانه يرغلو د عظمت هغه کمبله ټوله کړه خو پښتنو هغه برم او جلال هېر نه کی او په هند کې ئې بيا د لوديانو او سوريانو او خلجيانو او نورو د پاچهۍ په جوړولو لاس پوري کی، مگر د چنگېز او تيمور د اولادې پر له پسې يرغلو پرې نه ښوول، چې د افغانستان او خراسان خاوره بيا يو سياسي يووالی ومومي او بابر چې د همهغه تکم (نژاد) سړی وو، هغه کار ئې بيا تکرار کی چې د ده نيکه گانو کړی وو.

په دې پرله پسې څو پېړيو کې پښتانه تل د خپل تېر برم او عظمت د راگرزولو په فکر کې ول او په دې څلور سوه کاله کې د پښتنو په غرو کې داسې مړونه پيدا سول، چې د افغاني تاريخي برم د راگرزولو له پاره ئې د قهارو پاچهانو درنو قوا و ته ټټرونه ونيول او پنجه ئې ورسره نرمه کړه او د پرديو فرمانروايانو د ناروا سلطې او سطوت پر خلاف وجنگېدل. لکه په همدې تاريخچه کې چې مو څو واره لوستي دي د تاريخي مجاهدت سره د خپلواکۍ غوښتني بيرغ پورته او رپولی دئ.

يو له هغو مړونو څخه چې غوښته ئې بيا افغان خپل تاريخي برم ته ورسېږي بايزيد مشهور په پير روښان وو، چې استعمار غوښتونکو ورته (پير تاريک) وايه. دا تاريخي او زړور او د استعمار او تسلط دښمن شخصيت بايزيد د قاضي عبدالله زوی او د محمد نمسی، چې ده ته ئې سراج الدين او ميا مسکين روښان هم ويل. د انصاري له کورنۍ په خټه اورمړ پښتون په (۹۳۲هـ) کال د پنجاب په جالندر کې د بيبنې (صورت

مهند بي بي) له نسه چي د محمد لور وه وزېږېد. د انصاري کهول لومړی په کندهار کي او تر هغه وروسته د وزیرستان په کاڼي ګرم کي اوسېد او محمد امین د بیبڼ پلار د عبدالله د نیکه ورور وو او دې کهول په علم او فضیلت شهرت درلود.

د روښان د کهول لومړی نیکه محمد انصاري دوولس زامن درلودل چي له هغې جملې څخه عبدالله فضیلت درلود او د قضا په شغل بوخت وو ا ولکه چي اخوند درویزه وایي اورمړ انصاري د وزیرستان له قبیلو څخه دئ ا و میا روښان له انصاري قبیلې څخه وو.

خو د پنجاب د جالندر په ښار کي د انصاري په نامه یو کهول وو چي ځانونه ئې د میا روښان اولاده بللها و د دوی سره د (تذکرة الانصار) په نامه یو کتاب وو، چي په هغه کي ئې د بایزید نسب په اوولسمه سلسله ابو ایوب الانصاري د حضرت محمد ﷺ یوه صحابي ته رسولی دئ.

او وایي چي د بایزید د زېږېدو ځای جالندهر دئ او د ده حجره تر اوسه د شیخ احمد غوث ولي مزار ته نژدې سته.

او په دې ترتیب به ئې د انصاري نوم له دې تاریخي نسب څخه موندلی وي، خو ځنګه چي د وزیرستان په اورمړ قبیلو کي په دې نامه کمه قبیله نسته، ځکه نو باید وویل سي چي انصاریان د پښتنو سره له پلار او نیکه څخه اوسېدل. په دې سبب نو دوی پښتانه ول او ټولو خلکو د احترام په سترګه ورته کتل.

بایزید په کوچنیوالي کي له خپله پلاره او ملا پاینده او ملا سلیمان کالنجري څخه درس ولوست او چي زلمی سو، نو پلار ئې وغوښته چي دی په ملتان کي د شیخ بهاء الدین زکریا په کورنۍ وګروهوي او د هغو مرید ئې کي، خو ځنګه چي ده وده او لار ښوونه ارثي مسایل نه ګڼل نو د خپل پلار یو وراره خواجه اسمعیٰل د خداداد زوی او د محمد نمسي ته د ارادت لاس وغځاوه او تل ئې په زهد او اطاعت او تقوی ژوند کاوه ا و د خپل پلار سره چي ظاهراً قاضي او په دنیوي چارو ککړ وو، نه اوسېد.

په دې وخت کي بایزید ځانګړي زیار، زهد او مراقبې او تفکر ته ملا وتړله او لکه چي پخپله وایي یوه شپه ئې حضرت خضر په خوب ولید او تر هغه وروسته د قرب او وصلت مرتبې ته ورسېد او تل ئې خپل پلار او مېړېزي ورور شیخ یعقوب د قاضي توب او رشوت اخیستلو څخه منع کول ځکه نو له هغه وخته د ده او د ده د کورنۍ تر منځ

اختلاف پیدا سوی وو.

بایزید له زلمیتوبه په گرزېدو او سیاحت او د نفس په تزکیه لاس پوري کړی وو او تر کندهار او هند او ماوراء النهر او سمرقند پوري ولاړ او د پوهانو او د نظر د خاوندانو سره ئې وکتل او مروجه عربي او دیني علوم ئې زده کړل. په ادب او فلسفه او تصوف کي ئې مطالعات وکړل او د آفاق او انس په سیر بوخت سو او د دې سفر په ترڅ کي ئې د آسانو تجارت هم کاوه، لکه یو وار چي ئې د سمرقند څخه ښه آسان رانیو ل او هند ته ئې بوتلل او د ده دا سفرونه له پنځلس کلنۍ څخه د (۹۴۷هـ) کال په شاوخوا کي شروع او د (۹۶۰هـ) کال تر حدودو پوري جاري ول.

دا وخت نو د بایزید علمي او فکري شخصیت ښه پوخ او د مؤرخانو په قول یو فکور او عالم او فصیح فاضل سړی ځني جوړ سو. آخوند درویزه د ده مخالف هم وایي چي هوښیار، پوه او فیلسوف سړی وو. د دبستان مذاهب مؤلف لیکي چي په کابل کي ئې د میرزا محمد حکیم په دربار کي زیات پوهان او علماء په مناظره کي پړه کړل او پر هغو ئې بری وموند، ځکه نو میرزا دی په احترام بېرته واستاوه او حتّی وایي چي پخپله میرزا او د کابل قاضي قاضي خان او حکیم خان او میرزا اتالیق ټوله پر ده معتقد سول.

بایزید د خپلو سفرو او گرځېدو په وخت کي په ټوله پښتونخوا کي د پښتنو د مظلومیت حال ته ځیر سو او څنگه چي ئې د لودیانو او سوریانو تېر برم او عظمت هم په یاد وو، نو دا فکر ورته پیدا سو چي دا بې وزلي او تیت و پرک خلک پر خپل ملي مرکز راغونډ کړي او په دوی کي داسي حکومت منځ ته راولي، چي پخپله د دوی حکومت وي او د پښتنو د آزادۍ نغری بیا تود کړي.

په دې کي شک نسته چي د بایزید دا سیاسي نظریه د هند د تیموریانو د هغو ظلمو او ستمو رد عمل وو، چي دوی پر پښتنو کول او په لیدو ئې هر حساس پښتون د مخنیوي له پاره پارېدی.

په دې باب کي موږ دوه تاریخي سندونه په لاس کي لرو: لومړی دا چي بایزید د مشهور بېرم خان د حکمرانۍ په وخت کي د (۹۶۰هـ) کال په شاوخوا کي کندهار ته راغلی وو او تجارتي مالونه ئې راوړي ول، لکه پخپله چي ده لیکلي دي: "د هغې سیمي حکمران پر کاروانیانو ستم وکی او د داد خواهۍ پر وخت ئې دی هم دربار ته بوت". دی داسي لیکي: "په هغه وخت کي په کندهار کي یو میر وو چي بېرم خان

نومېد، پر هغه کاروان ئې ظلم وکی... نو د ځینو وارثان ټول سول، د فریاد کولو دپاره او زه ئې هم د ځان سره رهي کړم"...

ما وویل حق تعالی به امیران او پاچهان له عدله وپوښتي او د چا یوه ذره عمل نه ضایع کوي، ورښیي ئې چي: (فمن یعمل مثقال ذرة خیراً یره) نو بېرم خان ومنل او وې ویل چي د حال پوښتنه کوم خو پوښتنه ئې و نه کړه د وعدې مخالفت وسو...

له دې بیانه چي پخپله د بایزید په قلم نقل سوی دئ داسي ثرګندېږي چي دا ستر پښتني شخصیت پرخپل قوم باندي د پردیو حاکمانو د مظالمو له لیدو څخه متاثره او ظالمان ئې د عدالت او نیاو خوا ته رابلل.

دا شریف احساس چي د پردیو د زړه ځورونکو ستمو له لیدو څخه هر غیرتمن سړي ته بې شکه پیدا کېږي، د روښاني نهضت اساسي سبب سو او تذکره الانصار ئې داسي بیانوي: "حکام مغل ظلم و ستم خود را بر افغانان بغایت رساندند تا جاییکه روزی یکي ازین ستم کاران یکنفر زن افغان را ماخوذ داشت وموی سر او را باسنگ آسیا فرو بست، چون پله سنګ بدوران آمدی، آنزن نیزبا آن ګشتی و فریاد برآوردی...".

بایزید چي سپېڅلی پښتون وو، د دې ویرجن حالت په لیدو به سره پېچل کېده او له کوګله بې دود خوت. ځکه ئې نو د هغه ظلم او ستم مخنیوی خپله ملي وجیبه وګڼله او د روحي سیر او مراقبت په عالم کي ئې د سرور کاینات ﷺ حضور ته عرض وکی او اجازه ئې وغوښتله چي د خپل قوم له مظلومانو څخه د جور او ستم د مخینوي له پاره هڅه وکړي او د ظلم کمبله ټوله کړي. تر هغه وروسته چي ئې داسي روحاني اجازه واخیستله نو په مړانه د پردیو ستمکارانو مخي ته ودرېد او د پښتنو په غرو کي ئې یو داسي نهضت منځ ته راووست، چي په هغه وخت کي د جالندهر یوه نومیالي بزرګ شېخ غوث الکرام داسي وویل: "په غرو کي بیا یو اوربل سو. خدای دې عاقبت ته خیر کي".

بایزید د عدل او انصاف پر لار قدم کښېښوو‌ه او له هغې سیمي ئې د جور او ستم کرغېړني نخښي ورکي کړې.

دا بیان ښایي چي ټول پر واقعیت بنا نه وي، خو له دې څخه یو حقیقت لاسه ته راځي او هغه دا چي د روښاني نهضت علت العمل د افغان اولس څخه د پردیو د ستمکارۍ مخنیوی وو، چي هغه وخت د (ډهلي) د تیموري حکمدارانو د ظلم په اور کي سوځېده. ځکه چي ظلم او ناروا تل په خپل مقابل کي قهرمان زېږوي او ننګیالي

مړونه پاروي.

د پورتنیو لیکو څخه د بایزید روښان د آزادۍ غوښتلو نظریه او د سیاسي عقیدې فلسفه څرګندېدای سي، خو دا مېړه د یو داسي مرکب کرکتر سجیه درلوده، چي ظاهراً ئې په نورو سیاسي ازادۍ غوښتونکو او په جنګیالیو جنګ ازمویونکو کي څرک لګېدای نه سي، ځکه دی په عیني حال کي چي یو ننګیالی جګړن وو. د تصوف او صلاح او تقوی او د نفس د ریاضت او ارشاد څښتن هم وو، چي د ده د شخصیت دا جنبه په لاندي لیکو کي د هغه د تحلیل سره لوستل کېدای سي:

د چنګېز او تېمور تر هولناک چور او چپاو وروسته د منځنۍ اسیا په هیواد کي له مصره بیا تر هنده د ګوښه ګیرۍ او انزوا او له ژوندون څخه د تېښتي او منفي خوا ته د رجوع یو راز احساس پیدا سو، چي د هغو تاریخي آلامو او مصایبو او وینو تویولو منطقي نتیجه وه او څنګه چي خلک له مادي آلامو څخه ستي سوي ول نو د تصوف او روحانیت په لمنه ئې منګولي ولګولې او د جګړې او چور او چپاو له ډګره ئې د خانقا ګوټ ته پناه یووړه او د تصوف مسلک بشپړ رواج وموند او په ټوله منځنۍ اسیا کي د اولیاء الله او د تصوف د خاوندانو ګاونډ د ویرژړلو او ستم وهلو خلکو له پاره یوازینی ټاټوبی ګڼل کېده او حتّی تر (۹۰۰هـ) کال وروسته په ادربیل کي د شیخ صفي الدین د خانقاه له ګوټ څخه یوه لویه شهنشاهي هم تشکیل سوه، چي وروسته ئې پر ټول اېران او د افغاني خاوري پر یوې برخي حکم چلاوه او د دربار رسمي کسان د (صوفي) په لقب یاد سول. په بخارا او هرات کي هم د تیمور د اولادې حکومت پر روحي مبادیو ولاړ وو او د دوی په دربارو کي د نقشبندیانو اغېزه دوني زیاته وه، چي د تیمور غوندي مدهش خونخوار هم ورته پر ګونډو سوی او تندی ئې پر درشل ورته ایښی وو او د هرات په دربار کي مولانا جامي دونه اغېزه درلودله چي د هغه وخت ستر وزیر امیرعلي شیرنوایي د ده په ستاینه کي شعرونه ویل، او د هند نه هغه سره محمود ګاوان نامتو وزیر د خپل نیاز عرض د ده حضور ته لیکه.

په همدې وخت کي د پښتونخوا سیمه چي د هند او اېران او ماوراء النهر تر منځ پرته وه. له دې روحي هڅي څخه خورا زیاته متاثره سوې وه، تر دې حده چي یو سړی د پیر بابا په نامه له اټکه تر کابله د خلکو د ځان او مال کالخوایه وو، او ټول ئې تر روحي اغېزې لاندې ول.

دا نافذ او جذاب شخصیت سید علي نومېده، چي د قنبر علي زوی، د سید احمد نور نمسی، د سید یوسف نور کړوسی او د محمد نور کوسی وو، چي دا محمد نور د تیمور لنګ له خوریانو څخه وو او د ده اولادې د تیمور ي پاچهانو د دربارو سره اړه درلوده او د سید علي پلار له ترمذه کندوز ته راغلی او له هغه ځایه د بابر د زوی همایون سره هند ته ولاړ او پخپله سید علي په مانک پور کي د شیخ سالار رومي لاس ونیو او استفاده ئې ځني وکړه او بیا له هغه ځایه د پښتنو غرو رغو ته راغلی.

سید علي تر (۹۰۰هـ) وروسته زېږېدلی او د (۹۶۲هـ) کال په شاوخوا کي د اټک او خیبر تر منځ سیمو ته راغلی. څنګه چي ده د تیمور د کهاله سره خپښي او اړه درلوده او له بلي خوا په هغو وختو کي د همدې سیمو خلکو د ډهلي تیموري امپراطورۍ ته تل د سر درد پیدا کاوه نو ځکه دې سیمو ته د سید علي راتګ د سیاسي مقاصدو څخه خالي نه وو او دې سیمو ته د رارسېدو سره ئې د یوسفزو د دولتزو د طایفې د یوه لوی ملک لور وکړه او د روحاني اغېزې د خپرولو په ترڅ کي ئې خپل سیاسي مقصدونه هم پر مخ بېول او غوښته ئې چي په دې سیمو کي د دین او روحانیت له لاري د ډهلي د دربار مخالفان بدنام او ناکام کړي او د خلکو میل د ډهلي د دربار اطاعت ته وګرزوي.

سیدعلي دلته مخلص او خونګرمه مریدان پیدا کړل او په پښتونخوا کي تر دېرشو کالو پوري بې تاج او بې تخته پاچا وو، چي د ډهلي له درباره مادي او معنوي مرسته ورسره کېدله، تقویه او تائیدېده. د ده سیاسي او روحاني مرکز د بونېر په غرو کي (پاچا کلی) وو، چي همهلته په (۹۹۱هـ) کال وفات سو. دې سید او د ده مریدانو په خپل ټول قوت د بایزید روښان تکفیر او ناکامۍ ته ملا وتړله او په راز راز وسیلو ئې (لکه پروپاګنډ او وعظ او خطابه او د کتابو د لیکلو له لاري) پر پیر روښان پوري د الحاد او بې دینۍ او بد اعتقادۍ تور وتاړه.

اوس به تاسو ته روښانه سوي وي، چي د بایزید د پیدا ایښت په محیط کي تصوف او طریقت او پیرۍ او مریدۍ څوني غښتلې اغېزه او بشپړ رواج درلود، ځکه نو که بایزید اساساً یو ازادۍ غوښتونکی جنګیالی مېړه هم وو، خو د خپل محیط د غوښتني له مخي مجبور وو، خپله متاع د بازاریانو د تقاضا سره سمه عرضه کړي او خپل ځان په هغه وسله مجهز کړي چي د ده د سیاسي مخالفانو سره وه او د ده پر ضد ئې استعمالوله . له دې جهته نو بایزید تصوف او ریاضت او طریقت د خپل سیاسي مسلک سره چي په

دې سیمو کې تاریخي مفاخرو لاس ته راوړل او د افغاني پاچهۍ تجدیدول او سیاسي مرکز جوړول، ګډ کړل او یو داسي عجیب مرکب ئې منځ ته راووست چې هم ئې روحي جنبه درلوده او هم مادي.

تر دې ځایه مو د روښاني نهضت د پیدا ینبت او د دې خلکو د تفکر د طرز او د دوی د تحریک د فلسفې په شاوخوا کې لنډ څه وویل، اوس د دې ستر مېړه پاته نکل لیکو:

بایزید په زلمیتوب کې شمسیه نومې لودی پېغله په جالندهر کې په نکاح کړه، چې د دې پښتنې مېرمني له نسه ئې نومیالي اولادونه پیدا سول او لکه د دبستان مذاهب مؤلف چې لیکي: د (۹۶۹ھ) کال تر شاوخوا پوري د بایزید شهرت هري خوا ته خپور سو او ډېر قوت ئې وموند. پښتنو د ده بلنه ومنله او د ده مرستي ته ئې ملا وتړله.

بایزید لومړی د دربار او سیاسیت د خاوندانو په لارښوونه لاس پوري کی او د (صراط التوحید) د کوچنۍ رسالې له لاري ئې خپل نصیحتونه دوی ته ورسول. ده مخلصان مریدان هم پیدا کړل چې د مړیني تر وخته ئې د ده ملا وتړله او د هغو نومیالیو له ډلي څخه دا درې ادیبان او د پښتو ژبې شاعران ورونه هم ول:

ارزاني (پښتو شعر کې د دېوان خاوند) ملا محمد عمر او ملا علي محمد مخلص (په پښتو کې د دېوان څښتن).

همدا رنګه ملا پاینده او ملا دولت اکوزی او دولت لواڼی او میرزا انصاري (دواړه په پښتو کې د دېوان خاوندان) هم د ده ملګري ول.

څنګه چې بایزید د پردیو پر خلاف د جهاد اعلان وکی او په کابل او پېښور کې ئې د ډهلي حکمرانانو ته بېره پیدا کړه نو ځکه دولتیانو او د دوی طرفدارانو چې د سید علي پیر بابا له تابعانو څخه ول، د ننګرهار د اخوند درویزه په روحاني او عملي لارښوونه (چې په فارسي کې د تذکرة الابرار او په پښتو کې د مخزن الاسلام مؤلف وو) د بایزید مخي ته ودرېدل. د ده مرکز دا وخت د پېښور په شمال کې د اشنغر د (کله دېر) د ملا دولت مومند په کور کې وو او د (۹۷۹ھ) په شاوخوا کې د کابل صوبدار محسن خان د سید علي او د اخوند درویزه په مرسته پر ده باندي لښکر راویوست او دی د محسن د لښکریانو لاس ته ورغی او کابل ته ئې بوت او هلته ئې په سیاه چال کې بندي کی او دې پېښو د (۹۸۰ھ) تر شاوخوا پوري دوام وموند.

بايزيد په کابل کي لږ موده بندي وو او لکه د مخه چي مو ولوستل، د ده استعداد او د ده د برهان او د استدلال او نفوذ قوت د کابل پر حکمران اغېزه وکړه او دی ئې په ډېر احترام له بنده ايله کی او د خپلو ملګرو په مرسته له زندانه راووت او ننګرهار ته ورسېد او هلته ئې بيا د ازادۍ غوښتلو هنګامه توده کړه او خپل سياسي مرکز ئې د (تېرا) په غرو کي وټاکه او له همدې ځايه بايزيد روښان (د پښتني حکومت) بيرغ ورپاوه.

د (۹۸۰ھ) کال په شاوخوا کي د اپريدو او اورکزو او اتمانخېلو زړورو قبيلو د ده اطاعت ومانه خو څنګه چي د هغه ځای زياترو خلکو د دښمنانو ملا تړلې وه، نو روښان د هغو ملګرتيا و نه منله او ورته وې ويل: " څنګه چي ستاسي زړونه د مغل سره تړلي دي نو د پښتنو منځ ته راتلای نه سئ". خو هغو خلکو خپل لاسونه وتړل او د پښېمانۍ او توبې په توګه د ده حضور ته ورغلل او بايزيد د دوی لوی ګناهکاران ووژل او پاته ديارلس سوه تنه ئې د تيرا څخه وشړل او په دې توګه ئې هغه سيمه د پرديو له اغېزې او اثارو څخه بېخي پاکه کړه، خو د پرديو لښکر د تيرا پر (چوری) نومي ځای باندي يرغل وکی. د بايزيد پيروانو چي وسله نه درلوده د هغو تېرو نلانو په واسطه ئې د يرغلګرانو مخه ونيوله چي د تيرا په غرو کي شنه کېږي او هغه ته ئې سخته ماته ورکړه او دا جګړه د روښان د پيروانو په ګټه تمامه سوه.

دروېزه وايي چي: بايزيد له تيرا څخه د پردي پرستو ريښې بېخي وايستلې او دوه سوه او شل تنه ئې تر تېره تېغ تېر کړل او پاته کسان د ملي کسات (انتقام) له بېري ننګرهار ته وتښتېدل او تر هغه وروسته نو بايزيد د ملي قواوو په ترتيب او تجهيز لاس پوري کی او د پښتنو د تېر عظمت درس ئې د غرو د ننګياليو اوسېدونکو غوږو ته ورساوه.

د غرو ننګيالي هم په زرو زرو سپاره او پلي د ده خدمت ته حاضر سول او د ډهلي د حکومت پر خلاف ئې د ملي جهاد اعلان وکی او د بايزيد په مشرۍ له تيرا څخه د ننګرهار خوا ته راوخوځېدل او په (برو) نومي ځای کي کښېنته سول.

د کابل صوبدار محسن خان چي په دې نهضت خبر وو او د خورا لوی لښکر سره ئې په جلال آباد کي انتظار ويوست، د دوی مخي ته راووت او د شينوارو په (تور راغه) نومي ځای کي دواړه قوتونه سره مخامخ سول، سخته جګړه ونښته او د غرو ننګيالي پښتانه چي په تشو لاسو د غرو په لرګو او نيانو ئې جنګ کاوه د ډهلي د پاچاهۍ د وسله

والو قواوو په مقابل کي چي د اور او اوسپني وسلې ئې درلودلې په ډېره مړانه ودرېدل او بايزيد هم د خپلو پيروانو په منځ کي په ډېره مړانه جنګېده څو د همدې خونړۍ جګړې په ډګر کي ووژل سو، ځکه نو د تور راغه جګړه د يرغلګرو لښکرو په ګټه پای ته ورسېدله.

په ثقه قول دی د( ۹۸۸ هـ) کال په شاوخوا کي په ۵٦ کلنۍ شهيد سوی دئ او هديره ئې معلومه نه ده خو زيات اټکل دا دئ، چي په وزيرستان کي به وي.

بايزيد په خپل ژوند د پرديو په مقابل کي د ملي نهضت بنسټ کښېښوو او هم ئې خلکو ته د پښتني حکومت د تاسيس فکر ور پيدا کی او پر سياسي او حربي آثارو سربېره ادبي او علمي آثار هم لري. ده په څلورو ژبو خبري او ليکني کولای سوې، پښتو، عربي، فارسي، او هندي، خو په پښتو ژبه کي د فني نثر ليکني يعني د مسجع نثر د ادبي مکتب مؤسس ګڼل کېږي، چي خپل مشهور کتاب خيرالبيان ئې په همدې نثر ليکلی او نيم منظوم دئ او هم فارسي او عربي او هندي برخه لري. د ده نور کتابونه يو (صراط التوحيد ) نومېږي، چي په (۹۷۸هـ) کال ئې ليکلی دئ. بل کتاب ئې حالنامه د خپل ژوندون پېښي د کامل پير د لټولو موضوع او نصيحتونه ليکلي دي. بل کتاب ئې د مقصودالمومنين په نامه په عربي ژبه ليکلی، چي د اخلاقو او تصوف او طريقت بحثونه لري. د دې څلورو کتابونو پر ليکلو سربېره ئې د پښتو ژبي له پاره يو رسم الخط هم وضع کړی، چي د دې ژبي مخصوص اوازونه ئې په خاصو اشکالو کي ښوولي ول.

بايزيد په ناکامۍ له دنيا تېر سو، خو د آزادۍ غوښتلو هغه تخم چي ده په پښتونخوا کي وپاشه تر ده وروسته شين سو او ثمره ئې په پښتونخوا کي د ازادۍ غوښتلو پرله پسې نهضتونه ول، لکه په کندهار کي د ميرويس نهضت او په خيبر کي د خوشحال او ايمل هڅي او بالاخره د احمدشاهي لويي شهنشاهۍ جوړېدل. د روېزه د پير روښان مخالف قطب د ده او د ده د اولادې دا سياسي مفکوره داسي بيانوي چي: دوی وويل لښکري راغونډوو، هندوستان نيسو، عامه ناره ئې وکړه چي پښتانه سپاره دي پر موږ راټول سي، د اکبر پاچا خزانې زموږ دي.

له بايزيد څخه دوې سلسلې مأثر پاته دي: ادبي مأثر چي د پښتو يوې ډلې ليکونکو لکه درويزه، بابوجان، حسين، قاسم او نورو د ده د نيم منظوم پر مسجع سبک ئې د نثر کتابونه وليکل.

دوهم حربي او سياسي مأثر دي چي د ده اولادې د پښتونخوا په غرو کي تر يوې پېړۍ پوري د خپلواکۍ غوښتلو جګړو ته ادامه ورکړې وه.

بايزيد حنفي مذهبه مسلمان او فقيه متصوف دئ، چي په تصوف کي د اهل شهود مذهب ته ميل لري، خو کله کله د سکر په حالت کي د وجوديه په مشرب هم ګروهېږي او په تصوف او طريقت کي ئې خپلو مريدانو ته مرتبې ټاکلي دي: شريعت، طريقت، حقيقت، معرفت، قربت، وصلت، وحدت او سکونت چي دا هره برخه يوه مرتبه خاص دودونه او آداب لري.

اما د ده سياسي پروګرام پر څو بنسټو ولاړ وو:

لومړی: د پښتنو آزادي تر دې پلان لاندي:

الف- د پرديو د ظلم په مقابل کي د کرکي د حس پيدا کول.

ب- حکومتيانو ته نژدې کېدل او په انګرېزي اصطلاح نن کواپرېشن.

ج- د آزادۍ په لار کي جنګېدل، قرباني ورکول او سر ښندل.

دوهم: د اداري او مالي او جنګي تشکيلاتو سره افغاني حکومت جوړول.

دريم: په هند کي د افغاني شهنشاهۍ او د غوريانو او خلجيانو او د لوديانو د مفاخرو ژوندي کول.

دا وو د روښانيانو د نهضت د مؤسس د حالاتو لنډيز اوس به وګورو، چي تر ده وروسته څه پېښ سول؟ او دا ملي نهضت کم ځای ته ورسېد؟

د خپلواکۍ او آزادۍ غوښتني هغه اور چي بايزيد د پښتونخوا د غرو د خلکو په سينو کي بل کړی وو، د ده په وژلو مړ نه سو او تر ده وروسته ئې زوی جلال الدين په څلورلس کلنۍ کي د پلار د روحاني او سياسي رياست پر مسند کښېنوست. د ډهلي د دربار مؤرخانو لکه ابو الفضل او خافي خان او بداوني د ده نوم (جلاله) ليکی او وايي چي: د هند پاچا اکبر دی په دې نامه باله.

د دبستان ليکونکی وايي چي: جلال الدين په خپلواکۍ حکومت کاوه. عادل او ضابط سړی وو.

په (۹۸۹ھ) کال چي اکبر له کابله هند ته راغی جلال الدين په پښتنو قبيلو کي په مشرتوب او رياست پېژندل سوی وو. اکبر هغه خپل حضور ته وروغوښت، خو څنګه چي جلال الدين د درباريانو په دروه او چل خبر وو، نو د خپل پلار مرکز ته چي د تيرا په

غرو کي وو، ولاړ او پښتانه قبایل چي د پېښور د تیولدار سید حامد بخاري له جوره ډېر په تنګ سوي ول، پر جلال الدین راغونډ سول او نوموړی ستمګر حکمران ئې وواژه. دا وخت د پښتنو ملي قوت د جلال الدین تر بیرغ لاندي شلو زرو پلیو او پنځه زرو سپرو ته رسېده.

جلال الدین اکبر چي د هند لوی امپراطور وو، د روښاني جلال الدین ورک کولو ته ئې په ډېر شدت ملا وتړله او په (۹۹۴ھ) کال ئې کنورمان سنګ او خواجه شمس الدین خافي د یوه مدهش حربي قوت سره د جلال الدین د مخنیوي له پاره وګوماره. څنګه چي د پېښور د شاوخوا د یوسفزو او غوریه خیلو او مومندو قبیلې ټولي ورسره دي نو د خیبر په غرو کي خورا سختي جګړې وسوې او د اکبر لښکر و نه سوای کولای چي د جلال الدین په مقابل کي څه پر مخ بوزي، ځکه نو اکبر یو بل لوی لښکر د زین خان کوکه سره د خپل مخکني لښکر د ملاتړ له پاره راواستاوه او جګړه لا توده سوه.

دا جګړه تر دا بله کاله جاري وه، څنګه چي د اکبر دوهم لښکر هم د پښتنو د قوت په مقابل کي څه و نه کولای سوه نو اکبر هغه وترټل او په (۹۹۵ھ) کال ئې بل تازه دمه لښکر راواستاوه، چي د بنګښ له لاري د جلال الدین پر قوا وو یرغل وکي، او مان سنګه د بګرام له خوا راووزي، خو جلال الدین د خپلو زرو سپرو او پنځلسو زرو پلیو سره پر هغه حمله وکړه. په دې جګړه کي د ده یو نیم زر تنه ووژل سول او اکبري تېري کوونکو ته درانه تلفات ورسېدل.

جلال الدین تر دې جګړې وروسته وکولای سوه، چي خپل نفوذ له تیرا څخه د پېښور د شمال خوا ته په اشنغر کي خپور کي او زړور یوسفزیان هم د ځان ملګري کي. هغه وو چي په (۹۹۶ھ) کال ئې د همدې قبیلو په ملاتړ د سوات او باجوړ په سیمو کي د آزادۍ خوښولو هنګامه توده کړه او د اکبر د لښکرو سره ونښت او بېرته تېرا ته راغی. د اکبر دربار چي د دې سرسخته رقیب د مقاومت د لاسه په تنګ سوی وو، یو دروند لښکر ئې د صادق خان په مشرۍ د تیرا خوا ته وګوماره، چي د جلال الدین د لښکر پر زړه حمله وکي. صادق د اپریدو او اورکزو پر قبیلو بریالی سو او د جلال الدین د لښکر یو مشر ملا ابراهیم ئې ونیو، خو پخپله جلال الدین د (وزیرستان) د کاڼي کورم له لاري پر شا سو او د اکبر لښکري تر ډېري مودې د یوسفزو د هغو قبیلو سره په جګړه اخته وې، چي د جلالي آزادګانو سره ئې لار او اړه درلوده (۹۹۶ھ).

دا وار جلال الدين څلور کاله د جګړې له ډګره مخ واړاوه او وايي چې توران ته ئې سفر وکی، خو په (۱۰۰۰هـ) کال ئې بيا پښتني قوتونه راغونډ کړل او د اکبر له درباره هم آزمايلي سوي کسان لکه جعفر بېګ، واصف خان او قاسم خان کابلی د ده د له منځه وړلو له پاره وګومارل سول او تر سختو جګړو وروسته د جلال الدين د کهاله څو تنه چې د ده ورور وحدت علي (واحد علي) هم پکښې شامل وو د آصف خان په لاس کښېوتل.

د ډهلي دربار چې جلال الدين د جګړې په ډګر کي د لښکر په زور مات نه کړای سوای، نو دروه او رشوت ورکولو ته ئې لاس واچاوه او پخپله په پښتنو کي ئې نفاق پيدا کی او دروه او رشوت له لاري ئې د قبيلو ځيني مشران د ده پر ضد وپارول چې له هغې جملې څخه ملک حمزه اکوزی په (سرکاوی) کي لاس ورواچاوه خو جلال الدين هغه مات کی، بيا ئې د (ميني) په شاوخواکي هم حمزه پر شا وشاړه، مګر تر هغه وروسته اکبر د حمزه د ملاتړ له پاره خورا زيات لښکر راواستاوه او ټول اکبري قوتونه پر جلال الدين را توی سول. په دې جګړه کي د دلازاک خلکو په (توره بېله) کي د جلال الدين دوه نوميالي وروڼه شيخ عمر او خيرالدين ووژل او بل ورور ئې نورالدين مومندانو وواژه، خو خپله جلال الدين چې ډېر تلفات ور رسېدلي ول د تيرا غرو ته ولاړ.

جلال الدين دا وار د غرو د پهلوان په حيث په تېرا کي په مهمو لښکري تجهيزاتو لاس پوري کی او زيات قبايل ئې د ځان سره يو کړل او تر (۱۰۰۱هـ) کال پوري ئې د پښتنو تازه دمه لښکر پر خپل ملي مرکز راغونډ کی. شهنشاه اکبر هم دا پلا خپل ډېر مهم او لومړۍ درجه کسان د ده د مخنيوي له پاره وګومارل چې د لښکر په مخکښې زين خان کوکه او شيخ فيضي ول. وروسته تر هغه راجه بېربل او سعيد خان او نورو د لسو زرو سپرو سره ئې ملاتړ ته راغله، خو جلال الدين په خورا شدت هغه لښکر پر مخ وواهه او پر شا ئې وشاړه، چې د ډهلي د دربار د مؤرخانو په وينا د اکبري لښکر له څلوېښتو څخه تر پنځوسو زرو سپرو څخه يو تن هم د زړورو پښتنو له لاسه ژوندی پاته نه سو اوحتّی د اکبر د شهنشاهۍ د ټولو چارو چلوونکی او د اکبري دربار مهم غړی راجه بېربل هم په دې لاره کي سر بايلوو، او زين خان کوکه د نورو اميرانو سره د اټک خوا ته وتښتېد او نور نو له هغې جګړې څخه يوه تن هم نجات و نه موند.

د دې تباهۍ خبر چې د اکبر دربار ته ورسېد، راجه تودرمل ئې د قاسم خان کابلي په مرسته د لاري د څارني له پاره واستاوه او دې خلکو په ډېر چل او ول زين خان کابل ته

ورسولای سو.

تر هغه وروسته د ډهلي قواوو تر څو کالو پوري د قاسم خان کابلي په مرسته د کابل او پېښور لاره ساتله او په (۱۰۰۴هـ) کال بيا جلال الدين پر اکبري لښکر يرغل وکی او اکبر پاچا قليج خان د ده د مخنيوي له پاره راواستاوه. دا سړی هم تر څو جګړو وروسته د کابل خوا ته پر شا سو او جلال الدين د پښتونخوا پر ټولو غرو له خيبره نيولې تر تيرا پوري او د کابل پر جنوبي سيمو تر غزني پوري بريالی سو او په (۱۰۰۷هـ) کال ئې د غزني ښار هم د توري په زور د پرديو له منګولو څخه ونيو او تر دوو کالو ئې پر هغو سيمو حکومت کاوه. په (۱۰۰۹هـ) کال د اکبر لښکر د غزني په ښار کي اووه ورځي د ده سره جګړه وکړه او هم ئې د هغه ځای ډېر خلک د ده په مقابل کي وپارول، څو چي د جګړې په يوه ډګر کي شادمان نومي تپي کی او تر هغه وروسته جلال الدين د رباط غره ته ولاړ او شريف خان اتکه چي د ډهلي د دربار حکمران وو، مراد بېګ نامی په ده پسي وګوماره، څو چي هغه زمريالی تپي ئې چي څو کاله د ملي آزادۍ د ساتني له پاره د پرديو د غښتليو لښکرو په مقابل کي جنګېده وې واژه او د ده له شوره ډک سرئې اکبري دربار ته واستاوه، حال دا چي د ده ورور کمال الدين لا دمخه په اکبري زندان کي مړ سوی وو.

څنګه چي د ډهلي دربار تصور کاوه، د جلال الدين په وژلو هم د پښتنو د آزادۍ غوښتني تلوسه مړه نه سوه او تر ده وروسته ئې وراره احداد د عمر شيخ زوی او د بايزيد نمسی چي د ده زوم وو، د خپلواکۍ غوښتني بيرغ پر خپلو اوږو پورته کی او د خپلو غيرتمنو اسلافو په شان ئې هنګامه توده وساتله او د دبستان د ليکونکي په وينا احداد يو عادل او ضابط او د خپل نيکه پر آئين ثابت سړی وو. د پښتنو قبايل ورباندي راغونډ سول او د (۱۰۲۰هـ) کال په صفره کي ئې جهانګيري حکمران چي معزالملک بخشي نومېد مات کی او د کابل پر ښار ئې حمله وکړه. په دې جګړه کي د احداد يو ملګری (بارکی) نامی مړ سو او د ډهلي لښکر د نادعلي ميداني او قليچ خان په ملاتړ د ده سره مقاومت کاوه او احداد په دې جګړه کي پر شا سو.

څلور کاله وروسته بيا احداد نوی لښکر د کابل جنوبي خوا ته په څرخ کي راټول کی او جهانګير په (۱۰۲۴هـ) کال يو درونډ او لوی لښکر د ده د مخنيوي له پاره وګوماره. پخپله جهانګير په دې باره کي داسي وايي:

"احداد افغان که از دیر باز در کوهستان کابل درمقام سرکشی و فتنه انگیزیست و بسیاري از افغانان آن سرحد برو جمع شده اند و از زمان والد بزرگوارم (اکبر) تا حال که سال دهم جلوس من است افواج همیشه بر سر او تعیین بوده اند، رفته رفته شکستها خورد و پریشانیها کشید" (تزوک جهانګیري).

د څرخ ډاګونه د دوارو خواوو په وینو سره سول او تر سختي جګړې وروسته جهانګیري لښکرو بری وموند او د احداد ملګري د درو زرو په شاوخوا کي ووژل سول، خو پخپله احداد د کندهار خوا ته ولاړ او د لښکر مرکزئې د دښمن د لښکریانو لاس ته ورغی.

په (۱۰۲۸ھ) کال احداد د جهانګیري لښکر په مقابل کي لښکر راغونډ کی او د ډهلي د نامتو درباري مهابت خان زوی امان الله خان ورسره وجنګېد. په دې جنګ کي هم د احداد لښکر ته سخت تاوان ورسېد او غرو ته وخوت.

د ډهلي د لښکر سره د احداد وروستنۍ جګړه په (۱۰۳۵ھ) کال په تېرا کي پېښه سوه او د جهانګیر لښکر د پښتنو د ملي قواوو سره ونښت. په کابل کي د جهانګیري حکمران د خواجه ابوالحسن زوی ظفرخان خورا لوی لښکر راویوست او په تیرا کي ئې پر نواغر (اواغر) چي د احداد د ملي ریاست مرکز وو، یرغل وکی او احداد ئې هلته کلابند کی. یوه شپه چي تېري کوونکي پر کلا وروختل احداد د ژوند تر پایه په مړانه ورسره وجنګېد او په مړانه ئې خپل سر د ملي خپلواکۍ څخه د دفاع په لار کي کښېښوو، شهید سو. د ډهلي لښکرو د ده سر پرې کی او د احمد بېګ د زوی افتخار په لاس ئې د جهانګیر دربار ته سوغات واستاوه. هغه ورځ چي د شهنشاه دربار ته د دې پښتون ملي مجاهد سر ورسېد، نو جهانګیر خدای ته پر سجده سو او د شکر سجدې ئې وکړې، د خوښۍ د ساز او سرود د ږغولو امرئې وکی، خو:

سـر کشـــته بر نیزه میـــزد نفس

که معراج مردان همینست و بس

احداد د روښان په کورنۍ کي تر جلال الدین وروسته زړور او لوی سړی وو. صمصام الدوله د ده په باب کي لیکي:

شجاعت و بهادري او ناسخ داستان رستم و افراسیاب است، و در عهد جهانګیر آویزش های سخت باعساکر پادشاهي نمود (مأثر الامراء).

د دبستان لیکونکی د ده اخلاقي ښېګڼې داسې شمېري:

"احداد مردی عادل و ضابط... و حق مردم رسانیدی و خمس اموال که از جهاد بهم رسیدی در بیت المال داشتی و آنرا نیز بغازیان رسانیدي..." (دبستان). تر احداد وروسته ئې زوی عبدالقادر چې د جلال الدین د لور علائي له نسه وو، د پلار پر مسند کښېنوست او دوه کاله ئې په تیرا کې حکومت وکی، څو چې شاهجهان په (۱۰۳۷ھ) کال ظفر خان د کابل په صوبداری وټاکه او د عبدالقادر په مقابل کې ئې راواستاوه خو عبدالقادر پر ظفر خان بری وموند او د هغه ډېر ملګري ئې ونیول او سزا ئې ورکړه او یوازې د ظفر خان مېرمن له دې معرکې څخه په ډېر مشکل ووتله. دا خونړۍ جګړه د تیرا په خرمانه درې کې وسوه.

تر هغه وروسته عبدالقادر د خپل اکا د زامنو کریمداد او محمد زمان سره تل د تیرا د ملي لښکر مشرتوب کاوه او په (۱۰۳۹ھ) کال ئې د پېښور څخه اووه میله لیرې په یولم ګذر کې د پښتون کمال الدین په هغه نهضت کې ګډون وکی چې د پېښور په شاوخوا کې د ډهلي د لښکر په مقابل کې منځ ته راغلی وو، خو په (۱۰۴۴ھ) کال عبدالقادر د کابل د صوبدار سعید خان لاس ته ورغی او هند ته ئې فرار کی. همدارنګه د جلال الدین زوی الله داد چې په دې ملي هڅو کې د عبدالقادر ملګری وو او د پښتنو د ملي ټولیو مشرتوب ئې کاوه، د ډهلي د لښکریانو په واسطه هند ته واستول سو او همدا شان د جلال الدین بل زوی کریمداد د (۱۰۴۷ھ) کال په روژه کې د شاهجهان په امر په پېښور کې ووژل سو.

په دې توګه نو د بایزید روښان د کهاله وروستۍ روڼا تر یوې پېړۍ مجاهدو وروسته مړه سوه، خو د ظلم او ستم سره د دې کهول مبارزې او د دوی آزادګي، مړانه او خپلواکي غوښتنه به زموږ په ملي تاریخ کې تل ترتله د یادګار جاوید په شکل پاته وي.

د روښانیانو نومیالي:

۱- بایزید پیر روښان د عبدالله اورمړ زوی (۹۴۹-۹۸۸ھ) په شاوخوا کې.

۲- جلال الدین د بایزید روښان زوی (۹۸۸-۱۰۰۹ھ)

۳- احداد د عمر شیخ زوی او د بایزید نمسی (۱۰۰۹-۱۰۳۹ھ)

۴- عبدالقادر د احداد زوی (۱۰۳۵-۱۰۴۴ھ)

**مأخذونه:**

د اخون درویزه تذکرة الابرار والاشرار – د پښتو د شاعر دولت قلمي دیوان– د بدایوني منتخب التواریخ – د اخون درویزه مخزن اسلام– مأثر الامراء– منتخب اللباب– پادشاه نامه– تزک جهانګیري– عمل صالح– اقبال نامه – دبستان مذاهب – اکبرنامه – طبقات اکبري– د دولافوز تاریخ هند – فرشته – سروي لساني هند، لسم ټوک – حیات افغاني – مجله معارف ۱۹ ټوک – صراط التوحید – تاریخ مرصع – مجله آثارعتیقه هند د بمبئي چاپ – تاریخ ادبیات پښتو ۲ ټوک – افغانستان در عصر تیموریان هند – د خیر البیان پښتو خطي نسخه (۷۴ لمبر شجرې ته دې رجوع وسي).

# روښانیان




د شجرې پاته برخه په راتلونكي مخ كي وګورئ!

# روښانيان

دوهمه برخه

۷۴ شکل







(ماخذ: تاريخ افغانستان در عصر گورگانيان هند – مقدمهٔ خيرالبيان)

# توخیان

(۹٦۰-۱۲۰۰ه)

توخي د غلجیو پښتنو یو ټبر دئ چي په زابل او د ترنک او ارغنداو پر غاړو د کلات په رغو کي د مقر تر ټکه پوري اوسېږي.

د ډهلي د تیموریانو او د اېران د صفویانو په وختو کي د توخو یوه کهاله د دې دوو شهنشاهیو په منځ کي خپل واک ساته، چي په (۹٦۲ه) کال د همدې خلکو یو نومیالی شاه محمد کلاتی په کندهار کي حکمران وو او همایون هغه ولایت ورسپارلی وو. تر شاه محمد وروسته له دې کهاله څخه "ملخی" نامی د اورنګزېب په وخت کي د کلات حکمران وو، چي د اورنګزېب له درباره رسماً د سلطان ملخي په لقب وبلل سو او په هغه فرمان کي چي د (۱۰۹۳ه = ۱٦۸۱م) کال د دریمي خور (جمادي الاولی) پر ۹ د عالمګیر له درباره د ده په نامه صادر سو دی ئې د ټولو غلجیو د ملک په حیث وپېژاند، چي د حکمرانۍ وېش ئې له یوې خوا څخه د صفوي هیواد تر ټکه او له بلي خوا د هند د عالمګیر د دولت تر وېشه رسېده او د ده د زړو کلاوو کنډوالې ئې تر اوسه د شاه جوی او کلات تر منځ سته.

د ده په وخت کي د صفویانو او غلجیو ټبرو تر منځ سختي جګړې وسوې، چي په دې جګړو کي د جبارخان سلیمانخېل (چي د کابل او جلال آباد پر لار په خاک جبار کي ښخ دئ) ووژل سو او ملخي د ابدالي ټبر د مشره سره چي خدایداد سلطان نومېد یو تړون وتاړه او تر خپل منځ ئې د کندهار د جلدک د ګرماو ناوه وېش او ټک وټاکه. دی د انځرګي او سرې ډبري (سرخ سنګ) تر منځ د دروازګۍ په جګړه کي ووژل سو. دا پېښه د (۱۱۰۰ه = ۱٦۸۸م) په شاوخوا کي پېښه سوه او د ده پر ځای ئې زوی حاجي عادل کښېنوست، تر یو وخته پوري ده پخپله او د ده زوی بایي خان پر کلات او د کلات پر سیمو حکومت کاوه او د ترنک د رود پر غاړه د کلات او جختران کلاوي د دوی مرکز وو، څو چي په پای کي بایي خان هم ووژل سو او ښالم خان (شاه عالم) د علي خان زوی

او د ملخي وراره او زوی ئې خوشحال خان هم څه موده حکمراني وکړه او د دې کهاله ورستني محلي حکمرانان د خوشحال خان زامن اشرف خان او الله یار خان ول، چې اشرف ته د اعلیحضرت احمد شاه ابدالي له خوا تر غزني پورې د کلات حکمراني ورکړه سوې وه او پر هند باندې په لومړی حمله کې د احمد شاه سره ملګری وو او د تېمور شاه په وختو کې د اشرف خان زوی امو خان ته د غلجیانو مشرتوب ورسېد او د دې کهول پایڅوړ د امیر عبدالرحمٰن خان تر وخت واک او اقتدار درلود.

د توخو نومیالي:

۱- شاه محمد کلاتی (د ۹٦۰ هـ شاوخوا)

۲- سلطان ملخي (د ۱۰۹۰هـ شاوخوا)

۳- حاجي عادل د ملخي زوی (د ۱۱۰۰هـ شاوخوا)

۴- بایي خان د عادل زوی (د ۱۱۱۵ هـ شاوخوا)

۵- شاه عالم (مشهور په ښالم خان) د علي خان زوی (د ۱۱۱۵۰ هـ شاوخوا)

٦- اشرف او الله یار د شاه عالم زامن (د ۱۱۲۰هـ شاوخوا)

۷- امو خان د اشرف خان زوی (د ۱۲۰۰هـ شاوخوا)

**مأخذونه:**

پټه خزانه- صولت افغاني - حیات افغاني - خورشید جهان - آریانا ۲ ټوک - تاریخ سلطاني - د توخو شفاهي روایتونه.



# ابدالیان

(۴۴۰ – ۱۱۴۴هـ)

ابدالي د افغانستان او هند په تاریخ کي یو ډېر نامتو ټبر دئ، چي د نامه ریښه ئې د (۴۰۰م) د شاوخوا سپین پوستي آریائي قبیلې ته چي اپتل (Aptal) یا هپتالي نومېدله رسېږي او دې قبیلې په باختر او تخارستان کي یو غښتلی دولت جوړ کی او د برطانوي دایرة المعارف په قول مؤرخانو ئې نوم (ابدلوي) هم راوړی دئ، چي په تواریخو کي ئې مختلف شکلونه هپتل (اودل) = ابدل = هیطل = یفتل ضبط دئ.

د اروپا خلک دا آریایي هپتالیان سپین هونان (White Huns) بولي چي د (هون = هان) د کلمې ریښه په پښتنو کي تر اوسه د (خان) په شکل پاته ده، ځکه چي د فیلالوژۍ له مخي په (خ) سره د (هـ) اوښتل روا وه، لکه د (هوارزم) اوښتل په (خوارزم) سره او د (هو) اوښتل په (خه) (خوب) سره. دې خلکو تر اسلام دمخه د آسیا په زړه کي حکومت کاوه او د ایران د ساسانیانو د شهنشاهۍ سره وجنګېدل چي د عربو مؤرخان دوی د (هیاطله) په نامه لیکي او د دوی پایځوړ په زابلستان کي د عربو د راوتو او د اسلام د خپرېدو تر وخته وو، چي لیکني ئې تر اوسه د کندهار د شمال خوا ته په روزګان کي ستة او د ځینو پاچهانو نومونه ئې هم پښتو دي، لکه امیر کولا (میر = لمر) او (کولا = کهول) او سربېره پر دې د دوی بڼې او اندامونه او جګې پزې (چي د دوی پر سکو نقش سوي) هم پښتنو ته ورته دي او داسي څرګندېږي چي دا سپین نژاده آریایي قبایل وروسته تر هغه چي افغانستان ته راغلي د پکهت (پښتون) د پخواني عنصر سره ګډ سوي او د دې هیواد په پخوانیو داخلي عناصرو کي منحل سوي دي.

د اسلامي دورې په تاریخ کي لومړی نامتو سړی چي د (ابدال = اودل) په نامه یاد سوی د پښتني قبیلو مشهور نیکه دئ، چي د خپل نامتو کهول سره د سلیمان په غره کي اوسېد. دی د ترین زوی، د شرخبون نمسی او د سړه بن کړوسی وو او د ده نوم په پښتو ادبیاتو او پخوانیو نسخو کي (اودل– او د جمع منسوب په صورت اودلي=

ابدال) ضبط دئ چي د (۴۴۰ هـ = ۱۰۴۸م) په شاوخوا کي ئې پښتانه قبایل پر ځان راټول کړي ول او د ده له تکومه (نژداه) ملک سلیمان د عیسیٰ زوی چي په زیرک مشهور وو، پښتني قبیلې د سلیمان له غره څخه د کندهار سیمي ته بوتلی او هلته ئې میشته کړې او د خپل ژوند په پای کي ئې خپل زوی ملک بارک په یوه لویه جرگه کي پر ځای کښېناوه او تر بارک وروسته د زیرک بل زوی ملک پوپل خپل نفوذ د (اوسني بلوچستان) تر شال او ږوبه ورساوه او د پنځه شپېتو کالو تر مشرتوب وروسته د ۸۹ کالو په عمر مړ سو. تر هغه وروسته ئې زوی ملک حبیب او بیا د ملک حبیب زوی ملک بامي د کندهار د قبایلو اولسوالان ول او د سلطان سکندر لودي سره ئې (۸۵۵ – ۹۰۰هـ) دوستانه روابط درلودل او نوموړي سلطان د ملک حبیب مشرتوب رسماً پېژندلی وو.

تر هغه وروسته بهلول د کاني زوی او د بامي نمسی او ملک صالح د معروف زوی او د بهلول نمسی لایق اولسوالان ول او صالح د شېرشاه سوري (۹۴۷ – ۹۶۰هـ) د دربار سره ښه روابط درلودل او خپل نمایندگان ئې هند ته ولېږل او تر ده وروسته ملک سدو د صالح ورور چي د سدوزو لومړی نیکه دئ په یوه لویه قومي جرگه کي د کندهار د اولسوالۍ او مشرتوب پر مسند کښېنوست (د ۹۶۵هـ = ۱۵۵۷م کال د ذیحجې پر ۱۷ زېږېدلی) او د کندهار ارغسان ئې خپل مرکز وټاکه او خپل رقیب حاجي زله خان ئې له منځه یووی او محمد د بارکزو مشر (د محمدزو لومړی پلار) د سدو معاصر وو او د سید جمال الدین افغاني او نورو مؤرخانو په قول د صفوي شاه عباس له درباره هم په رسمیت پېژندل سوی وو (د ۱۰۱۰هـ = ۱۶۲۱م شاوخوا). هغه وخت چي سدو د خپل وخت مقتدر محلي حکمران (۷۵) کلنۍ ته ورسېد، نو په یوه لویه قومي جرگه کي ئې له خپلو پنځو زامنو (خواجه خضر خان، مودود (مغدود) خان، زعفران خان، کامران خان او بهادر خان) څخه خواجه خضرخان پر خپل ځای اولسوال او قومي مشر وټاکه او څلور نومیالي ورونه ئې د شاهجهان معاصران ول، چي په (۱۰۴۷هـ = ۱۶۳۷م) کال د شاهجهان لښکرو د دوی په مرسته کندهار ونیو او د شاهجهان له خوا د کندهار اولسوالان وپېژندل سول. دوی د ډهلي د دربار سره دوستانه روابط درلودل او په (۱۰۵۰هـ = ۱۶۴۰م) کال ملک مغدود خان او کامران ډهلي ته ولاړل او شاهجهان ئې احترامانه هرکلی وکی. ملک مغدود په (۱۰۵۳هـ = ۱۶۴۳م) کال د کابل د حکمران

امیر یحیٰی سره جګړه وکړه او ووژل سو او کامران فاضل سړی وو، یو کتاب ئې د (کلید کامراني) په نامه په پښتو ژبه په (۱۰۳۸هـ = ۱۶۲۸م) کال لیکلی وو. خضر خان د ګریفن په قول په (۱۰۳۶هـ = ۱۶۲۶م) کال مړ سو او تر هغه وروسته ئې زامن خداداد سلطان مشهور په (خودکي) او شېر خان د کندهار مشران او ولسوالان ول.

خداداد خان د خپلو ګاونډیو غلجیو قبیلو سره دوستانه روابط وساتل او په قومي جرګو کي ئې د سلطان ملخي سره مفاهمه وکړه او د دوستۍ تړون ئې وتاړه او د دواړو خواوو د اولسوالیو تر منځ وېش ئې د کندهار څخه پنځوس میله لمر ختیځي خوا ته د جلدک ګرماو او ډبرین پل وټاکه او د ږوب او بوري مځکي ئې د سلیمان د غره تر لمنو ونیولې او د (۱۱۰۵هـ = ۱۶۹۳م) کال په شاوخوا کي د ده ورور شېر خان د کندهار د صفوي حکمران سره ونښت او د کوړک په بند کي ئې صفوي لښکر پوپناه کی. ده د مغدود خان پر زوی شاه حسین باندي بری وموند او حسین ئې ملتان ته فرار کی او همدې حسین ته عالمګیر په سیالکوټ او رنګپور کي جاګیر ورکړی وو او د ګریفن په قول د دکن په جګړه کي د عالمګیر سره د اووه زرۍ په منصب ملګری وو او د ده ورور الله داد خان د دوو سوو سپرو د مشرۍ رتبه درلودله. دا حسین خان په (۱۰۶۹هـ = ۱۶۵۵م) کال په رنګپور کي مړ سو او شجاع خان د احمد شاه ابدالي په وختو کي او شریف خان د تیمور شاه په دوره کي او مظفر خان رکن الدوله چي د ملتان د ناظمانو په حیث مقرر ول، د همدې حسین اولاده ول.

د سدوزو وروڼو مرکز عموماً د کندهار څخه دېرش میله لمر ختیځي خوا ته د ښار صفا سیمه وه او د صفوي له درباره هم د (میرزا) په لقب پېژندلي سوي ول او د ډهلي دربار شیر خان ته د (شهزاده) لقب ورکړی وو. له کندهاره تر فراه پوري د ابدالي قبیلو مشرانو لکه بدال خان بامیزي او میر الکوزي او نورو د ده مشرتوب منلی وو. تر شېر خان وروسته ئې زوی سرمست خان او تر هغه وروسته د سرمست خان زوی دولت خان د کندهار اولسوالان سول او د پلرو د مشرتوب پر ځای کښېناستل او د سلطان خداداد زوی حیات سلطان هم د کندهار اولسوالي دولت خان ته وسپارله او پخپله د خپل ورور لښکر خان او شپږو زرو ابدالي کورنیو سره ملتان ته ولاړ. دولت خان د کندهار د ښار د صفوي حکمران سره سختي جګړې وکړې او د خپلي خپلواکۍ بیرغ ئې تر غزني او د سلیمان تر غره پوري ورپاوه. دا هغه وخت وو، چي د ایران صفوي او د ډهلي تیموري

دولتو پخپلو منځو کې د کندهار د ښار پر سر په نزاع سره اخته ول او لکه چې دمخه تېر سول، شاهجهان او عالمگير په وارو وارو کندهار ته لوی لښکر راواستول.

دولت خان چې د دې صحنې پهلوان وو، خپل اقتدار ئې خپراوه او دواړي خواوي د ده مرستي ته اړ ول. لکه چې دوهم صفوي شاه عباس په هغو ليکنو کې چې د (۱۰۵۹ﻫ = ۱۶۴۹م) کال په سر کې ئې دولت ته رالېږلي وې، دی ئې "ايالت پناه، کوتوال قلعه قندهار" بللی دئ او د يوې داسي خورا لويي صوبې د حکومت د ورسپارلو وعده ئې ورسره کړې وه چې د اېران او هندوستان په هيواد کې ئې ساری نه وو (عباس نامه).

څنگه چې د دولت خان د نفوذ لمنه خپره سوه نو پنځوس کاله ئې په برياليتوب سره حکومت وکی او د صفوي دولت د بيگلربيگي واک او اختيار ئې يوازي د کندهار په کلا کې کلابند کړی وو، ځکه نو تر (۱۱۰۶ﻫ = ۱۶۹۴م) کال وروسته شاه حسين صفوي زمان خان د کندهار له حکمرانۍ څخه وروغوښت او د هغه پر ځای ئې نصراني گرگين خان گرجي د شاهنواز خان په لقب د کندهار بيگلربيگي وټاکه. دا ظالم سړی چې د صفوي دولت د سقوط سبب سو، د شپې د خونخوارو سپرو سره په ښار صفا کې د دولت خان پر کور ورتوی سول. دولت خان او د هغه زوی نظر محمد خان ئې (د ۱۱۱۵ﻫ = ۱۷۰۳م کال په شاوخوا کې) ووژل. ابدالي قبيلې د خپل مشر دولت خان په وژنه ډېر خواشيني سول او د هغه زوی رستم خان ئې پخپل مشرتوب وټاکه. رستم لايق سړی وو او د سرور خان باميزي او کتهه خان اکوزي په کومک ئې د اولسوالۍ چاري پر مخ بېولې او د ده کشر ورور زمان خان د يرغمل په توگه په کرمان کې د صفوي حکومت په لاس کې وو. ځکه نو رستم خان د صفويانو سره برملا مخالفت نه سو کولای، خو د کندهار په جنوب کې ئې د بلوڅانو په واسطه صفوي لښکر تباه کی او د څلور کاله وروسته چې رستم مړ سو، نو ابدالي قبيلې هم بې مشره پاته او سره تيت سوې او د پښتني قبيلو مشرتوب د هوتکو د کهول نامتو مؤسس حاجي ميرويس لاس ته ورغی او ابدالي مشران هرات ته ولاړل، هلته ئې خپلي حکمرانۍ ته ادامه ورکړه (د ۱۱۱۹ﻫ = ۱۷۰۷م).

دمخه مو وويل چې حيات سلطان ابدالي د دولت خان په وختو کې په ملتان کې اوسېد. هغه وخت چې په (۱۱۲۳ﻫ = ۱۷۱۱م) کال کې خسرو خان په کندهار کې د پنځه ويشتو زرو تنو صفوي لښکر سره د ميرويس خان له لاسه تباه سو، عبدالله خان د حيات سلطان زوی د خپل زوی اسدالله خان سره له ملتانه راغی او په هرات کې ئې پر صفوي

بیګلر بیګي عباس خان شاملو باندي یرغل وکی. د هرات لمر لویدیځي خوا ته د غوریان د دوښاخ په غره کي ابدالي قبیلې او هراتیان وربانديي راغونډ سول او اسفزار ئې ونیو او د صفوي نوی حکمران جعفر خان ئې مات کی. دې افغاني لښکر د (۱۱۲۹ھ = ۱۷۱۶م) د روژې پر ۱۶ هرات ونیو او غوریان او کولاب او بالامرغاب او بادغیس ئې د هرات د ټولو سیمو سره پخپل حکومت پوري ونښلول. هغه وخت چي فتح علي خان ترکمان له اصفهانه د خورا لوی لښکر سره د دوی مقابلې ته راغی، د غوریان په کوسویه کي ئې هغه ټول لښکر تر تېغ تېر کی او په هرات کي ئې د ملي حکومت اعلان وکی. اسد الله خان په هغه جګړه کي چي په (۱۱۳۲ھ =۱۷۱۹م) کال ئې د خاشرود پر غاړه په دلارام کي د شاه محمود هوتک سره وکړه ووژل سو او عبدالله خان چي د خپل زوی له مړیني څخه ډېر ویرجن سوی وو، د هرات د ملیونو مشرتوب ئې د الکوزي مشر عبدالغني خان په مشوره د دولت خان زوی زمان خان ته چي فعال او لایق سړی وو، وسپاره. ده ابدالي قبیلې د هرات د ټولو ملي قواوو سره یو کړې او د صفویانو جګړن امیران ئې د جعفر خان بیګلربیګي سره یو ځای د هرات په ښار کي ووژل. صفوي دربار صفي قلي خان ترکمان د لوی لښکر سره له مشهده د هرات خواته راوکوچاوه، خو د هرات ملي لښکر د زمان خان په مشري صفي قلي او د هغه لښکر د کافر کلا په ډګر کي ووژل او زمان خان تر دوو کالو او پنځو میاشتو پوري په ډېر بریالیتوب حکومت وکی او په (۱۱۳۵ھ = ۱۷۲۲م) کال له دنیا ولاړ.

د زمانخان تر مړیني وروسته د عبدالله خان زوی محمد خان د کندهار له ښوراوکه راغی او د هرات د حکمرانۍ واګي ئې په لاس کي ونیولې او تر مشهد پوري پر مخ ولاړ. هغه ښار ئې څلور میاشتي کلابند کی (د ۱۱۳۶ھ = ۱۷۲۳م په شاوخوا کي) او خپل نفوذ ئې په خراسان کي خپور کی. د غوریان لمر لوېدیځي خوا ته ئې د سنګان کلا ونیوله، خو ابدالیانو دی خلع کی او د ده پر ځای ئې د زمانخان مشر زوی ذوالفقار خان د کندهار له ښوراوکه راوغوښت او د ځان امیر ئې وټاکه (۱۱۳۶ھ) او د نزاع د لیري کولو له پاره ملي جرګه جوړه سوه. دې جرګې د باخرز او بادغیس حکمراني ذوالفقار خان ته ورکړه او د عبدالله خان زوی رحمان خان ئې د فراه په حکمرانۍ وګوماره او په هرات کي ئې د ملیونو د مرکزي حکومت له پاره د عبدالله خان بل زوی الله یار خان له ملتانه راوغوښت (۱۱۳۸ھ ۱۷۲۵م).

الله یارخان او ذوالفقار خان زړور مړونه ول او د نادرشاه افشار د متجاوزو لښکرو په مقابل کي ئې سخت جنګونه وکړل او په (۱۱۳۹هـ) کال چي نادر شاه مشهد ونیو او اته زره تنه لښکر ئې د سنګان کلا ته واستول نو د هرات حکمرانانو په یوه ملي جرګه کي د نادر په مقابل کي خپل ملي قوتونه راغونډ کړل او په (۱۱۴۱هـ =۱۷۲۸م) کال الله یار خان په تربت جام کي د نادري لښکر مخه ونیوله. نادر په یوه لیک کي د الله یار څخه روغه وغوښته خو و نه منله سوه او په کافر کلا کي جګړه ونښته او د نادر پښه تېپي سوه او د هرات لښکر را پر شا سو هرات ته راغی، خو الله یار خان بیا د خپل لښکر سره له هراته څخه دوه فرسخه لیري د پریان په رباط کي ئې د نادر مقابلې ته ورغی او ذوالفقار هم د جبهې شا ته د ده ملاتړ کاوه. نادر شاه مجبوره سو، چي د دوی سره روغه وکړي او پر هرات باندي د دوی حکمراني ومني. هغه وو، چي تر دوو میاشتو پرله پسې جګړو وروسته د (۱۱۴۱هـ = ۱۷۲۸م) کال د ذوالحجې د میاشتي په څلورمه بېرته مشهد ته ولاړ.

یو کال وروسته د هرات ملیونو د عبدالغني الکوزي په قیادت الله یار خان مروچاق ته واستاوه او د هغه پر ځای ئې د هرات حکومت ذوالفقار خان ته وسپاره (۱۱۴۲هـ د شوال ۳). ذوالفقار د لښکر په تجهیز لاس پوري کی او د اتو زرو تنو سره ئې د مشهد ښار کلابند کی او د (۱۱۴۳هـ = ۱۷۳۰م) کال د محرمي تر ۱۳ پوري ئې جګړه وکړه او تر هغه وروسته بیرته هرات ته راغی او له هغې خوا څخه نادرشاه بیا د هرات د نیولو نیت وکی او د (۱۱۴۳هـ = ۱۷۳۰م) کال په روژه کي ئې دغه ښار کلابند کی، څنګه چي له کندهاره شاه حسین هوتک هم د هرات مدافعو ملیونو ته کومک واستاوه، ځکه نو ذوالفقار هم په ډېره مړانه جنګېدی او ښار ئې دښمن ته نه سپاره، څو چي په همدې وخت کي بیا الله یار له مرو چاق څخه راغی او د (۱۱۴۴هـ = ۱۷۳۱م کال د صفري په ۱۸) هرات ته ننوت او ذوالفقار هم د جګړې واګي ده ته وسپارلې او پخپله د خپل کشر ورور احمد خان سره (چي وروسته احمد شاه ابدالي سو) کندهار ته ولاړ او همدا بېلتون بې شکه د ملیونو د کار د سستېدو سبب سو. الله یار هم د نادر سره په مړانه وجنګېدی او تر یو کال پوري ئې د هرات څخه دفاع وکړه خو په پای کي له هغه ښاره ووت او د ملتان خوا ته رهي سو او نادر پر هرات بری وموند او پر هرات باندي د ابدالیانو د مشرتوب دوره د (۱۱۴۴هـ = ۱۷۳۱م) کال د روژې په اوله پای ته ورسېدله او تر هغه وروسته په (۱۱۶۰هـ

= ۱۷۴۷م) کال په کندهار کي احمد شاه ابدالي بيا د افغاني سلطنت بنسټ کېښېښوو او هرات د پخوا په شان د افغاني هيواد برخه پاته سو.

د هرات د ابداليانو د حکمرانۍ سيمي:

د هرات ښار او شاوخوا ئې – اوبه – شافلان – کوسويه – غوريان – پوريان – جام – لنګر – خواف – باخرز – زوزن – د مشهد تر حدودو – او جنوباً د هلمند له غاړو تر ميوند او فراه او سيستان پوري او شمالاً بادغيس او آب مرغاب.

## د کندهار ابداليان:

۱– ملک اودل = ابدال د ترين زوی (۴۴۰هـ شاوخوا)

۲– ملک سليمان زيرک د عيسیٰ زوی (د ۷۵۰ هـ شاوخوا)

۳– ملک بارک د زيرک زوی (د ۷٦۰هـ شاوخوا)

۴– ملک پوپل د زيرک زوی (د ۷۸۳هـ شاوخوا)

۵– ملک حبيب د پوپل زوی (د ۸۰۰هـ شواوخوا)

٦– ملک بامي د حبيب زوی (۸۵۰ هـ شاوخوا)

۷– ملک بهلول د کاني زوی او د بامي نمسی (د ۸۹۰ هـ شاوخوا)

۸– ملک صالح د معروف زوی او د بهلول نمسی (د ۹۵۰هـ شاوخوا)

۹– ملک سدو د معروف زوی د بهلول نمسی (په ۹٦۵هـ کي زېږېدلی او په ۱۰۳۱هـ کي مړ دئ).

۱۰– خضر خان د سدو زوی (په ۱۰۳٦هـ کي مړ دئ).

۱۱– ملک مغدود د سدو زوی او کامران د سدو زوی (د ۱۰۵۰هـ شاوخوا)

۱۲– خداداد سلطان او شېر خان د خضر خان زامن (د ۱۰۷۰هـ شاوخوا)

۱۳– سرمست خان د شېر خان زوی (د ۱۱۱۰هـ شاوخوا)

۱۴– دولت خان د سرمست خان زوی (د ۱۱۱۵هـ شاوخوا)

۱۵– رستم خان د دولت زوی (د ۱۱۱۹هـ شاوخوا)

## د هرات ابداليان:

۱٦– حيات الله خان د خداداد سلطان زوی (د ۱۱۲۳هـ شاوخوا)

۱۷– عبدالله خان د حيات سلطان زوی (د ۱۱۳۰هـ شاوخوا)

۱۸– زمانخان د دولت خان زوی (۱۱۳۲هـ – ۱۱۳۵هـ)

۱۹- محمد خان د عبدالله خان زوی (د ۱۱۳٦ه شاوخوا)

۲۰-ذوالفقار خان د زمانخان زوی (۱۱۳٦ - ۱۱۴۴ه)

۲۱- الله یار خان د عبدالله خان زوی (۱۱۳۸ - ۱۱۴۴ه)

۲۲- رحمان خان د عبدالله خان زوی (۱۱۳۸ - ۱۱۴۴ه)

## مأخذونه او مراجع:

دائرة المعارف برتانیکا - د آریانا مجله - پټه خزانه د کابل چاپ - مخزن افغاني قلمي - تاریخ سلطاني د سلطان محمد خالص کندهاري د ۱۲۹۸ د بمبي چاپ - تذکرة الملوک د راورټي په حواله - لوی احمد شاه بابا د کابل چاپ - آئین اکبري - تاریخ احمد قلمي - خورشید جهان - تتمة البیان - تاریخ نادر شاه - روِضة الصفای ناصري ۸ ټوک - جهانکشای نادري - عمل صالح ۲ ټوک - تاج التواریخ ۲ ټوک - تاریخ ایران د سرپرسي سایکس - خلاصة الانساب خطي - کابل مجله ۲ ټوک - نادر نامه، منظوم خطي - پښتانه شعراء، لومړی ټوک - د ۱۹۴۵ کال کالنۍ - صولت افغاني - مجمع التواریخ - مشاهیر ابدالیان - عباسنامه - تاریخ روسای پنجاب - شوکت افغاني - احمد شاه بابا د کابل چاپ د میر غلام محمد غبار تالیف.

(۷۵ لمبر نسب نامه دي وکتل سي)

**لومړۍ برخه** **۷۵ – لمبر**

# ابداليان



# ابداليان


خواجه خضر خان
شېرخان (کندهار - ۱۰۷۰هـ)
خداداد سلطان (کندهار - ۱۰۵۰هـ)
سرمست خان
حیات سلطان (ملتان او هرات)
(د ۱۱۲۳هـ حدود)
لبنکرخان (ملتان)
عبدالله خان د هرات حکمران (۱۱۳۰هـ حدود)
محمد خان
د هرات حکمران
(۱۱۳٦هـ حدود)
اسدالله خان
په دلارام کي ووژل سو
(۱۱۳۲هـ حدود)
الله یار خان
د هرات حکمران
(۱۱۴۴هـ حدود)
رحمان خان
د هرات حکمران
(۱۱۴۴هـ حدود)
رستم خان
(کندهار)
۱۱۱۹هـ
محمد زمان خان
د هرات شاه
(۱۱۳۲-۱۱۳۵هـ)
نظر محمد خان
مقتول
(۱۱۱۵هـ)
احمد شاه بابا
(دریمه برخه وګورئ)
ذوالفقار خان
(د هرات حکمدار)
(۱۱۳٦-۱۱۴۴هـ)
لقمان خان
(د کندهار نائب)
(مړ ۱۱٦۲هـ)

# ابدالیان


۱-احمدشاه بابا (ابدالي) بن زمان خان (تولد ۱۱۳۵ه - مړ ۱۱۸٦ه) کندهار
د سلطنت دوره (۱۱٦۰-۱۱۸٦ه)
۲-تېمورشاه
سلیمان
داراب
شهاب
سکندر
پرویز
۳-شاه زمان
مونس
قیصر
۴-شاه محمود
۹- کامران (۱۲۳۴-۱۲۴۵ه)
جهانګیر
سعادت
سلطان علي
جلا الدین
۵-شاه شجاع
همایون
٦ - حاجي فیروزالدین
ملک قاسم
ملک حسن
محمدرضا
محمدمحسن
۱۲-یوسف (هرات)
(۱۲۷۲ه)
۷ - سلطان علي
۸ - ایوب
حاجي میرمحمد
محمداسمعیل
علي احمد
احمدشاه
شېرمحمد
پیرمحمد (شکارپور)
۱- فتح جنګ کابل (۱۲۵۸ه حدود)
۱۱-شاه پور (کابل - ۱۲۵۸ه حدود)
تیمور (شکارپور او کندهار)
نادر
دین محمد
سیف الدین
تاج محمد
خداداد
جان محمد
شاه محمد

# هوتکیان

(۱۱۲۰هـ - ۱۱۵۰هـ)

د دې تاریخچې په سر کې مو د پښتون د کهول په احوال کې ولوستل چې د پښتون له درو زامنو څخه یو هم بېټنی یا بېټ نیکه نومېد، چې د دې شیخ له اولاده او د متو له نسه چې د ده لور وه د (غرزي = غلجي = غلزي) په نامه د پښتنو د مشهورو غلجیو قبیلو ټبرونه مشهور سول.

دا نوم بې شکه "غرزی" د "کوهزاد" په معنا دئ ځکه چې په افغانستان کې د سرېیو او ځایو د زیاتو نومو ریښې د پښتو د "غر" د کلمې څخه راوتلي دي او حتّی د غور – غرچه – غرج – غلج – خلج ټولو کلمو ریښې له دې کلمې څخه راولاړي سوي دي، چې په منځنۍ آسیا کې د ځایو او قبیلو له پاره استعمالېږي.

توماسچک وایي چې د گر (GAR) یعني غر کلمه لرغونې باکتري دري کلمه ده او "غرچه" د آمو لوړي خوا ته د غرني ولایت د اریایي اوسېدونکو نوم دئ او له دې جهته نو غرچه او خلیج او غلیج او غرچ د غره د زوی یا غرزي او کوهزاد په معنا دي. د "غر" کلمه چې اوس په پښتو کې د غره په معنا ژوندۍ او مستعمله ده د اوستا په (هوم یشت) کې "گیری" راغلې چې په خورده اویستا کې هم لیدل کېږي او په سنسکریت کې هم "گیر" او "گیری" (GIRI) د غره په معنا وو، حتّی عربانو د پخواني گر شاه لقب (ملک الجبال) د تعریب په اصول جرشاه کړی دئ (د تاریخ طبرستان ۵۶ – ۱۸۳ مخونه).

په پښتو کې غرڅه – غرڅنۍ د "کوهي = غرني" په معنا دئ، چې د غرچه او دلچه = غلجی نوم له هغه څخه راوتلی دئ او غلچیان د پامیر او زرافشان د رود په درو کې اوسي.

عربي جغرافیا لیکونکو هم دې نکتې ته اشاره کړې ده، چې "غر" د "جبل" په معنا د غرشستان او غرجستان په تاریخي نومو کې دخیل وو. یاقوت د البشاري په

حواله وايي چي: غرج اصلاً د غره په معنا دئ او خراساني مؤرخانو چي دا کلمې د خپلو وطنوالو څخه اورېدلي دي هم د "غرجستان" نوم په اصلي شکل "غرستان" ليکلی دئ، چي د غر + ستان څخه عبارت دئ (غر- د کوه په معنا او "ستان" د ظرفيت پخوانۍ علامه ده).

مثلاً منهاج سراج جوزجاني چي د دې هيواد له خلکو څخه وو، زياتره د عربو د غرجستان او غرشستان پر ځای غرستان ليکي او د طبقات ناصري په زړو خطي نسخو کي څو واره غرستان ليده کېږي.

په هر صورت غلجی= غلزی يو پخوانی نوم دئ چي معنا ئې د غره زوی او د افغاني غلجيانو لومړی نيکه په همدې نامه يادېده. ده درې زامن درلودل او د زامنو نومونه ئې هم آريائي زړو نومو ته ښخي ورته دي:

توران –تولر –بولر او موږ پوهيږو چي "تور" له هغو پخوانيو آريائي نومو څخه دئ چي په اوستا کي راغلي دي او دا نوم تر اوسه په پښتنو کي په مختلفو صورتو (تور –تورانی –تورک –توری) رواج لري. همدا راز "بولر" يا "بلور" يو زوړ نوم دئ چي د گلگته تر سيمو د نورستان پر خلکو اطلاقيده او د بارتولد په قول تر اوسه هم د هغه ځای ځيني تور پوښه قبايل ځانونه "بلور" بولي او دا کلمه تر ۱۸ پېړۍ پوري په چيني کتابو کي ليده کېږي او محمد حيدر دوغلت چي د (۹۳۲ھ) په شاو خوا کي ژوندی وو او پر دې سيمو ئې حکمراني کوله نو د کشمير له ناوې څخه د کابل تر ناوې پوري او شمالاً تر يارکند او کاشغر پوري ئې دا سيمي بولر او بلورستان وبللې او تر ده دمخه منهاج سراج او محمد عوفي د غوري دورې مؤرخان د شغنان او تخارستان او درواز د غرو په لړ کي بلور هم راوړی او مستريبلو وايي چي: بولر يا بلور کلمې د باختر د کلمې طبعي تحريف دئ. په هر صورت د غلجي، توران، تولر او بولر کلمې او نومونه ټول پر دې دلالت کوي چي دوی پخوانۍ آريائي ريښې لري او هم دا ثابتوي چي افغاني غلجيان هم د آريائي نژاد سره ټينگه اړه لري.

خو "هوتک" (د کندهار او کلات د غلجيو قبيلو څخه) د هوتکو د قبيلې لومړی نيکه چي د پښتو اشعار ئې د پټې خزانې په واسطه موږ ته را رسېدلي، د انساب د خاوندانو په قول دبارو زوی او د پورتني نومړي تولر نمسی وو چي ده بيا څلور زامن: ملکيار، يوسف، دولت او عرب نومي درلودل او د هوتکو د پاچهۍ د مؤسس ميرويس

خان پلار ښالم خان په اتم پلار ده ته رسېږي. په دې ترتيب: ښالم د کرم زوی، د مند نمسی، د عمر کړوسی، د جلال الدين کوسی، د قطب کودی چې هغه بيا د اسحاق زوی، د حسين نمسی، د ملکيار کړوسی او د هوتک کوسی وو.

د هوتکو کهول د ترنک او ارغنداو پر غاړو محلي اولسوالان ول او لکه چې وويل سول د چنګېزيانو سره ئې سختې جګړې وکړې، خو د دوی د ژوند مفصل حالات لاس ته رانغله، يوازې دا معلومه ده چې تر ميرويس خان دمخه د کندهار له جلدکه تر غزني د غلجيو قبيلو مشرتوب او اولسوالي په سلطان ملخي توخي پوري اړه درلوده، چې دمخه ئې يادونه وسوه.

د ميرويس خان پلار ښالم خان چې د خپل وخت له مشرانو څخه وو، د سلطان ملخي لور نازو نامې په نکاح کړه او د هغه له نسه څلور زامن حاجي مير خان، عبدالعزيز، عبدالقادر او يحيٰی خان پيدا سول.

له دې زامنو څخه حاجي مير خان يا ميرويس خان هغه نوميالی وو، چې له غزني څخه تر کندهاره ئې خپل نفوذ خپور کی او د توخي او ابدالي د دوو ټبرو (چې له کندهاره تر غزني ئې حکومت کاوه) او د ډهلي او اصفهان د دوو شاهنشاهيو د تاريخي نفوذ تر منځ ئې په اولسي چارو کي لوی لاس درلود، څو چې په کندهار کي ئې د خپلواک سلطنت بنسټ کېښېښود. دی د سيد جمال الدين افغاني او سلطان محمد خالص په قول د متين فکر او لوړو اخلاقو خاوند او هم ښه ژبور سړی وو او څنګه چې له يوې خوا ئې مور د توخي حکمرانانو له کهاله څخه وه او له بلې خوا ئې د ابدالي کامران خان (چې دمخه ئې يادونه وسوه) خانزاده نومي لور کړې وه، ځکه نو ابدالي او توخي قبيلو دواړو د ده ملا تړله او له بل پلوه د ده خپل کهول هم له ډېرو پېړيو راهيسي په هوتکو کي نفوذ درلود او اولسوالي ئې کړې وه.

د همدې صفتو له مخي ميرويس د کندهار د ابداليو او غلجيو د ټبرو له خوا د "بابا" په لقب وپېژندل سو او هغه وخت چې صفوي نصراني حکمران ګرګين خان کندهار ته راغی او پر خلکو ئې هغسي ستمونه وکړل چې د زغملو نه ول، نو ميرويس څلور واره اصفهان ته ولاړ او د شاه حسين صفوي دربار ته ئې د خلکو فرياد ورساوه او هم ئې د دربار اوضاع له نژدې څخه وکتله. د ده يو ملګري "رېدي خان" پخپل منظوم کتاب "محمود نامه" کي چې د ميرويس د زوی په نامه ئې نظم کړی دئ، د ميرويس

داد خواهي او د شاه حسین صفوي جواب داسي بیانوي:

چي میر خان تللی اصفهان ته و نه
مخ ئې مکې د پاک سبحان ته و نه
پاچا تې عرض کړ ټول اقوال د پښتون
د گرگین ظلم بد احوال د پښتون
پاچا ویل: "زه نسوای کولای چاره
د گرگین خان ظلم و ستم د پاره
که ئې معزول کړم کندهار نه پرېږدي
جور و ستم او خپل شعار نه پرېږدي
گرگین خو گرگ دئ گرگ خو ظلم کوي
ویني تووینه هم پسونه ثیري
زه هم خایف یم چي به څه کړم گرگین
نا مسلمان دئ، ارمنی دئ، بېدین
نه په اسلام کي ځان پاوبند گڼینه
نه نصراني نه له عیسیٰ بېرینه
بېرېږم زه چي خدای کړي قهر ښکاره
د سلطنت په رڼا کور سي تیاره"
میر خان ویل: "اې حسین پاچا وگوره
حال د حاکم او رعایا وگوره!
گرگ دي ایله کی پر رمه سو شبان
جور و ستم کاندي بېحد گرگین خان
موږ له طاقت نسته چي کړو به زیاتی
صبر پر ظلم د ظالم ارمني
دا ځلورم وار دئ راځم سلطانه
عرض د ظالم له لاسه کړم سلطانه!
که پاچا نکړي داد خواهي د مظلوم
ظالم حاکم کا، ظلم ډېر په محکوم
جور چي ډېر سي سلطنت سي برباد
د ظلم قصر پوپنا بې بنیاد

عربیه: الملک یبقي مع الکفر ولا یبقي مع الظلم

کافر کولای سلطنت سي مدام
که وکړي داد، نه وي جابر پر انام
مگر ظالم خو نسي کړای سلطنت
خالق رحیم دئ، ورکوي خلافت
چاته؟ چي زړه ئې وي په مهر و دان
د خدای عیال گڼي پر مځکه انسان
سلطانه! واوره په ښي غوږ دا وینا
مکړه ستم د خلق الله پر هر چا
د ستمگارو پای ورانی دئ، خراب
د ظلم اور ئې کا پخپله تراب
د مظلوم آه داسي کاري وي گوره
چي اور ئې نه ځي د ظالم له کوره
لمبې به بلي کا د ظلم پر کور
ټول به کاندي بېنوا په دې اور
ښايي ظالم چي رحم وکا په ځان
په ظلم خوار نه کړي خپل ځان او جهان
سلطانه! گوره پر ځان رحم وکړه
خپل کلی کور په جور مه ورانوه"

ځنگه چي صفوي پاچا د میرویس فریاد وانه ورېد او د اصفهان له درباره ناامیده سو، نو له هغه ځایه بیت الله ته ولاړ او د عربو د عالمانو څخه ئې د گرگین گرجي نصراني

سره د جنگ جواز او د هغه د وژلو فتوا واخیستله او د اصفهان په دربار کې ئې هم دوني نفوذ وموند، چې درباریان ئې پر گرگین باندې لا بدگمانه کړل. تر هغه وروسته نو حاجي میرویس کندهار ته راغی او په کندهار کې ئې د ارغنداو پر غاړه د کندهار د اوسني ښار څخه شپږ میله لیرې په کوکران کې یوه لویه ملې جرگه جوړه کړه او خلکو ته ئې د اصفهان د دربار اوضاع بیان او د حجاز د علماوو فتوا ښکاره کړه او له دوی څخه ئې تعهد واخیست.

په دوهمه جرگه کې چې د کندهار د زیاتو قومو مشرانو لکه سیدال خان ناصر، بابوجان بابی، بهادر خان، پیرمحمد میاجي هوتک، یوسف خان هوتک، عزیز خان نورزی، گلخان بابر، نور خان برېڅ، نصرو خان الکوزی، یحیٰی خان د میرویس ورور، محمد خان د هغه وراره او یونس خان کاکړ گډون کړی وو، د خپلواکۍ د اعلان وثیقه لاسلیک سوه او ټولو په قرآن عظیم لوړه وکړه.

تر هغه وروسته میرویس خان د کندهار د ټولو قومو په مرسته د صفویانو بیگلربیگي گرگین خان او د هغه ټول لښکریان ووژل او د کندهار ښار ئې ونیو او د گرگین وراره الکسندل میرزا د هغه ستمگر مړی واخیست او د هغه د ښځو او کوچنیانو سره هرات ته وتښتېد.

وروستني مؤرخان د دې ملي مشر او قاید د آزادۍ غوښتلو د نهضت په نیټه کې اختلاف لري، مثلاً شېرمحمد ئې د (۱۱۲۰هـ) کال د صفري میاشت او سلطان محمد ئې د (۱۱۲۱هـ) کال صفره لیکي، خو نواب صمصام الدوله د هغې پېښې کال (۱۱۲۰هـ) گڼلی او خافي خان مؤرخ وایي چې په (۱۱۱۹هـ) کال په هند کې د محمد اعظم شاه دربار ته د گرگین د وژلو خبر ورسېد. ملسون د افغانستان په تاریخ کې (۱۷۰۹م = ۱۱۲۱هـ) کال لیکلی دئ او میرزا محمد خلیل صفوي (۱۱۲۲هـ) کال ښوولی دئ.

خو د پټې خزانې روایت تر ټولو مؤرخانو موثق او د باور وړ دئ، ځکه چې د پټې خزانې لیکونکي هغه پېښې پخپلو سترگو لیدلې او هم ئې مستقیماً له خپل پلار څخه روایت کړی دئ، چې په ۲۹ د ذیقعدة الحرام سنه (۱۱۱۹) هجري اولس ټول سول او د جنت مکان حاجي میر په مدد په کندهار ورننوتل او دښمنان ئې ټوله مړه کړل (پټه خزانه).

کندهار د جغرافي موقعیت له حیثه د ایران او هند د دوو شاهنشاهیو تر منځ ډېر

اهمیت درلود او هغه وخت چي ملي مجاهدینو د میرویس په مشري په کندهار کي د خپلواکۍ بیرغ ورپاوه، د هند تیموریه دربار د دې خبر په اورېدو وربږدېد او د پښتنو خپلواکي ئې د ځان له پاره لوی خطر وباله، دا ځکه چي د هند تیموري حکمداران د غوریانو او خلجیانو او لودیانو د امپراطوریو او برم د بېرته نوي کېدو څخه وبېرېدل، لکه صمصام الدوله او خافي خان چي لیکي:

هغه وخت چي د پښتنو د خپلواکۍ د اعلان خبر د هند تیموریه دربار ته ورسېد، نو په ښکاره ئې د مجبوریت په سبب د پښتنو خپلواکي تر یو ځایه په رسمیت وپېژندله، خو په پټه ئې د اصفهان د دربار سره مخابره او مفاهمه وکړه، چي د دې پېښي د مخنیوي په غرض چي د خافي خان په تصریح د دواړو هیوادو او اولسو له پاره د صایبي رایي مخالفه پېښه وه، ډېر ژر زیار وباسي (منتخب اللباب). خو حاجي میرویس چي د دوو قوي شاهنشاهیو تر منځ په خپل خطرناک موقعیت ښه پوهېدلی وو، په دریمه جرګه کي ئې د اولس مشران راغونډ کړل او وروسته تر هغه چي ئې د افغان اولس سیاسي موقف د دوو شرقي او غربي دولتو تر منځ وښووه او د دوی قوتونه ئې څرګند کړل نو وې ویل: "که زما سره یو سئ او زما ملا وتړی نو خپل د خپلواکۍ بیرغ به هسک وساتو او پرې به نه ږدو، چي بیا د پردیو د مریتوب کړی زموږ په غاړه کي ولوېږي. هغه کسان چي د پردیو مریتوب مني د هغو سره هیڅ اړه او خپلوي نه لرو او نور دي زموږ په هیواد کي نه اوسي".

ملي جرګې چي د ملي مشر وینا واورېدله نو ده ته ئې د موافقت لاس ورکی او ټینګه وعده ئې ورسره وکړه چي د خپل ژوند تر وروستۍ سوګلۍ پوري به د خپلي ملي خپلواکۍ او آزادۍ څخه دفاع کوي (تتمة البیان).

د ګرګین او د هغه د ملګرو د وژلو خبر د ګرجي لښکر د هغه بقیة السیف په واسطه اصفهان ته ورسېد، چي د ګرګین د خوا د پښین د سیمي د ترین د ټبر د مخنیوي له پاره هغې خوا ته تللی وو او د بېرته راګرزېدو په وخت کي میرویس شړلی او پارس ته تښتېدلی وو او هم پخپله میرویس صفوي پاچا ته لیک واستاوه او د افغان او فارس د جګړې د کتاب د مؤلف په قول په هغه لیک کي ئې لیکلی ول: "پاچا دي له تدبیره کار واخلي او کندهار ته دي لښکر نه رالېږي، ځکه ټوله پښتانه د دوی وژلو ته توري په لاس ولاړ دي او که مجبوره سي ښایي چي کندهار د ډهلي پاچا ته وسپاري، له دې سببه نو

صفوي پاچا باید د دې هیواد سیاسي موقع په نظر کي ونیسي". همدا شان ئې د ډهلي دربار ته لیک واستاوه او په هغه کي ئې د دواړو خواوو، د سني مذهب د درلودلو یادونه وکړه او طمع ئې ور پیدا کړه، چي که د هند دربار د ده مرسته وکي په راتلونکي وخت کي به د صفوي توابعو یوه برخه د اصفهان پر خلاف وپاروي.

مګر صفوي دربار وغوښته چي میرویس د تهدید او بېرولو له لاري د ځان تابع کړي، نو ځکه ئې میرویس ته یو استازی راوستاوه، چي د ملیسون په قول جاني خان او د سرجان مالکم او سید جمال الدین افغاني په قول محمد جامي خان نومېد. دې استازي له صفوي دربار څخه یو پیغام راوړی وو، چي د ایران پاچا د ګرګین وژل بخښي، خو میرویس باید اطاعت ته غاړه کښېږدي او صفوي لښکر کندهار ته پرېږدي او سربېره پر هغه نوموړي استازي افغاني زعیم د مقابل لوري له عظمت او شوکت او د دوی د کار د بدي خاتمې څخه وبېراوه، خو میرویس چي قوي زړه او ټینګ اعصاب درلودل، په ډېره مړانه ئې داسي جواب ورکړ: "ته فکر کوې، چي عقل او حکمت یوازي په ناز او نعمت کي لاس ته راځي او زموږ په غرو کي ئې اثر نسته. ستا پاچا که څه کولای سوای خپل کار ئې په زور پر مخ بېوه. دې بې فایدو خبرو ته اړ نه وو..." (سرجان ملکم).

میرویس امر وکی چي: هغه دروهلي صفوي استازی زندان ته بوزي او د ملیسون په قول په دې کار کي ئې دوه لوی مقصده درلوده، لومړی دا چي د ایران د دربار جواب ځنډ پیدا کړي، څو چي د لښکر تهیه کول او رالېږل هم وځنډېږي او بل دا چي د اصفهان دربار ته ثرګنده سي، چي د افغاني خپلواکۍ بیرغ ټیټېدونکی نه دئ او د صفوي دربار تهدید او تطمیع د ده او نورو زړورو پښتنو پر روح څه اغېزه نه لري.

څنګه چي د لومړي سفیر را استول میرویس خان د آزادۍ غوښتني له ټینګ عزم څخه و نه ګرزاوه، نو د اصفهان درباریانو له یوې بلي وسیلې څخه کار واخیست او د هرات حکمران محمد خان بلوڅ ئې چي د میرویس پخوانی دوست او د حج په سفر کي هم ورسره وو، د سفارت په توګه کندهار ته واستاوه، څو چي په دوستانه ډول د افغان ملي مشر سره خبري وکي او د خپلواکۍ تود نغری په دوستانه نصیحتو سوړ کي، خو افغان مشر نوي استازي ته وویل:

"خدای ته شکر وباسه چي ستا د ملګرۍ حق مي سترګو ته درېږي او که دا نه وای نو تا به هم د نورو په شان پاداش لیدلی وای. زموږ د غرو آزاد خلک بیا د مریتوب په

قید کي نه سي لوېدلای. زړورو زمریانو زنځیر شلولی دئ او له تېکو را ایستلي سوي توري بېرته په تېکو کي نه ایښوولي کېږي".

میرویس د دوستۍ د حق د احترام په اساس محمد خان په ښه عزت وساته او په دې وسیله ئې د اصفهان دربار ته څرگنده کړه، چي دی او د ده قوم به خپله ملي خپلواکي بیا له لاسه و نه باسي او د میرویس د دې مېړني ثبات او خلل نه منونکي عزم په مقابل کي د اصفهان دربار د هرات حکمران ته چي د محمد خان پر ځای مقرر سوی وو، په (۱۱۲۲هـ = ۱۷۱۰م) کال امر وکئ، چي پر کندهار یرغل وکي، خو میرویس د پنځو زرو پښتنو سپرو سره د هغه مخه ونیوه او سخته لویه ماته ئې ورکړه.

په راتلونکو (۱۸) میاشتو کي د اصفهان له خوا څلور واره نور پر میرویس او د پښتنو پر آزادۍ غوښتونکو باندي لښکرکښۍ وسوې، خو ټوله بېرته ناکامه پر شا ولاړې او وروستی پلا پنځه زره تنه لښکر د تبرېز د حکمران محمد خان په مشرۍ دې خوا ته وگمارل سول، چي یوازي پنځو سوو پښتنو سپرو پر شا وشړل او تر زرو زیات کسان ئې په جنگ کي ووژل سول او تېپیان ئې په ډگر کي پاته سول او پخپله حکمران هم د درو زامنو سره د پښتنو جنگیالیو په لاس کښېووت.

دې پرلپسې ماتو او ناکامیو د اصفهان دربار مجبوره کی، چي لویه لښکر کښي وکي، ډېر په قهر سو او خورا لوی خونخوار لښکر ئې را وویست او د دې لوی لښکر سالاري ئې د گرجستان د حکمران او وژل سوي گرگین وراره خسرو خان یا کیخسرو خان گرجي ته ورسپارله، چي د دربار له زبردستو کسانو څخه وو او دا د دې له پاره چي گوندي خسرو خان به د خپل اکا د خون اخیستلو په کسات د عصبیت د جوش له لاري کار پر مخ بوزي. هغه وو، چي خسرو د کندهار خوا ته پر مخ راغی او په فراه کي ئې واړول. په دې لویه لښکرکښۍ کي ئې د خراسان ټول امیران او د هرات حاکم او د کرمان حکمران علي قلي هم د خسرو ملگري ول.

میرویس په دې وخت کي د پټې خزانې د مؤلف پلار داود هوتک په فراه کي د پښتني قواوو سالار وټاکه، چي همهلته د خسرو سره ونښت، خو خسرو پر مخ راغی او میرویس د لږ قوت سره گرشک ته نژدې د هلمند پر غاړه تیار ناست وو. د خسرو لښکر د میرزا محمد خلیل په قول پنځوس زره سپاره او پلي ول، چي مجهزه توپخانه او خزانه هم ورسره وه او په دې کي (۱۲۰۰هـ) تنه خالص گرجیان ول، چي خاص د گرگین د خون

اخیستلو له پاره راغلي ول. بالمقابل پښتني ملي قواوي لړوې، ځکه نو را پر شا سوې او د خسرو لښکر کندهار کلابند کی (۱۱۲۳هـ = ۱۷۱۲م).

کندهاریانو د ښار په ساتلو کي په ډېره مېړانه پښې ټینګي کړې او په هره حمله کي ئې صفوي لښکر پر شا وواهه. پخپله میرویس هم خپل قوتونه له سره نوي راغونډ کړل او د کندهار د جنوب له خوا ئې د بلوڅو د پښین د ترینو او نور قومونه د وطن د ساتني له پاره راوپارول او د خسرو پر لښکر ئې یرغل وکی او د ذخیرو د رارسېدو لاره ئې پر وتړله، خسرو چي خپل نیم لښکر په دې اخ و ډب کي بایللی وو، وې غوښته چي بېرته پارس ته وتښتي، خو میرویس د خپلو (۱٦) زرو تنو سره پر هغه یرغل وکی او د جان مالکم په قول د صفوي تېري کوونکو له (۲۵) زرو تنو څخه یوازي پنځو سوو تر اوو سوو تنو پوري له مړیني ځان وژغورلای سو.

خسرو خان هم په جګړه کي د خپل اکا په سرنوشت اخته او ووژل سو او سر ئې د کندهار د کلا په پښو کي کښېښووه او دا د ۱۱۲۳ھ کال د روژې پر ۲۸ (او د مجمع التواریخ په قول په ۱۱۲۴ھ کي) پېښه سوه. تر دې خونړۍ جګړې وروسته چي کندهاري ننګیالیو صفوي تېري کوونکي ټول ووژل، د اصفهان دربار یو بل لوی مدهش لښکر د محمد رستم خان په قوماندانی کندهار ته راواستاوه، خو څنګه چي د ملي مشر موټ او بازو د اولس په اتفاق او مرسته ډېر سخت غښتلی وو، نو ځکه دې لښکر هم څه کار پر مخ نه بوت او مات سو او رستم د دې له پاره چي د خپلو اسلافو په سرنوشت اخته نه سي بېرته پارس ته پر شا سو (۱۱۲٦هـ = ۱۷۱۴م).

همدارنګه محمدزمان قورچي باشي هم له اصفهانه د لوی لښکر سره کندهار ته راواستول سو، چي دا سړی د میرزا خلیل په قول د بسطام په سیمه کي آخرت ته د مرګ په سفر ولاړ. څنګه چي په دې وخت کي د هرات ملیون هم (لکه چي وویل سوه) د ابدالي امیرانو په مشرتوب د متجاوزو صفویانو سره مقاومت کاوه، ځکه نو تر هغه وروسته کندهار ته د صفوي لښکر را استول ممکن نه سول او میرویس هم په کندهار کي د ښه واک خاوند او غښتلی ملي مشر سو، چي خلکو ورته د (بابا) لقب ور کی.

ده په دې وخت کي د ډهلي د دربار سره خپل سیاسي روابط ډېر ښه ساتل او (د کندهار ملي دولت) ئې هغه دربار ته په رسمیت معرفي کړی وو او په پای کي ئې د سیاسي دوستانه روابطو د لا ټینګښت له پاره خپل ورور حاجي امکو د سفیر په حیث د

هند د تیموري پاچا فرخ سیر دربار ډهلي ته واستاوه او د هغه په لاس ئې دوستانه سوغاتونه ورولېږل. د ډهلي دربار هم د کندهار ملي حکمران په رسمیت وپېژاند او د (حاجي امیر خاني) خطاب ئې د توري او پیل د سوغاتو سره د میرویس ملي دربار ته راواستاوه، (مجمع التواریخ) چي په دې سیاسي وسیله میرویس د خپل هیواد د لمر خاته خوا څخه تر یو څه حده ډاډه سو.

د میرویس د حکمرانۍ حدود له فراه او شینډنډ (سبزوار) او سیستان څخه نیولې تر پښین او د سلېمان د غره تر لمنو او شمالاً تر غزني پوري رسېدل او پر ابدالي او غلجي قبیلو ئې په مساوي توګه حکومت کاوه او بلوڅانو هم ورسره مرسته او ملګري کوله. ده د شاهۍ لقب و نه مانه او په هغه جرګه کي چي د کندهار قومو د ده د سترو خدمتو د تقدیرولو له پاره ئې دی پخپله پاچهي مانه، ده خلکو ته وویل: "ما د دې لهپاره ستاسي خدمت نه دئ کړی چي پاچاهي وکم، یا د پاچهۍ پر تخت کښېنم او خولۍ کږه کښېږدم.

زه په دې ښه نه ابسم، چي پر تاسي پاچهي وکم، بلکي په دې ښه ابسم، چي ستاسي خدمتګاري وکم. ماته همدا بس ده، چي اولس راته (بابا) ووایي، نور نو نه جواهر غواړم او نه سره او سپین زر.

زما همدا بس دي چي ستاسي خدمت وکم او تاسي د خپلو زامنو په څېر وروزم.
زما پاچهي د لاسه نه کېږي. زه ستاسي کوچنی خادم یم!"

د ده د دې خبرو مطلب د دري ژبي یو شاعر داسي منظوم کړی دی:

نه خدمت نمودم که شاهی کنم — بتخت شهي کج کلاهی کنم
نزیبد مرا شاهی و سروری — سر افرازم از افسر چاکری
مرا بس که گویند قومم "پدر" — ندارم طمع گوهر و سیم و زر
همین افسرم به که خدمت کنم — شما را چو فرزند خود پرورم
نه دیهیم شاهی بود در خورم — شما را همی کمترک چاکرم

میرویس یو ځیرک او پوه او دپلومات سړی وو. د ګاونډیانو په سیاسي اوضاع ښه پوه او په صفوي دربار ښه خبر وو. د حکمدارۍ په دود او دستور ښه پوهېد. اته کاله ئې د یو مشر بابا په حیث د خپل اولس مشرتوب وکی. خلک ئې راضي وساتل او په هره موقع کي ئې د خلکو په درد خوږل او د مهربان پلار په څېر ئې وروزل.

په کندهار کي ترا وسه خلک ورته (بابا) وايي او د يوه بزرگ قطب په شان د ده د مزار زيارت کوي او د ځينو نارغيو له پاره د ده د مزار خاوره شفا بولي. وايي چي، دې نوميالي مشر جگه ونه، قوي اندامونه او سپينه اوږده ږيره درلوده. پر سر ئې وړېښتان نه ول. سپين پرتوگ او سپين کميس ئې اغوستل او يو پټو ئې درلود، چي د کليو په ملي جرگو کي به ئې پر مځکه د خلکو په منځ کي غوړاوه او د کليوالو په څېر به پر هغه کښېنوست او نور به ئې هم پر خپل پټو کښېنول او ملي پېښي او قضايا به ئې د خپل صايب فکر په مرسته حل کول او خلک به ئې د يو بل سره دوستۍ، ښېگڼي، همدردۍ او مرستي ته بلل.

ميرويس د خپلو وطنخواهانه مجاهداتو په پای کي د افغاني سلطنت او ملي عظمت مړه ډېوه بيا په کندهار کي بله کړه او د خپلواکۍ او آزادۍ هېر سوی درس ئې د خپلو خلکو غوږو ته ورساوه او د (۱۱۲۷هـ کال د ذيحجة الحرام پر ۲۸ نېټه) له دې دنيا لاړ او د افغان په تاريخ کي ئې د تل له پاره نېک او ښه نوم پرېښوو. دی د کندهار د ښار لمر لوېدو خواته د کوکران په کلي کي د لوی سړک پر غاړه ښخ او دا بيت ئې پر مزار ليکلی دئ:

بر سر مرقد ما چون گذری همت خواه
که زيارتگه مردان جهان خـواهد بود
(۷۶ – ۷۷ عکس)

له ميرويس څخه دوه زامن پاته سول. يو محمود چي د پلار د مړيني پر وخت ۱۸ کلن وو او بل حسين چي ۱۴ کلن وو.

د ميرويس تر مړيني وروسته ئې ورور پر ځای کښېنوست، چي د مليسون او جان مالکم او سيد جمال الدين په قول (عبدالله) او د ده د معاصرينو لکه جهانکشای نادري او مجمع التواريخ او پټه خزانه او همدا رنگه د سلطان محمد او شېرمحمد او روضة الصفای ناصري او انسکلوپيدي اسلامي په موثوق قول (عبدالعزيز) نومېد. دې سړي د خپل ستر ورور په شان لوړ همت نه درلود او په مجردي چي واکمن سو، ملي جرگه ئې راوبلله او خلکو ته ئې د صفويانو د اطاعت منل پېشنهاد کړل. ملي جرگې دې جوغ ته غاړه کښې نه ښووه، خو عبدالعزيز د اصفهان دربار ته استازی ولېږه او په درې شرطه ئې د اصفهان د دربار اطاعت ومانه:



حاجي میرویس خان

۷۶ –لمبر عکس

لومړی د هغه باج او خراج معافول چي د ګرګین په وختو کي اخیستل کېده.

دوهم کندهار ته د صفوي لښکر نه راتګ.

دریم د عبدالعزیز په اولاده کي د پاچهۍ دوام.

څنګه چي پښتانه ملي خلک د عبدالعزیز په دې ناوړه وضعیت خبر سول، د دوی څلوېښتو زرو مشرانو د میرویس د مشر زوی محمود سره لاسونه یو کړل، څو چي ئې عبدالعزیز آخرت ته واستاوه.

خو په پټه خزانه کي لیکل سوي دي چي:

"میر عبدالعزیز چي د حاجي میر خان ورور وو، پس له مرګه د ورور په کندهار کي مشر سو، خو د اولس رعایت ئې کم کا، څو چي په (۱۱۲۹) سنه هجري د شپې د نارنج له قصره له بامه خطا سو او راولوېد، مړ سو" (پټه خزانه- ۱۰۹ مخ).

ملیسون د دې پېښي نېټه د (۱۷۱۶م) کال مارچ لیکي، چي د همهغه (۱۱۲۹هـ) کال سره برابره ده.

په هر صورت د کندهار ملي خلکو دا پردی پرسته سړی د مکافات پړاو ته واستاوه او پرې ئې نه ښوو، چي خپله ملي خپلواکي چي د زرو پښتنو زلمیانو په وینو اخیستل سوې وه، له لاسه وباسي او د عبدالعزیز تر مړیني وروسته ئې د میرویس مشر زوی چي محمود نومېد، خپل مشر وټاکه او محمود تر (۱۱۳۴هـ =۱۷۲۱م) کال پوري د کندهار د پاچا په حیث حکمراني وکړه، خو څنګه چي د پلار په شان ئې لوړ همت درلود، نو د ملي حکومت د پراختیا په فکر کي سو او په همهغه کال ئې د فراه او سیستان له لاري پر کرمان یرغل وکی او د هغه ځای د حاکم (لطف علي) سره تر روغي وروسته بیرته کندهار ته راغی، خو آرام نه کښېنوست او بیا ئې په همهغه (۱۱۳۴هـ) کال په کندهار کي ملي تازه دمه قواوي راغونډي کړې او د صفوي دولت پر پایتخت اصفهان ئې حمله وکړه او هغه ښار ئې کلابند کی او تر اتو میاشتو کلابندۍ وروسته د صفوي کورنۍ وروستي پاچا شاه حسین د ایران تاج او تخت محمود ته وسپاره او پایتخت ئې د پښتنو بریالي لښکر ته پرېښوو.

شاه محمود د ایران فاتح د اصفهان تر نیولو وروسته د خپلي شهنشاهۍ په وختو کي د خپلو لویو سپه سالارانو لکه سیدال خان ناصر، پیر محمد میاجي، محمد خان او عبدالله خان بلوخ په واسطه لویي لښکرکښۍ وکړې، څو چي تر دوه نیمو کالو پاچهۍ

وروسته د (۱۱۳۷هـ = ۱۷۲۵م) کال د برات په ۱۲ شپه په اصفهان کي د دماغي خلل د ناروغۍ په سبب د (۲۷) کالو په عمر ووژل سو او دا د سلطان محمد او شېرمحمد او د مأثر الامراء او رضة الصفای ناصري قول دئ، خو سید جمال الدین او ملیسون د ده د وژلو نېټه (۱۷۲۵م = ۱۱۳۸هـ) کال لیکلی دئ.

د اصفهان د فاتح شاه محمود تر وژلو وروسته د میرویس وراره د عبدالعزیز زوی شاه اشرف په اصفهان کي د افغاني سلطنت پر تخت کښېنوست او د هغې زېرکۍ په اثر چي ئې درلوده د سلطنت چاري ئې په ډېره ښه او سمه توګه اداره کړې او سیدال خان ناصر ئې بیا د افغاني لښکرو سپه سالار وټاکه او هري خواته ئې لښکرکښۍ او فتوحات وکړل. د ده د وخت له مهمو پېښو څخه یو هم د بغداد د والي احمد پاشا لښکرکښي وه، چي د شاه اشرف د جلوس په دریم کال د (۱۱۳۹هـ کال د برات له ۱۲ څخه د ۱۱۴۰هـ = ۱۷۲۷م کال تر منځ) وسوه او شاه اشرف پخپل لښکر ترکان مات کړل، خو نور ئې پښتانه نه پرېښووه چي د ترکانو سره ونښلي، دا ځکه چي شاه اشرف نه غوښته د ترکانو او پښتنو تر منځ زیات مرګ او ژوبله وسي. هغه وو، چي د شاه اشرف د ښه سیاست په اثر دا پېښه تر (۹) میاشتو وروسته په روغه او صفا تصفیه سوه او د ده د جلوس په پنځم کال (۱۱۴۲هـ = ۱۷۲۹م) د عثماني خلیفه دریم سلطان احمد خان له خوا راشد پاشا د سفیر په ډول د شاه اشرف دربار اصفهان ته راغی او هم له افغاني درباره محمد علي خان بلوڅ د ایلچي په حیث عثماني دربار ته ولاړ او په دې توګه د افغاني او عثماني دولتو تر منځ ښه روابط ټینګ سول.

تر هغه وروسته شاه اشرف د اېران له شمال څخه د روسي قواوو د تېري مخه هم ونیوه، خو په داخل کي د نادر افشار غوندي بده (حریف) سره مخامخ سو او د افغاني قوت رسۍ سره وشلېدله، دا ځکه چي له کندهاره چي د هوتکي پاچهۍ مرکز وو، هم په اېران کي افغاني لښکرو ته مرسته و نه رسېدله او له همدې سببه اشرف څو ځایه ماته وکړه او تر پنځو کالو او (۷) میاشتو پاچهۍ وروسته له اېرانه را پر شاسو او د هلمند پر غاړه د ګرمسېر د ملخان کلا ته راغی او له هغه ځایه ئې د کښته ښوراوک زرد کوه ته پناه یووړه او همهلته د عبدالله خان بلوڅ د زوی ابراهیم نامي له لاسه ووژل سو او دا پېښه د (۱۱۴۲هـ = ۱۷۲۹م) په پای کي وه.

خو په کندهار کي چي د هوتکو د پاچهۍ مرکز وو، تر (۱۱۳۵هـ) کال وروسته چي

شاه محمود اصفهان ونیو د ده کشر ورور شاه حسین حکومت کاوه. دی عالم او ادیب او ادب پالونکی پاچا وو. د ده د پاچهۍ وخت په کندهار کي په آرامۍ او هوسايۍ تېر سو او د پښتو خزانې په قولو چي د ده په دربار کي ليکلې سوې، د ده امر له هراته او فراه او شين ډنډ (سبزوار) څخه نیولې تر غزني او گومل پوري چليدی او هم ئې د شال (کوټې) او پښين سيمي د پنجاب د حدودو تر ډېرۀ اسماعيل خان او ډېرۀ غازي خان پوري ونيولې او همدا رنگه د کندهار د قواوو له خوا د ملتان صوبه تر تهديد لاندي ونيوله سوه او د افغاني قواوو پرمختگ تر ملتانه ورسېد. په دې وخت کي د هوتکو شهنشاهي د اوسني بلوچستان په شمول د دجلې له غاړو څخه تر ملتان پوري رسېدلې وه، چي په لمر لوېده خوا ته شاه محمود او شاه اشرف او لمر خاته پلو ته شاه حسين حکومت کاوه.

د شاه حسين د پاچهۍ آرامي دورې تر (۱۱۴۹هـ = ۱۷۳۶م) پوري دوام درلود او د همدې کال د درجب په (۱۷) وو، چي نادر افشار د افغانستان د سيمو د نيولو په غرض لښکر راويوست، ځکه چي ده په پارس او گرجستان کي د افغاني قواو پايځوړ سره تيت او پرک کړی وو او دا وخت ئې نو بې د کندهار د هوتکي دولت له ماتولو څخه بل کار نه درلود. هغه وو چي نادر شاه د کوچني اختر د مياشتي په دوهمه له سيستانه راتېر سو او د شوال پر ۱۸ د دلخک او دلارام له لاري د هلمند پر غاړه د گرشک کلا ته راورسېد او د هغه ځای تر نيولو وروسته د کوچني اختر د مياشتي پر (۲۱) له هلمنده راپوريوت او د (۱۱۴۹هـ = ۱۷۳۶م) کال د ذيقعدې د مياشتي په سر کي د کندهار ټينگه کلا، چي هوتکي پايتخت وو، کلابنده کړه.

د کندهار زلمي مدافع شاه حسين د نامتو سپه سالار سيدال خان ناصر په ملاتړ او ملگرۍ تر يوه کاله او څو مياشتو پوري د کندهار له ښاره په ډېره مړانه دفاع وکړه او نادر شاه ئې پرې نه ښوو، چي سره د خپل ډېر غښتلي نظامي قوته بيا هم کندهار ونيسي.

د (۱۱۵۰هـ = ۱۷۳۷م) کال د ذيحجې د مياشتي په سر کي د شاه حسين نظامي مقاومت پای ته ورسېد، ځکه چي تر هغه دمه لا د ده زړور سپه سالار سيدال خان ناصر د ده د زوی محمد نامي سره د کلات په کلا کي د نادر افشار لاس ته ورغلی وو او سيدال د نادر په امر ړوند کړه سوی وو.

له دې جهته نو شاه حسين نادرشاه ته تسليم سو او د کندهار د سقوطه سره د هوتکو د شاهنشاهۍ ستوری هم ولوېد او ټول افغانستان د نادر افشار لاس ته ورغی

او د سلطان محمد په قول شاه حسين تر ۱۵ کاله پاچهي وروسته د نادر په امر مازندران ته فرار کړه سو او همهلته د ۱۱۴۹ھ کال (بايد ۱۱۵۱ھ = ۱۷۳۸م وي) د برات دمياشتي پر لسمه دنادري قهر په زهرو له دنيا ولاړ. (۷۸ – ۷۹ – ۸۰ لمبر عکس).

د افغانستان په تاريخ کي د هوتکو د حکمرانۍ دېرش کلنۍ دوره د داخلي نهضت او د خپلواکۍ غوښتني د احساس د جوش له حيثه خورا مهمه دوره ده، ځکه چي په دغه دوره کي ځو واره پرله پسې په کندهار کي د داخلي او ملي حکومت بنسټ کښېښووه سو، چي وروسته بيا احمدشاه بابا پر هغه بنسټ د افغاني سلطنت ماڼۍ ودانه کړه. دې دورې پښتون اولس دنيا ته په زړورتوب وپېژاند. پخپله ميرويس غښتلی او منلی محبوب شخصيت درلود او د پوهي او پښتني روزني په غېږ کي پالل سوی وو. مور ئې نازو د سلطان ملخي لور عالمه او شاعره مېرمن وه، چي پټه خزانه د دې او د ميرويس خان د لور "زينبي" پښتو شعرونه راوړي.

سربېره پر هغه د هوتکو په دوره کي ډېر اديبان او د توري او قلم خاوندان ول، لکه سيدال خان ناصر ستر پښتون سپه سالار او بهادر خان او پيرمحمد مياجي او داودخان چي د هغې دورې، هم جنګيالي سالاران او هم پوهيالي عالمان او شاعران ول. د هوتکو په وخت کي د پټې خزانې کتاب د پښتو د لرغونيو او معاصرو شاعرانو د ژوند د حالاتو په باب کي د شاه حسين د دربار د منشي محمد هوتک په قلم وليکل سو او همدا رنګه ملا باز محمد توخی او ملا يار محمد هوتک (د ارکان خمسه مؤلف) او ملا يونس توخی او ملا اکبر (په پښتو کي د جامع الفرايض مؤلف) او ملا زعفران توخی (د سلطان په قول تره کی او د امير عبدالرحمٰن په قول توخی) د شاه حسين وزير او د "ګلدستۀ زعفراني" مؤلف، او الله يار اپريدی د پښتو شاعر او د دېوان خاوند او رېدی خان (د شاه محمود هوتک د فتوحاتو په باب کي په پښتو ژبه د محمود نامې ناظم) او ملا عادل (په پښتو د محاسن الصلوة مؤلف) او ملا نورمحمد (په پښتو د نافع المسلمين مؤلف) د هوتکي عصر شاعران او مؤلفان ول.

شاه حسين د کندهار د ښار د نارنج په شاهي ماڼۍ کي، چي کنډوالې ئې تر اوسه سته ادبي جرګې درلودلې، عالمان او ژبور اديبان ئې پالل، ميا عبدالحکيم کاکړ (مشهور په نانا صاحب چي د اوسني بلوچستان په چهيالۍ کي ښخ دئ) د همدې عصر له نوميالیو روحانيونو او صوفيانو څخه وو، چي په نقشبنديه طريقه کي د خپل وخت له اقطابو څخه ګڼل کېږي.

## هوتکیان:

۱- میرویس خان د ښالم خان زوی (۱۱۱۹ – ۱۱۲۷هـ)
۲- عبدالعزیز د ښالم خان زوی (۱۱۲۷ – ۱۱۲۹هـ)
۳- *شاه محمود د میرویس زوی (۱۱۲۹ – ۱۱۳۷هـ)
۴- *شاه اشرف د عبدالعزیز زوی (۱۱۳۷ – ۱۱۴۲هـ)
۵- *شاه حسین د میرویس زوی (۱۱۳۵ – ۱۱۵۰هـ)

## مأخذونه:

مخزن افغاني – تذکرة الابرار – جغرافیای تاریخی ایران – معجم البلدان – طبقات ناصري – حیات افغاني – مأثر الامراء – منتخب اللباب ۲ ټوک – تاریخ افغانستان د ملیسون تالیف – تتمة البیان – سر جان مالکم – پټه خزانه – روضة الصفای ناصری – تاریخ افغانستان د علي قلي میرزا – تاریخ نظامي ایران لومړی ټوک – تاریخ ایران د سرپرسي سایک – نادر نامه (قلمي) – سیر المتأخرین – مجمع التواریخ – میرویس بابا د کابل چاپ – تاریخ کرمان – خورشید جهان – تاریخ سلطاني – صولت افغاني – د صفویانو سقوط او پر پاریس باندي د افغانانو سلطه د لوکهارت انګلیسي تالیف ۱۹۵۸م – د محمد علي حزین د احوال تذکره – بدایع الوقایع.

# سدوزيان

(۱۱۶۰-۱۲۵۸هـ)

دمخه مو وويل چي نادر شاه د امام قلي زوی (جلوس ۱۱۴۸هـ = ۱۷۳۵م) له ايرانه د هوتکو د پاچهۍ کمبله ټوله کړه او هم ئې په هرات کي د ابداليانو حکمراني له منځه يووړه او په تېره بيا د کندهار په نيولو ئې د هوتکو پاچهي بېخي ختمه کړه.

نادر شاه د کندهار د زاړه ښار د کلابندۍ په وخت کي د کندهار د اوسني ښار د جنوب خوا ته په نمناکو مځکو کي د "نادر آباد" په نامه يو ښار ودان کی او په هغه کي ئې په (۱۱۵۰هـ = ۱۷۳۷م) کل پخپل نامه سکه ووهله او زوړ ښار ئې تر نيولو وروسته ونړاوه، چي تر اوسه پر همهغه وران حال پاته دئ. نادر په همهغه کال د افغانستان شمالي ولايتونه له بدخشانه تر بلخ او ميمنې او د آمو تر سينده د خپل زوی رضاقلي په واسطه ونيول او د کندهار تر نيولو وروسته ئې د سلطان محمود او بابر سياست وچلاوه او د افغاني مشرانو سره ئې نرمه رويه راواخيسته. عبدالغني خان الکوزی ئې د هرات د ابداليو قبيلو د مشر په حيث وپېژاند او پيرمحمد خان هروي ته ئې د بلوڅو او خاران حکومت ورکی او حاجي اسماعيل الکوزی ئې د هرات د اسفزار حاکم وټاکه او اشرف خان غلجي ته ئې د کلات حکومت وسپاره.

ده نږدې ځلويښتو زرو ته پښتانه زړور سپايان د نورمحمد خان علي زي په مشري چي لقب ئې "مير افغان" وو، پخپل لښکر کي واخيستل او د سياسي زيرکۍ په سبب ئې پر خپلو افغاني عسکرو بشپړ باور او اعتماد وکی. نادر شاه د زمان خان ابدالي زوی احمد خان او ذوالفقار خان چي په کندهار کي د شاه حسين هوتک په امر بنديان ول، ونازول او په مازندران کي ئې جاګير او تنخا ورته وټاکله (۱۱۵۱هـ = ۱۷۳۸).

نادر شاه بې ځنده د کابل خواته رهي سو. د غلجو کلات ئې ونيو او خپل لښکر ئې غزني او کابل ته واستاوه. په دې وخت کي د کابل حکمران د ډهلي د دربار له خوا ناصر خان يو غښتلی، زړور او د خلکو خوښ سړی وو، خو څنګه چي ئې د ډهلي د دربار

له خوا ملاتړ نه کېدی او حتی د ده تنخائې هم نه ورکوله، ځکه نو د ده د مقاومت قوت لږ وو. سره له هغه ناصر خان د شرزه خان او نورو افغاني قبیلو په مرسته له کابل څخه دفاع کوله او رحیمداد خان کوتوال په ښار کي کلابند وو، څو چي په پای کي نادر شاه د کابل د ښار کلاوي وراني کړې او وې نیولې (۱۱۵۱هـ) او همدا رنگه د نادر زوی د بامیان او ضحاک او د هندوکش د لمنو د نورو کلاوو نیولو ته مخه کړه او د کابل او پېښور د لاري خانان عباس خان او سعد الله خان هم د نادر له خوا ونیول سول، خو ناصر خان د کابل او پېښور تر منځ پښتانه قبایل د نادر په مقابل کي جنگ ته چمتو کړل او د نادر د زوی شهزاده نصرالله د لښکر سره ونښت. ناصر خان په یوه جگړه کي ټپي او گرفتار سو، خو نادر شاه هغه بیا له خپلي خوا د کابل او پېښور په حکمرانۍ وگوماره او پخپله ده د اېران او افغان د تازه دمه لښکر سره پېښور ونیو او بیا تر لاهور او ډهلي پوري پر مخ ولاړ (۱۱۵۲هـ = ۱۷۳۹م).

نادر شاه د ډهلي تر قتل عام او چور او چپاو وروسته د انگرېزي اووه اتیانیم ملیونو پونډو په اندازه ثروت او جواهر او د شاه جهاني تخت طاوس سره پېښور ته راستون سو (۱۱۵۲هـ) او چي تر اټک راپوري ووت، د یوسفزو سره ونښت او په ډېر تلوار د خیبر تر درې راتېر سوو، څو چي تر کابل پوري سیمي ئې تصفیه کړې. تر هغه وروسته دکابل له جنوبي لاري د کورم او بنگښ او دېره جاتو او سند خوا ته ولاړ او د سند د سیند ټولي لمر لوېده خوا ته مځکي ئې ونیولې او د بولان د درې له لاري کندهار او هرات ته ولاړ او په (۱۱۵۳هـ) کال ئې د خپلو فتوحاتو جشن چي له ماوراء النهر او خوارزم څخه نیولې د سند تر سینده او د دجله او فرات او سیحون پوري رسېدل، په مشهد کي جوړ کی او د (۱۱۵۴هـ = ۱۷۴۱م) کال په شاوخوا کي ئې احمد خان ابدالي له مازندران څخه راوغوښت او د ابدالي لښکر په مشرۍ ئې خپل همرکاب وټاکه. احمد خان شپږ کاله د نادر شاه سره په حضر او سفر کي د جهاندارۍ په چارو کي تجربه وکړه او داغستان او ایروان ته ئې د نادر شاه په جنگي سفرو کي خپل جنگي رشادتونه وښوول او تر دې حده ئې د نادر خاصه توجه ځانه ته واړوله چي نادر شاه به تر ځان وروسته پر ده باندي د پاچهۍ د مقام د نیوو زیری کاوه.

نادرشاه تر زیاتو فتوحاتو وروسته د مزاج د اوښتلو په سبب له طبیعي حد څخه ووت او د خپلو شاوخوا خلکو په وینو تویولو او وژلو ئې لاس پوري کی، څو چي د ده

خپل نژدې درباري خلک ځني وبېرېدل او د (۱۱۶۰هـ = ۱۷۴۷م) کال د دريمي خور (جمادي الاخرى) پر ۱۱ د يکشنبې په شپه د خبوشان په فتح آباد کې د محمد خان قجر او موسىٰ افشار او خواجه بېگ افشار او صالح قرقوي له خواد نورو اويا تنو درباريانو په اتفاق ووژل سو.

نادر افشار يو زړور، هوښيار او خونکار سړی وو. د ده سياست په افغانستان کې د قهر او ناز سره ګډ وو. ده د هرات د ابداليانو ملي مشرتوب له بېخه ويوست او بيا ئې په کندهار کي د هوتکو پاچهي هم له منځه يووړه او د دې دواړو ټبرو مشران چي په افغانستان کي ئې د خپلواکۍ بيرغ جګ ساته، د ده له لاسه ژوبل او برباد سول، خو د دې قهر او ناز غضب سره، سره ئې په ټول افغانستان کي د نوموړو قبيلو د پاته مشرانو سره جوړ سو او هغه ئې ونازول او ډېر پښتانه زړور زلميان ئې په خپل لښکر کي د افغاني سالارانو په قيادت واخيستل او هغه ئې وپالل.

که له يوې خوا نادر شاه د پښتنو ملي حکومت په هرات او کندهار کي له پښو واچاوه او د کندهار د زاړه ښار کنډوالې تر اوسه د ده د وران کاريو شاهدي دي، نو له بلي خوا د احمد خان ابدالي غوندي مېړه پالنه به چي وروسته ئې په کندهار کي بيا د پښتنو د لويي پاچهۍ خښته کښېښووه، هم د ده د ښو يادګارو څخه وګڼل سي.

په هر حال، د نادر شاه تر وژلو وروسته احمد خان ابدالي او نورمحمد خان عليزي مير افغان د پښتنو او اوزبکو سپايانو په مرسته د نادر شاه حرم د ياغي لښکريانو له چور او چپاو څخه وژغوره، چي د دې خدمت په بدل کي د نادر شاه د حرم له خوا د "کوه نور" مشهور الماس چي په هند کي له لوديانو پښتنو څخه بابر او د هغه کورنۍ ته پاته سوی وو او د ډهلي تر نيولو وروسته د نادر شاه لاس ته ورغلی وو، ورکړه سو او ټولو پښتني قواوو هرات ته مخه وکړه او د (۱۱۶۰هـ = ۱۷۴۷م) کال د رجب په مياشت کندهار ته ورسېدل او د دوی د رسېدو سره سمدستي پښتنو مشرانو د نادرآباد نوي کلا ته نژدې د شيرسرخ پر هديره باندي ملي جرګه جوړه کړه، چي په هغه کي د پښتنو د ځينو مشهورو قبيلو مشرانو لکه نورمحمد خان ميرافغان د عليزو مشر، او محبت خان د پوپلزو مشر او موسىٰ خان د ساګزو مشر او نصرالله خان د نورزو مشر او حاجي جمال خان د بارکزو مشر ګډون کړی وو.

دې ملي جرګې له شوره ډکي اته غونډي وکړې او په دې غونډو کي د قبيلو

مشرانو و نه سو کولای چي يو د بل حکمراني پر ځان ومني. نورمحمد خان ميرافغان عليزي د مشرتوب او تجربې او نفوذ له حيثه د دې کار وړ ښکارېده، څنګه چي د تند مزاج خاوند وو، و نه ټاکل سو. دوهم سړی چي حاجي جمال وو، هم دوني پوخ، متين او د نفوذ څښتن وو، چي نورو مشرانو د ده د راتلونکي استبداد، قدرت او استيلا څخه په زړو کي تشويش درلود او ټولو خلکو د پاچهۍ د مقام له پاره داسي سړی لټاوه، چي د پښتني آزاد مزاج او د ملي ديموکراسۍ او قوي جرګې د اصولو سره ئې سمون درلوداى او په راتلونکي وخت کي ئې پر دوی په استبداد او زور حکومت نه کولای او په عين زمان کي د غښتلي او قوي قبيلې خاوند هم نه وای.

د دې لويي تاريخي جرګې په نهمه غونډه کي د ټولو خلکو سترګي احمد خان ابدالي ته واوښتلې، چي ۲۵ کلن خليق، حليم، تجربه لرونکی او ازمويلی سوی زلمی وو او هم ئې قبيله کوچنۍ او (سدوزي) ډېر لږ وو او پښتنو مشرانو دا باور درلود چي دا کشر زلمی پر دوی په استبداد او شدت حکومت نه سي کولای، ځکه ئې نو دی په پاچهۍ ومانه او د دې ښه انتخاب په سبب ئې د پښتنو له لاسه وتلی لرغونی برم او عظمت بيا راژوندی کی.

په دې وخت کي صابر شاه نومي يو ملنګ د استاد لايخوار کابلي زوی، چي د شېر سرخ په هديره کي اوسېد د خپلي کوډلي را و ووت او هديرې ته نژدې له کښت څخه ئې څو وږي پرې کړل او د دې نوي انتخاب سوي زلمي پاچا په بګړۍ کي د پاچهۍ د "خول" په توګه وټومبل او دا د (۱۱۶۰هـ = ۱۷۴۷م) کال د رجب په مياشت کي پېښه سوه (جولای ۱۷۴۷م). احمد شاه ابدالي د هرات د حکمران زمانخان (چي د مخه ئې يادونه وسوه) زوی، په خټه ابدالي سدوزی په (۱۱۳۵هـ = ۱۷۲۲م) کال د زرغونې نومي مېرمني له نسه چي په خټه الکوزۍ وه، په ملتان يا هرات کي وزېږېد او سره له دې چي د سن له مخي کشر وو، خو د خپل سلطنت په وختو کي ئې افغانستان ته لوی خدمت وکی، چي په همدې سبب د افغانستان خلکو ورته د "بابا" لقب ورکی.

خو ده په خپل مهر کي چي طاوسي شکل ئې درلود دا جمله کيندلې وه "الحکم الله يافتاح- احمد شاه در دران" د (دراني) کلمه که څه هم پخوا په تاريخو کي په شاذ ډول استعمالېدله، خو تر هغه وروسته ئې بېخي د (ابدالي) کلمې ځای ونيو او تر اوسه ټول ابداليان ځانونه (دراني) بولي.

احمد شاه په افغانستان کي اداري او لښکري او مالي او مدني تشکیلات تاسیس کړل او وزیران ئې وټاکل، چي اشرف الوزراء بېګي خان بامیزی مشهوره په شاه ولي خان د ده وزیر اعظم وو او په یکشنبه د ربیع الثاني په لومړۍ ورځ (۱۱۶۸هـ = ۱۷۵۳م) کال ئې د (احمد شاهي ښار) په نامه د کندهار د اوسني ښار بنسټ کېښېښوو او په (۱۱۶۶هـ) کال ئې د کابل جنګي حصار ودان کی او هم ئې د هندوکش په شمال کي د تاشقرغان ښا ر جوړ کی (۱۱۸۲هـ) او په کندهار او مشهد او اټک او ډهلي او روهلیکنډ او پېښور او ټټه او ډېره غازي خان او کشمیر او کابل او ملتان او هرات کي ئې پخپل نامه سکه ووهله او د ده د سرو زرو او سپینو زرو او مسو پر سکو د احمد شاهي دولت رسمي نښان دوې ځوکي لرونکې توره او د غنمو وږی او ستوری کیندل سوی وو او پر ځینو سکو دا بیت هم وو :

حاکم شد از قادر بیچون باحمد پادشاه
سکه زن بر سیم وزر از پشت ماهی تا بماه

احمد شاه په اوسطه توګه یو لک عسکر ساتل او له پنجاب او کشمیر او سنده نیولې د آمو تر سیند او مشهد او بحیره عرب پوري د ده د هیواد ټول عایدات (۳۱) ملیونه روپو ته رسېدل، خو جنګي اولجې او خزانې او نور زیات ثروتونه چي د هند په جګړو کي لاس ته ورتله، له دې حسابه مستثنٰی دي.

احمد شاه بابا د خپلي پاچهۍ په وختو کي دا جنګي سفرونه کړي دي:

د احمد شاه بابا جګړئیز سفرونه:

۱– د (۱۱۶۰هـ = ۱۷۴۷م) کال په پای کي ئې غزني او کابل او پېښور ونیو او په کابل او پېښور کي ئې (تیموري او نادري پخوانی حاکم) ناصر خان مات کی او عبدالصمد خان مومندزی د اشنغر یو مشر د احمدشاهي لښکر سره یو ځای سو. احمدشاهي سپه سالار سردار جهانخان، ناصر خان د اټک ها خوا ته وځغلاوه او پخپله احمدشاه کندهار ته ولاړ.

۲– په (۱۱۶۲هـ = ۱۷۴۹م) کال د دېرشو زرو پلیو او سپرو سره له کندهاره رااووت او د کابل او پېښور له لاري د اټک او جهلم غاړو ته ورسېد. د لاهور حکمران شهنواز خان د وزیر الممالک قمر الدین خان په واسطه له ډهلي څخه مرسته وغوښته او د پنجاب د سیند پر غاړه د احمدشاهي لښکر سره مخامخ سو، خو د جنګ له میدانه

وتښتېد او احمد شاه لاهور ونيو او بيا ئې نو نصير خان بلوڅ مطيع کړ.

څنگه چې د ۱۱٦۱ هـ کال د لومړۍ خور پر ۲۲ د جمعې په ورځ د مالوپور په جگړه کې وزير الممالک قمرالدين خان ووژل سو، ځکه نو د ډهلي گورگاني پاچا محمد شاه د لاهور ولايت د هغه خلف ميرمنو معين الملک ته وسپاره او احمدشاه د ډهلي د دولت سره روغه وکړه او اباسين ئې د دوو هيوادو تر منځ وېش وټاکه. د لاهور د حکمران ميرمنو معين الملک سره ئې هم روغه وکړه. د سيالکوټ او گجرات او د پنجاب د اورنگ آباد او امرتسر ماليات ئې د ميرمنو پر غاړه کښېښوول، چې هر کال به ئې احمد شاهي لوی دېوان ته رسوي. کندهار ته بېرته د رارسېدو پر وخت ئې د قبيلو ځيني مشرانو چې د ده پر خلاف ئې دسيسه جوړه کړې وه، لکه نورمحمد خان ميرافغان عليزی او گدو خان او محبت خان پوپلزی ئې ووژل.

۳- په ۱۱٦۳ هـ ۱۷۴۹م کال هرات ته ولاړ او هغه ښار ئې تر څلورو مياشتو کلابندۍ وروسته له امير عالم خان څخه ونيو او د سردار جهان خان پوپلزي په مشري ئې پنځه زره سپاره تربت جام ته ولېږل او هرات ئې درويش علي خان هزاره ته وسپاره او پخپله مشهد ته رهي سو او هغه ښار ئې تر څلورو مياشتو کلابندۍ وروسته د نادر شاه نمسي شاهرخ ميرزا ته ورکی او پخپله د نشاپور خوا ته ولاړ، خو څنگه چې د نشاپور حاکم عباس قلي خان بيات مقاومت وکی، او له بلي خوا د ژمي سخت موسم راغی، احمدشاه د هرات له لاري کندهار ته راوگرځېد.

۴- د بلوچستان سفر: د احمد شاه د جلوس په وخت کي د کلات حکمران او د براهوي خان د نادر شاه له خوا د مير عبدالله مشر زوی مير محبت خان وو، خو څنگه چي بلوڅان د هغه د کشر ورور امير نصير خان پر خوا ول، او د احمدشاه حضور ته ئې هم عرض کړی وو، نو ځکه په ۱۱٦۴هـ کال چي احمد شاه د خراسان له سفره راوگرزېد سمدسي ئې له کندهاره د بلوڅو کلات ته مخه وکړه، په دې وخت کي مير نصير خان د سند په خدا آباد کي ميانورمحمد کلهوره ته ناست وو، او مور ئې بي بي مريمه په کندهار کي وه او دواړو شاهي مرسته غوښتله.

احمد شاه مستنگ ته تر رسېدو وروسته کلات ته رهي سو، مير محبت خان، حاجي رحيم خان بابی د کلام الله سره د احمدشاه حضور ته شفيع واستاوه، احمدشاه هم د سمدستي له پاره د کلات خاني مير محبت خان ته پرېښووه، بېرته کندهار ته راغی او

نوموړي خان خپله يوه خور چي بي بي مير گوهر نومېدله د آخون محمد حيات په وسيله په غزني کي د احمدشاه حضور ته واستوله، چي د هغه په نکاح سوله.

تر څو مياشتو وروسته د بلوڅو د خانۍ د مسئلې د فيصلې له پاره د هغې سيمي ټول نوميالي سرداران کندهار ته د احمدشاه حضور راوغوښتل سول، او نصير خان هم د خپلي مور سره هلته وو، څو په پای کي احمدشاه، مير محبت خان د طهماسپ خان په لاس بندي کی او مير نصير خان ئې د کلات په خاني وگوماره (۱۱۶۴هـ).

خو ميرنصير خان په کلات کي سر واخيست او د خودسرۍ بيرغ ئې پورته کئ، هغه وو، چي د بلوڅو د قبيلو يوې برخي په کندهار کي د احمدشاه حضور ته استغاثې وکړې. احمدشاه چي دا خبر واورېد، دستي ئې حرکت وکی او کلات ئې دوولس ورځي کلابند کی، خو د جنگ او وينو تويولو امر ئې ورنه کی، څو چي په پای کي نصير خان د آخون محمد حيات او وزير شاه ولي خان په واسطه د احمدشاه حضور ته ورسېد او وبخښل سو او تر هغه وروسته ئې په احمدشاهي لښکر کښيو کي گډون کاوه.

۵- په ۱۱۶۴هـ کال بيا احمدشاه د خپل لښکر سره د هرات له لاري پر نشاپور حمله وکړه. د نشاپور کلا ئې په لويو توپو سورۍ کړه او وې نيوله، او د هغه ځای حکومت ئې بېرته عباس قلي خان بيات ته، چي تسليم سوی وو، وسپاره. احمدشاه د خراسان شاوخوا پاکه کړه او د مشهد د حکمران شاهرخ ميرزا سره ئې په دې شرط روغه وکړه چي سکه او خطبه د ده په نامه وي او د جام او باخرز او تربت او خواف او ترشيزو ولايتونه احمدشاه ته وسپاري، تر هغه وروسته شاهرخ خپله سکه په دې بيت ښکلې کړه:

يافت از الطاف احمد بادشاه
شاهرخ بر تخت شاهی تکيه گاه

احمد شاه له مشهده هرات ته راغی او وزير شاولي خان ئې مرو او ميمنې او اندخود او بلخ او باميان او بدخشان ته واستاوه، چي نوموړي وزير د افغانستان ټول شمالي ولايتونه د هيواد په مرکز پوري وتړل.

۶- په ۱۱۶۵هـ = ۱۷۵۱م کال د پنجاب د سيمو د تصفيې له پاره لاهور ته ولاړ، ميرمنو معين الملک تر ځلور مياشتو پوري مقابله وکړه، خو تر هغه وروسته تسليم سو او احمدشاه دی د هغه ځای د حاکم په حيث وپېژاند.

په دې سفر کې د احمدشاه له حضوره (ایشیک اقاسي) شاغاسي عبدالله خان د کشمیر نیولو ته وګومارل سو، چې هغه سیمې ئې ونیولې او خواجه عبدالله کوچک ئې د کشمیر حاکم او سکیجون هندو ئې د هغه ځای مستوفي وټاکه او قلندر خان پښتون ئې د ډهلي دربار ته سفیر واستاوه او ګورګاني احمدشاه ومنله چې پنجاب او سند او کشمیر دې د احمدشاهي هیواد برخه وي.

احمد شاه د پنجاب او ملتان او کشمیر د چارو تر سمون وروسته د سند د سیند ښي غاړې ته راپوري ووت، بنو او کابل ته راغئ او له دې ځایه بېرته کندهار ته ولاړ.

۷ – د ۱۱۶۷هـ کال په سر کې احمد شاه سند ته یو سفر وکی، چې شرح به ئې وروسته راسي، خو د همدې کال په منځ کې له کندهاره هرات ته ولاړ او د خراسان تر تصفیې وروسته ئې مشهد کلابند کی او د نادرشاه نمسی شاهرخ میرزا د ده اطاعت ته غاړه کښېښووه. احمدشاه د ړانده شاهرخ نیابت نور محمد خان افغان ته وسپاره، جام او باخرز او خاف او تربت او ترشیز ئې په هرات پوري وتړل او شاه پسند خان ئې د شاهرود او بسطام او سبزوار د نیولو له پاره واستاوه.

تر هغه وروسته احمدشاه عباس قلي خان بیات په نشاپور کې کلابند او تسلمېدو ته ئې مجبور کی او بیا ئې هم دی د نشاپور په حکومت وګوماره او د هغې طایفې څو کورنۍ ئې غزني او کابل ته ولېږلې او په ۱۱۶۸هـ کال بېرته کندهار ته وګرزېد.

۸ – په ۱۱۶۸ هـ چې میرمنو معین الملک مړ سو، احمد شاه د هغه زوی میرمنو د لاهور حکمران وټاکه، څنګه چې کوچنی وو، نو د خپلې مور مغلاني بیګم په کومک ئې حکومت کاوه. په دې وخت کې د مغلاني بیګم او امیرانو تر منځ اختلاف پېښ سو او د نواب عبدالصمد خان زوی خواجه عبدالله خان نوموړی مېرمن بندي کړه او له احمدشاهي حضوره ئې د لاهور د حکمرانۍ مقام وغوښت، خو احمد شاه د جهان خان سپه سالار ورور امان خان پوپلزی د لاهور د چارو د سمون له پاره ور واستاوه، مګر هغه څه کار پر مخ نه بوت او په (۱۱۷۰هـ) کال آدینه بیګ د ډهلي د لښکر سره لاهور ونیو او د کاله ئې دېرش لکه روپۍ ډهلي ته ورکولې.

دا وخت په کشمیر کې سکجیون هندو هم د احمدشاه له اطاعته سر وغړاوه او افغاني حکمران خواجه کوچک ئې وواژه او د ډهلي له خوا ئې د کشمیر حکمراني ونیوله. همهغه وو، چې احمدشاه له کندهاره لاهور ته ولاړ او د هغو سیمو تر تصفیې

وروسته ئې نورالدين خان باميزی کشمير ته واستاوه او هغه سکجيون ونيو او کشمير ئې بېرته په افغاني هيواد پوري وتاړه.

احمدشاه له لاهوره ډهلي ته مخه کړه او په کرنال کي ئې د اصالت خان يوسفزي زوی نواب نجيب الدوله مخي ته راغی او د (۱۱۷۰هـ) کال د دريمي خور (جمادي الاولی) پر ۷ د جمعې په ورځ ډهلي ته ننووت، دوهم عالمگير ئې د ډهلي پر تخت کښېناوه او د هغه د ورور شهزاده عزيزالدين لور ئې شهزاده تېمور ته وکړه او د ډهلي د وزارت چاري ئې د قمر الدين خان زوی نظام الدوله ته وسپارلې او نواب نجيب الدوله ئې د هند سپه سالار وټاکه. احمدشاه د ډهلي د شاوخوا تر تصفيې او د هغه ځای د باغيانو تر وهلو وروسته عبدالصمد خان اشنغري مهمندزي د سرهند حاکم او سرفراز خان ئې د دوآبه ستلج او بياه حاکم او شجاع خان ابدالي ئې د ملتان حاکم او شهزاده تيمور ئې تر سند اوتته پوري د لاهور حاکم وټاکه او سپه سالار جهان خان ئې د سکانو مخنيوي ته وگوماره او بلند خان سدوزي ته ئې د کشمير حکومت وسپاره او د (۱۱۷۰هـ = ۱۷۵۶م) کال په پای کي کندهار ته راوگرزېد.

## ۹- د پاني پت غزا:

وروسته تر هغه چي احمدشاه په (۱۱۷۰هـ) کال له هنده راوگرزېد، په پنجاب کي نوي فتنې پيدا سوې او د فيروز جنگ زوی غازي الدين او آدينه بېگ پورته سول او سکانو هم په پنجاب کي قوت پيدا کی او د جنوب له خوا هم د مرهټه لويو قوتو د ډهلي پاچهي تهديدوله او پنجاب ئې هم ونيو، چي شهزاده تيمور او سپه سالار جهان خان د دې ټولو قوتو او فتنو له مخنيوي څخه عاجز سول، په دې وخت کي د هند اسلامي مشاور او د ډهلي اميرانو احمدشاه وباله چي د هند د اسلامي پاچهۍ د ساتلو او نجات له پاره له کندهاره د هند خوا ته رهي سي او امام الهند شاه ولي الله دهلوي هم د احمدشاه حضور ته ليکونه واستول او دی ئې هند ته وباله، ځکه نو احمدشاه له کندهاره په (۱۱۷۱هـ) کال د بلوڅو کلات ته وخوځېد او هلته ئې نصير خان چي سر ئې اخيستی وو، د روغي او خير خواهۍ له لاري تسليمېدو ته مجبور کی، بيا نو د کندهار د دېرشو زرو او د بلوڅو د لسو زرو عسکرو سره د نصير خان او د سراوان و جاله وان د سردار مير عبدالنبي د ورور مير عبدالکريم او نورو په مشري د بولان له درې څخه تېر سو (۱۱۷۲هـ) او د سند د سيند غاړو ته ورسېد او له هغه ځايه د لاهور خوا ته وخوځېد او

سارنپور ته ولاړ. هلته د هند د پښتنو ستر مشران لکه سپه سالار نجيب الدوله او سعدالله خان روهيله او حافظ الملک رحمت خان او د هغه زوی عنايت خان او دوندي خان او قطب خان د لسو زرو تنو لښکرو سره د احمدشاه حضور ته راغلل او دا وخت د احمدشاه ټول لښکر چي په هغه کي د کندهار او پېښور او بلوڅو او د هند د پښتنو غازيان راغونډ سوي ول، شپېتو زرو پليو او سپرو ته رسېده، چي توپخانه هم ورسره وه.

احمدشاهي لښکرو د هندوانو او سکانو سره تر ډېرو جګړو وروسته چي دښمنانو ته ئې ډېري ماتي ورکړې، وروستنۍ فيصله کوونکې جګړه د پاني پت پر ډګر د لسو لکو مرهټانو او هندوانو سره وکړه او په دې جګړه کي ئې د دښمن په زرو، زرو جګړن کسان تر تېغ تېر کړل او د (۱۱۷۴هـ - ۱۷۶۰م) کال د څلرمي خور (جمادي الاخرى) پر شپږمه نېټه ئې لويه سوبه او فتح په برخه سوه، چي د دې ستري غزا جنګي اولجي او غنايم (۵۰) زره آسان، دوه لکه غوايي او پنځه سوه پيلان او څو زره اوښان ول او ۲۲ زره بنديان لاس ته ورغلل، چي بې له يوه ابراهيم نامي نور ټول وبخښل سول.

احمدشاه د پاني پت تر لويي سوبي او د مرهټانو څخه د هند د مسلمانانو تر نجات او ژغورلو وروسته د دوهم عالمګير زوی شاه عالم په ډهلي کي پاچا او د ميرزا جوان بخت زوی ئې ور نائب السلطنه کی او نواب شجاع الدوله ئې د فرزند خان او رستم هند په لقب وزيراعظم او پښتون نواب نجيب الدوله ئې سپه سالار وټاکه او د پنجاب حکومت ئې زين خان مومند ته ورکی او پخپله کندهار ته راغی او شهزاده تيمور ئې د هرات حکمران وټاکه.

## ۱۰ - د سکانو ترټنه:

هغه وخت چي احمدشاه د پاني پت تر فتح وروسته کندهار ته راوګرزېد، په پنجاب کي جيساسنګهـ د بغاوت بيرغ پورته کی، چي د رنجيت نيکه چهرت سنګهـ او لاجت هم په دې بغاوت کي لاس درلود او د پنجاب نايب الحکومه زين خان ئې کلابند کی.

احمدشاه د دې فتنې د مخنيوي له پاره د (۱۱۷۵هـ = ۱۷۶۳م) کال په لومړۍ نيمايي کي لاهور ته ولاړ او په ۴۸ ساعته کي ئې د امرتسر خوا ته ۱۳۵ ميله واټن وواهه او په "روهي" کي د سکانو د دوه زره تنه لښکر سره مخامخ سو او د ۱۱۷۵هـ کال د رجب د ۱۱ نيټې په جګړه کي ئې د شلو زرو سکانو په شاوخوا کي ووژل او مات ئې کړل او د

پټیالې او سرهند حکومت ئې امیر سنګهـ ته ورکی او د ۱۱۷۵هـ کال د برات تر ۷ پورې لاهور ته بریالی راوګرزېد او نورالدین خان بامیزی ئې کشمیر ته واستاوه او هغه یاغي مستوفي سکجیون بندي کی او کشمیر ئې بیا ونیو.

احمدشاه د پنجاب د چارو په سمون تر ۱۱۷۹هـ کال پورې اخته وو او د ملتان او ډېره اسمعیل خان له لارې ګومل او غزني ته راغی، خو په دې سفر کې له سختې ګرمۍ څخه ناروغه سو او په ۱۱۸۱ق کابل ته راغی.

## ۱۱- بخارا ته تګ:

په ۱۱۸۱هـ کال وزیر شاه ولي خان د شپږو زرو سپرو سره له کندهاره بلخ او بدخشان ته واستول سو.

څنګه چې د بخارا حکمران شاه مرادبی د افغانستان په شمالي سیمو کې یاغیان پارول ځکه نو په ۱۱۸۲هـ کال پخپله احمدشاه د هرات له لارې میمنه او اندخود او بلخ او شبرغان تصفیه کړه، په دې وخت کې د بخارا پاچا د آمو د شمال په قرشي کې لښکر راغونډ کړی وو، خو احمدشاه د بخارا د مسلمان لښکر سره جګړه او مقابله د خپل شان سره ونه بلله نو د بخارا د پاچا سره ئې روغه وکړه او د آمو سیند ئې د دواړو هیواد وېش وټاکه.

په دې سفرکې وزیر شاه ولي خان د جوزجان له فیض آباد څخه خرقه شریفه کندهار ته راوړه چې تر اوسه په دې ښارکې ستـه.

## ۱۳- خراسان ته تګ:

څه وخت دمخه د احمدشاه له خوا د نادر شاه ړوند نمسی شاهرخ میرزا د خراسان پاچا ټاکلی سوی او د احمدشاه د شاهنشاهۍ تابع وو.

څنګه چې د ۱۱۸۳هـ په شاوخوا کې د شاهرخ زلمي زوی نصرالله میرزا او د تون او طبس حاکم علي مردان خان سر اخیستی وو او د فارسي د پاچا کریم خان زند دربار ته ئې رجوع هم کړې وه، ځکه نو د ۱۱۸۴هـ کال په سر کې احمدشاه له کندهاره هرات او مشهد ته ولاړ. په دې سفر کې د بلوڅو پاچا نصیر خان چې د احمدشاهي دربار تابع وو، د شلو زرو تنو سره د خراسان په جګړه کې ښې کارنامې وکړې او د ترشیز په کلا کې ئې علي مردان مغلوب کی، چې د دې خدمتو په مقابل کې د احمدشاه له حضوره د ډېره غازیخان د داجل او هرند سیمې او د بلوڅو ولجې هم ده ته وبخښلې سوې.

خو احمدشاه د مشهد ترلنډي کلابندۍ وروسته د نصرالله میرزا عذر ومانه او د شاهرخ لور گوهرشاده ئې شهزاده تیمور ته وکړه او نصرالله میرزا ته ئې د (فرزند خاني) لقب ورکی او د خراسان پاچهي ئې شاهرخ ته وبخښله او د ۱۱۸۴ه کال د صفري پر ۸ د هرات له لاري کندهار ته راغی.

## احمدشاه او سنده:

په (۱۱۶۰ه) کال چي نادرشاه افشار ووژل سو او احمدشاه ابدالي په کندهار کي د افغانستان په پاچهي وټاکل سو، په سنده کي میا نورمحمد کلهوره د نادري تر امر لاندي امیر وو. په (۱۱۶۱ه) کال = (۱۷۴۸م) کال احمدشاه هند ته سفر وکی. ده په سنده کي د میا نورمحمد کلهوره امارت په رسمیت وپېژاند او هغه ته ئې د (شاهنواز خان) لقب ورکی. هغه هم د کندهار دربار ته د کالنیو مالیو د ورکړي تعهد وکی.

څنگه چي تر هغه وروسته میا نورمحمد د خراج په ورکړه کي سستي وکړه، احمد شاه یو فرمان ورواستاوه او په هغه کي ئې د مالیو ورکړه وغوښته، چي (خایف) سندهي د هغه فرمان مضمون د احمد شاه له خولې د (نامۀ نغز) په دې بیت کي داسي ځای کړی دئ:

رساندی تو گر گنج در باج ما<br>
شدی ایمن از تاب تاراج ما

دا فرمان چي د سنده دربار ته ورسېد، میا نورمحمد د اطلس او کمخاب او دیبا او وریښمو د کالیو او قرنفل او مشک او عود او عنبر قیمتداره سوغاتونه د یوې درې کسیزي جرگي په لاس د بهایي خان کلهوره په مشرۍ د کندهار دربار ته واستول او وې ویل:

سلامی رسانش بعجز و نیاز — که ای شا افغان گردن فراز<br>
منم بندۀ تاجدار تو ام — به فرمانبرداری نامدار تو ام<br>
من از لطف تو چشم دارم بهی — بر شاه من میکنم آگهی

دا سفارتي جرگه چي احمدشاهي دربار ته ورسېده، د دواړو دربارو دوستانه مناسبات تر پخوا لا ښه سول او د شیخ محمد مرید قانونگو زوی شېرمحمد محفوظ سرخوش د سنده د دربار له خوا د وکیل په حیث کندهار او کابل ته وټاکل سو، چي تر ۱۱۶۸ه کال پوري په کابل کي وو، خو سره له دې هم له سنده څخه هغه مالیې چي د

ورکړې وعده ئې سوې وه، د کندهار دربار ته راونه رسېدلې، ځکه نو احمدشاه د سردار جهان خان سپه سالار په مشرۍ یو لښکر د هند د سفر له پاره چمتو کی، چې په (۱۱٦٦هـ = ۱۷۵۳م) کال په سندهـ کې د سپه سالار د ورتلو آوازه ګډه سوه، خو د همهغه کال په پای کې څرګنده سوه، چې پخپله پاچا د سندهـ خوا ته رهي سوی دئ.

د (۱۱٦۷هـ کال د محرمي په څلرمه = د ۱۷۵۳م د نومبر پر لومړۍ نېټه) احمدشاه د محمد آباد شګي (ریګستان) ته رسېدلی وو. د سندهـ دربار په ډېر تلوار دېوان ګدومل د سفیر په توګه د ده حضور ته واستاوه، چې د میا نورمحمد د اطاعت او انقیاد خبر ورورې او څو چې ئې وس وي د احمدشاه د پرمختګ مخه ونیسي.

ګدومل د سکهر پل ته نژدې شاهي لښکرګاه ته ورسېد، خو تر دوو ورځو پورې ئې پاچا و نه لیدلای سو، څو چې شاهي موکب نوښاره ته راغی او هلته ګدومل د پاچا حضور ته ورغی او د پاچا په راضي کولو کې ئې ډېر زیار ویوست. وایي چې احمدشاه ډېر غضبناک وو، خو ګدومل هم هوښیار سړی او ژبور او په کار پوه سفیر وو، چې په لطائف الحیل ئې د شاهي غضب په آرامولو کې زیار یوست. دی په دې پوه وو، چې احمدشاه اولیاء الله ته عقیده لري، نو څو جواله ئې له خاورو ډک کړه او د نورو سوغاتو سره ئې وړاندې کړه. احمدشاه پوښتنه وکړه: په دې جوالو کې څه شي دي؟ ګدومل ورته وویل: د سندهـ ډېر ښه سوغات، یعنې د سندهـ د اولیاوو د قبرو پاکې خاورې.

احمدشاه هغه سوغات ته په درنه سترګه وکتل او قهر ئې کښېنوست او د سندهـ د خلکو سره ئې نرمه رویه رااخیستله، خو میا نورمحمد په دې وخت کې سندهـ پرېښوو او لمر خاته خوا جیسلمیر ته ولاړ او هلته د (۱۱٦۷هـ کال د صفر پر ۱۲ = د ۱۷۵۳م د دسمبر پر ۹) د کورهره په سرکهات کې د ستغي (خناق) په ناروغۍ مړ سو.

په تذکرة مخادیم کهرا کې د احمدشاه یو فرمان سته چې د ۱۱٦۷هـ کال د محرمي پر ۲۱ لیکل سوی او له هغه څخه څرګندېږي چې احمدشاه د همهغه کال په سر کې سندهـ ته تللی وو. د زیاتو مؤرخانو قول هم د دې لیکنې سره سمون خوري او لکه چې وویل سوه احمدشاه د همدې کال په منځ کې خراسان ته ولاړ. یعنې له سندهـ څخه تر راګرزېدو وروسته ئې د خراسان خوا ته مخه کړې وه.

د میا نورمحمد تر مړینې وروسته ئې زوی محمد مرادیاب خان د ده پر ځای کښېنوست او د احمدشاه حضور ته ئې یو وکیل واستاوه او د مالیاتو ورکړه ئې ومنله.

احمد شاه هم دی د سنده د حکمران په حیث وپېژاند او د (سربلند خان) لقب ئې ورکی.

ځنګه چي د ښکارپور ښار همېشه د کلهوره د حکمرانانو او د بلوڅو د داود پوتره د قبیلو تر منځ د شخړي او نزاع ځای وو، ځکه نو احمدشاه هغه ښار د سبۍ په ولایت پوري وتاړه او د هغه ځای اداره ئې افغان حاکم ته وسپارله او په دې وسیله د افغانستان تجارت د ښکاپور له لاري تر ماوراء النهر او خراسان پوري جاري سو او دې ښار یو مهم تجارتي مرکزیت وموند. سربېره پر دې احمدشاه په سند کي اسمعیل خان پني د شهنشاهۍ د دربار د نماینده په حیث وټاکه او اسماعیل، محمد آباد ته ورغی او څو تنه عاملان ئې د سیدشاه محمد تر اداري لاندي تتنه او نورو ښارو ته واستول، چي له هغې جملې څخه صالح خان تتنه ته ولاړ او د پخواني حاکم ګل محمد خان خراساني ځای ئې ونیو او د مالیو په ټولولو ئې لاس پوري کی.

په دې وخت کي احمدشاهي سفیر محمد بېګ شاملو هم تتنه ته راغی او ده آقا محمد صالح د تتنه حکمران وټاکه، او د ښار سپین ږیري او مخ روبي ئې شهریاري حضور ته وروستل، ځنګه چي د اسمعیل او شاملو د ګومارل سوو کسانو تر منځ اختلاف پیدا سو، نو ځکه قاضي محفوظ د تتنه حکمران وټاکل سو، په دې وخت کي چي محمدمراد یاب خان د احمدشاه له خوا دسنده امیر وپېژانده سو او د سربلند خان لقب ورکړه سو په دې ټوله موده کي د میا نورمحمد مرحوم سفیر دېوان ګدومل په شاهي دربار کي فعالیت کاوه، څو چي د کلهوره د امارت د کهول مشران ئې دربار ته نژدې کړل او احمدشاه دوی په رسمیت وپېژندل او د محمد مراد یاب خان کوچنی ورور محمد عطر خان ئې په شاهي دربار کي د یرغمل په توګه مېلمه وساته. په دې روغه جوړه کي محمدمراد یاب خان احمدشاهي دربار د سنده تر ټاکلي مالیې څه قدر زیاته مالیه منلې وه.

تر هغه وروسته د سنده مشران او مخ روبي په امرکوټ کي د خپل نوي امیر محمد مراد یاب خان حضور ته ورغلل او هغه د امیري مرکز ته بوت (د ۱۱۶۷ه کال د صف ۱۶) او شیخ ظفرالله د تتنه په حاکمي وګومارل سو.

په دې وخت کي دېوان ګدومل د احمد شاهي فرمان او د فخر وړ سوغاتو سره د احمدشاه له حضوره امر کوټ ته ورسېد او هغه فرمان او سوغاتونه ئې نوي امیر ته وړاندي کړل او نصیر پور ته نژدې په یوه میدان کي د محمد مراد یاب خان د پر تخت

کښېناستو جشن جوړ سو او په همهغه ځای کي د نوی ښار (مراد آباد) بنسټ کښېښوو سو (د ۱۱۷۱هـ محرمه = ۱۷۵۷م ستمبر).

محمد مراد یاب خان درې کاله په کامراني حکومت وکی، خو ځیني مشران ورسره مخالف سول او د (۱۱۷۱هـ د ذیحجې پر ۱۳ = ۱۷۵۷م) ئې دی پخپل ټاټوبي کي کلابند او بندي کی او بله ورځ ئې د ده ورور میا غلام شاه پر تخت کښېناوه. ده د سنده د خلکو او مشرانو په تسلي کي زیار ویوست او د فتح نامي په قول مراد یاب خان عیاش او لا ابالي سړی وو او ژوند ئې په لهو او لعب کي تېراوه او خلک ځیني ناراضه ول، ځکه نو میر بهرام خان د نورو مشرانو سره لاس یو کی او دی ئې د امیرۍ له تخته راواچاوه، خو د مراد یاب خان سکنی ورور یار محمد خان چي په خدا آباد کي وو او د بهادر شاه زوی مقصود فقیر چي له مخ روښو څخه وو، مخالفان پاته سول.

دا وخت د سنده داخلي اوضاع ګډه وډه وه او عطر خان د امیرانو بل ورور چي د کندهار په شاهي دربار کي ئې د یرغمل په توګه ژوند کاوه د خپلو حقوقو په باب کي ئې د دربار د مشرانو په واسطه د احمدشاه حضور ته عرض وکی او له شاهي حضوره هم یو فرمان صادر او عطر خان د سنده د امیر په حیث وپېژانده سو. د دې خبري په اورېدو سره په سنده کي احمدیار خان یو لښکر غونډ کی خو سرائي مشرانو چي د عطر خان په نامه د احمدشاهي فرمان صادرېدل واورېده نو په احتیاط ئې قدم اخیسته او میا غلام شاه چي په دې منځ کي څه چانس نه درلود، د (۱۱۷۱هـ کال د صفر پر ۲۵ = د ۱۷۵۷م د نومبر پر ۸) د خپلو قواوو سره د سند د رېګستان خوا ته رهي سو او په همدې وخت کي مقصود فقیر ته د عطر خان لیکونه ورسېدل، چي د هغو په اثر محمد مراد یاب خان له بنده خلاص سو او د سرائی د یوې ډلي مشرانو سره د نوي ټاکل سوي امیر عطر خان لیدو ته ورغی او میا غلام شاه د راجه لیکهي او خپلو نورو طرفدارو مشرانو سره لیري پاته سو.

عطر خان چي سنده خالي ولید، بې له کم مانعه ور ننوت، احمدیار خان چي دا خبر واورېد د نوښاره خوا ته پر شا سو او د (۱۱۷۱هـ په دوهمه خور = د ۱۷۵۷م په دسمبر) کي محمد مراد یاب خان هم ورسره یو ځای سو.

د سرائي مشرانو او دې دوو وروڼو دا خیال کاوه چي عطر خان به د دوی د مشرتوب حقوق وپېژني او دوی به د سنده په امارت ومني، خو عطر خان تر دوی رند او

جاه پسند وو او د ورونو تر ليدو دمخه ئې پر دوی د بنديگرت او خدا آباد ته د دوی د ښولو حکم وکی، له همدې وخته د عطر خان په نسبت د خلکو او مشرانو بدگماني شروع سوه او احمد شاهي دربار ته د ماليو په ټولولو او ورکړه کي ئې زيار ويوست او خلک ئې په تنگ کړه، خو د دې کار تر عهدې و نه وتلای سو، ځکه نو په لږ موده کي خلکو وغوښتل چي دی د امارت له تخته راواچوي.

په دې وخت کي ميا غلام شاه چي په ادې پور کي فرار وو، بهاولپور ته ورسېد او خپل زوی ميا سرفراز خان ئې هلته پرېښوو. پخپله سندھ ته ولاړ او د (۱۱۷۱ھ) کال د روژې په پای کي په روهري کي د عطر خان سره مخامخ سو.

تر ډېر جنگو وروسته د شوال په اوله ورځ عطر خان او ورور ئې احمديار خان د مقصوده سره ماته وکړه او وتښتېدل او ميا غلام شاه بريالی سو او د سرائي د مشرانو سره سيوستان ته راغی (د ۱۱۷۱ھ د شوال اوله = ۱۷۵۸م).

لږ وروسته محمد مراد ياب خان مړ سو او ميا غلام شاه د خلکو او مشرانو رضا لاس ته راوستله او په کامراني سره ئې امارت کاوه، خو عطر خان او احمديار له سندھ کلات ته ولاړ او د کلات نصير خان ته ئې پناه يووړه او د سندھ د وکيل گدومل په واسطه ئې خپل عرايض د احمد شاه حضور ته وليکل. احمد شاه له کندهاره د دوی د ملاتړ له پاره يو لښکر ور واستاوه احمديار خان په شاهي دربار کي پاته سو او عطر خان د شاهي لښکر د افسر عطائي خان سره بيا پر سندھ يرغل وکی او د فتحنامې د مؤلف په وينا د احمد شاه له حضوره يو فرمان د داود پوتره د قبيلو په نامه وليږل سو، چي د عطر خان سره مرسته وکي، ځکه نو د داؤد پوتره يو لوی لښکر د بهادر خان يک گوش په مشري هم د عطر خان خدمت ته حاضر او ورسره يو ځای سو.

ميا غلام شاه د (۱۱۷۲ھ = ۱۷۵۹م کال تر دوهمي خو (ربيع الثاني) وروسته) د لښکر په ترتيب لاس پوري کی او د دواړو خواوو لښکري په چاکچيکان کي سره مخامخ سوې. سختي جگړې ونښتې او مير بهادر خان تالپور چي د غلام شاه له خوا جنگېده د جگړې په ډگر کي ووژل سو او عطر خان په روغه راضي سو او د روغليک (صلح نامې) له مخي ئې سندھ پر درو برخو ووېشه، يوه برخه ميا غلام شاه ته ورکړه سوه او دوې برخي عطر خان او ورور ته ئې ورکړل سوې.

خو د دې دوو ورونو تر منځ هم شخړه پيدا سوه او ميا غلام شاه د (۱۱۷۲ھ =

۱۷۵۹م کال په روژه کي) پر عطر خان یرغل وکی او هغه ئې له نوښاره څخه وځغلاوه او ټول سندهـ ئې ونیو، څو چي په (۱۱۷۵هـ = ۱۷۶۲م) کال په کندهار کي د سندهـ د سفیر گدومل په زیار له احمدشاهي درباره یو فرمان د امارت د سوغاتو سره غلام شاه ته ورسېد او دی ئې د (شاه وردي خان) په لقب د سندهـ د امیر په حیث وپېژانداو تر هغه وروسته په (۱۱۷۷هـ = ۱۷۶۴) د کچه تر فتوحاتو وروسته له احمدشاهي حضوره د (صمصام الدوله) لقب هم ورکړه سو او دوه احمدشاهي فرمانونه یو د ۱۱۷۷هـ کال د دوهمي خور پر ۲۰ او بل د ۱۱۷۷هـ کال د دریمي خور پر اوله د ده په نامه صادر سو او په (۱۱۸۱هـ = ۱۷۶۷م) کال کي د غازي خان او اسماعیل خان دېرې هم د احمدشاه له خوا میا غلام شاه ته وسپارلي سوې او ده په ۱۱۸۲ هـ کال په پخواني نیرون کوټ کي د حیدر آباد کلا ودانه کړه او هلته واوسېد، څو چي د (۱۱۸۶هـ) کال د دریمي خور پر ۳ (۱۷۷۲م د اگست پر ۲) د گوزڼ (فلج) په ناروغۍ مړ سو.

د عبدالحمید جوکیه په قول غلام شاه یو وار د خپلي حماسې د جوش په وخت کي وویل چي: زما لښکر ټول باید چمتو اوسي چي احمدشاهي ښار (کندهار) نیسم. د همدې وینا په وخت کي د فالج ناروغۍ حمله ورباندي وکړه، له خبرو ولوېد او ژر مړ سو.

د میا غلام شاه تر مړیني وروسته د سندهـ مخ روبو او مشرانو د ده زوی محمد سرفراز پر تخت کښېناوه. دوې میاشتي وروروسته چي احمدشاه ابدالي په کندهار کي له دنیا ولاړ، نو میا سرفراز خان میر بهرام خان تالپور د تعزیت او اطاعت د عرض له پاره د افغانستان نوي پاچا تیمورشاه د احمدشاه زوی ته راواستاوه. د کندهار دربار د سند د حکمرانۍ فرمان د سوغات سره د ده په نامه ورولېږه او د خدایار خان لقب هم ده ته ورکړه سو.

## د احمد شاه مړینه او د ده خویونه:

احمدشاه د خپل ژوند په پای کي د پرله پسې جگړئیزو سفرو د زحمتو په سبب کمزوری سو او دی ئې د کندهار له ښاره د کوږک د توبې غره ته چي لوړ وو او ښه هوا ئې درلوده بوت، څو چي تر څو میاشتو وروسته د (۱۱۸۶هـ) کال د رجب په شلمه د جمعې په شپه همهلته د خوراړه (آکله) په ناروغۍ وفات سو او وزیر شاه ولي خان او یاقوت خان خواجه سرا د ده مړی کندهار ته راوی او په هغه ځای کي ئې ښخ کی، چي ده

دمخه ټاکلی وو او د مړيني پر وخت ۵۱ کلن وو او ۲۶ کاله ئې پاچهي وکړه (۸۱ لمبر عکس).

هغه گنبده چي اوس په کندهار کي د دې نوميالي پاچا پر مزار ولاړه ده، د دوو تاريخي قطعو په استناد چي ميرزا هادي خان د دربار منشي باشي ويلي دي په (۱۱۹۰هـ) کال د تيمورشاه په امر ودانه سوې ده او له دې دوو مصرعو څخه:

بگو "فيض آباد عالی مقام"

او:

"مزار شاه فردوس برين" گو

د دې گنبدي د ودانۍ نېټه څرگندېږي. (۸۲ لمبر عکس)

احمدشاه متشرع، حنفي مذهبه، عالم او په ديني احکامو پابند باسواده سړی وو. د ده د پښتو اشعارو دېوان په ۱۳۱۹هـ ش کال د عبدالحي حبيبي په زيار په کابل کي چاپ سو، چي په هغه کي د ده عشقي، تصوفي، حماسي او اخلاقي کلام په دوه نيم زره بيتو کي راغلی او د شعر مشهور اقسام غزل، رباعي، قطعه، مخمس او مربع لري.

د ده په کلام کي د تصوف ښه ښه ښکاره ده او ځيني اخلاقي او وطني اشعار هم پکښي سته. ده د خپل عصر دوو تنو عارفانو د جلال آباد د حصارک شاه فقير الله ته چي په ښکارپور کي ښخ دئ او د پېښور ميا محمد عمر ته (چي په ۱۱۹۰هـ کي مړ دئ) ارادت درلود او له ده څخه په تصوف او عرفان کي هم ځيني منثور کلمات او ملفوظات پاته دي، چي د پېښور قاضي ملا محمد غوث پر هغو باندي د شرح الشرح په نامه په فارسي ژبه شرح ليکلې وه.

خو په سياست کي احمدشاه تل د اسلامي ورورگلوۍ او نرمۍ او دوستۍ پر خوا وو. په ډهلي او بخارا او خراسان او بلوچستان او سنده کي ئې د خپلو معاصرو اميرانو سره د روغي له لاري مسالمت اميزه رويه درلودله او د شهنشاهۍ عظمت او عسکري اقتدار باوجود ئې هغه ټول اميران چي سرکښي به ئې کوله، څو واره عفو کړه او تاج بخښي ئې وکړې، چي حتّی د هغه وخت سترگور او د نظر خاوندان د ده دې تاج بخښۍ او د نظر وسعت ته هېښ حيران پاته سوي دي او د شاه ولي الله دهلوي په قول د ابدالي دا رويه د دې مادي دنيا په چارو کي حساب نه وه. احمدشاه د جهانگيرۍ سره سره د مسلمان له وينو تويولو څخه ځان ژغوره، د جهاندارۍ په چارو کي ئې له عدالت او



په کندهار کې د احمدشاه بابا مزار ۸۲ –لمبر عکس

انصاف څخه کار اخیست او خلک ئې د خپلو زامنو په شان پالل، نو ځکه پښتانه ده ته (بابا) وايي او دا د هغه لقب دئ، چي بې له میرویس او رحمانه د بل چا په برخه سوی نه دئ.

البته احمد شاه جنگیالی او فاتح وو، خو د ده له ټولو فتوحاتو او عسکري اعمالو څخه ثرگنده ده، چي یو غارتگر، خرابکاره، ستم پیشه او مظلوم وژونکی نه وو او که یو کار د روغي او مسالمت له لاري پر مخ تلای د مسلمانانو سره ئې په جگړه لاس نه پوري کاوه او د ورور په مقابل کي ئې توره نه ایستله. احمد شاه زموږ په ملي تاریخ کي د اوسني افغانستان د مؤسس او د افغانستان د خلکو د عظمت مجدد او د یو متحد هیواد او یو اولس جوړونکي په حیث لوړ مقام لري. او د سیالکوټي علامه اقبال په قول:

او دل و دست گهر ریزی که داشت
سلطنت ها برد و بی پروا گذاشت

او له همدې سببه ځیني لیکونکي ده ته گوته نیسي چي ده ولي د ډهلي پاچهي نالایقو واکوالانو ته پرېښووه؟ خو که د شاه ولي الله دهلوي مکتوبات او د نورو هندي مسلمانانو نومیالیو او امیرانو لیکونه وکتل سي، نو دا ثرگندېږي چي هغه وخت احمد شاه هند ته د چور او چپاو له پاره نه وو تللی، بلکي د ده یوازینی هدف او مطلب دا وو، چي د هغه ځای مسلمانانو ته چي له ده څخه ئې استرحام کړی، نجات ورکړي او بل دا چي ده نه غوښته د خپل ملي قوت مرکز یعني افغانستان پرېږدي او د پښتنو د نورو پاچهانو لکه خلجیان، سوریان، لودیان او نورو کورنیو په شان په هند کي ورک او مستهلک سي او یا دا د جهاد في سبیل الله دیني خالص خدمت په دنیوي ککړتیا ولړي او د ډهلي د پاچهۍ د نیولو او جهانگیری په حرص ئې ککړ کي، چي کټ مټ همدغه رویه ئې ثو واره د افغانستان د نورو گاونډیانو امیرانو سره په بخارا، خراسان، سند او بلوچستان کي وکړه.

د افغانستان طبیعي حدود تل د احمد شاه په نظر کي ول او که ئې د لمر خاته خوا د پنجاب او کشمیر مځکي تر خپلي اداري لاندي ساتلې دا کار ئې د خپل هیواد د ساتني له پاره وو. دی پوهېده چي د ده د پاچهۍ د واک او قدرت چینه پخپله د افغانستان خاوره او د افغانستان خلک دي، ځکه ئې نو که د پاني پت د فتح او د ډهلي

د نیولو سره د خپلي پاچهۍ او قدرت مرکز پرې ایښی وای او خپلي انساني او فکري او اداري قواوي ئې د هند په ارت هیواد کي مستهلکي کړي وای، ممکنه وه، چي د ده هیواد افغانستان د پاچهۍ د مرکزیت له نعمته بې برخي محروم پاته سوی وای او د ده کهول هم د هغو نورو هندي سوو افغاني کهولو په سرنوشت اخته سوی وای چي بېخي له منځه تللي دي.

احمد شاه د ده د اشعارو د دېوان په شهادت د خپل وطن او خپلو خلکو سره تود ه مینه او زیاته علاقه درلودله او په عین حال کي صوفي مشربه دینداره سړی وو، نه ئې غوښتل چي د هند پاته مسلمانان امیران او خپل گاونډي مسلمانان امیران د خپلي جهانگیرۍ او د خپل دولت او جاه د حرص له پاره له منځه یوسي او د خپل ملي مرکزیت په محو کولو خپلي مراندي پخپله پرې کي، ځکه نو د ده سیاست تل دا وو، چي خپل گاونډي امیران ئې د شهنشاهۍ تر بېرغ لاندي د دوستۍ او پلارگلوۍ په توگه ساتل او خپل ځان ئې د کم هیواد غاصب او قهار او سرابښ جهانگیر نه ښووه.

**تر احمدشاه وروسته:**

د احمد شاه بابا تر مړیني وروسته د ده له اتو زامنو څخه د ده کشری زوی شهزاده سلیمان د وزیراعظم شاه ولیخان په زیار په کندهار کي پاچا سو. د ده مشر زوی تېمور چي د پلار په ژوند د لاهور او ملتان حکمران وو او هلته ئې سکه هم وهله او په دې وخت کي ئې په هرات کي حکمراني کوله، دستي د کندهار خوا ته رهي سو. (۸۳ لمبر عکس) سلیمان ئې له تخته واچاوه او شاه ولي خان ئې وواژه او لږ موده وروسته ئې پایتخت له کندهار کابل ته رانقل کی، قاضي فیض الله دولت شاهي ئې وزیر او د حاجي جمال خان محمدزي زوی سردار پاینده خان ئې د سرفراز خان په لقب د کندهار د درانیو قبېلو مشر وټاکه او د خپلي پاچهۍ دوره ئې په کامراني او د ورته پورته سوو کسانو په مدافعه کي تېروله او څنگه چي د خراسان خلک درې واره نادري شهزاده شاه رخ میرزا ته پورته سول، تېمورشاه هم درې واره د هغه ملاتړ او کومک وکی او دریمه پلا احمد خان نورزي پورته سوي کسان خورا سخت پر سر وټکول او هم په (۱۱۸۸هـ = ۱۷۷۴م) کال عبدالخالق خان سدوزی تېمورشاه ته یاغي سو، خو تېمور هغه مات او ړوند کی او بیا په (۱۱۹۳هـ = ۱۷۷۹م) کال د پېښور او خیبر مشران لکه فیض الله خان خلیل او ارسلا خان مومند د پېښور په بالاحصار کي تېمورشاه کلابند کی، خو تېمور پر دوی بریالی

سو او ټول ئې ووژل. څنګه چې د سیکانو لښکر پر ملتان حمله کړې وه نو ځکه تېمورشاه په (۱۱۹۶هـ = ۱۷۸۱م) کال هغه ښار بیرته ونیو. په سندهـ کي هم میر فتح علي خان تالپور یاغي سو، خو د تېمورشاه لښکر نظامي مشر مدد خان د تالپور قبیلې پر سر ټکولې او بېرته ئې همهغه میر فتح علي خان د هغه ځای حکمران کی (د ۱۲۰۱هـ = ۱۷۸۶م په شاوخوا کي). دوه کاله وروسته په کشمیر کي آزاد خان سر واخیست، خو تېمور هغه بېرته آرام کی (۱۲۰۳هـ = ۱۷۸۸م). څنګه چې د بخارا پاچهان د سدوزو د دولت مطیع او دوستان ول، ځکه نو احمدشاه هم تل د دوی د دوستي مراعات کاوه، خو د تېمورشاه په وخت کي شاه مراد معصوم منغیتي مرو ونیوله، ځکه نو تېمورشاه د یو لک تنه لښکر سره د کندوز او آقچې له لاري ورغی او په نتیجه کي ئې د شاه مراد سره روغه وکړه او د آمو سیند ئې وپش وټاکه (۱۲۰۴هـ = ۱۸۹۳م) او هیواد ئې خپلو زامنو ته داسي ووېشه، چي کندهار ئې همایون ته او هرات ئې محمود ته او پېښور ئې عباس ته او کابل ئې زمان ته او غزنه ئې شجاع ته او کشمیر ئې کوندل ته وسپاره او پخپله دی تر دوویشتو کالو پاچهی وروسته په داسي حال کي چي پلرنی هیواد ئې له کشمیر او پنجاب او سنده تر آمو او د خراسان تر مشهده ساتلی وو د (۱۲۰۷هـ = ۱۸۹۳م) کال د شوال پر اوومه په کابل کي مړ سو او ځلیرویشت زامن ئې پاته سول، چي د هغو له جملې څخه زمانشاه چي مور ئې یوسفزۍ وه او د سردار پاینده محمد خان محمدزي په کومک د کابل پر تخت کښېنوست او خپل وروڼه ئې د کابل په بالاحصار کي بندیان کړل، خو همایون ورور ئې له کندهاره د ده مقابلې ته راووت او د غلجیو په کلات کي ئې ماته وکړه او بلوچستان ته وتښتېد.

زمان شاه دننه په هیواد کي په سختو خانه جنګیو اخته سو. د افغانستان خارجي رقیبانو د وروڼو له دې نفاقه څخه ګټه واخیسته، د شمال له خوا د بخارا منغیتي پاچهانو او د جنوب له پلوه د سندهـ میرانو او د لمر لوېدو له خوا آقا محمد قاجار او د لمر ختو له پلوه سکانو د هیواد سرحدونه تهدید کړل، ځکه نو زمانشاه په (۱۲۰۸هـ = ۱۷۹۳م) کال د سکانو د خطر د مخنیوي په غرض د پنجاب خوا ته متوجه سو، خو چي پېښور ته ورسېد، همایون ورور ئې د سندهـ د میرانو په مرسته د بولان له خوا راغی او کندهار ئې ونیو، ځکه نو شاه زمان و نه کولای سو، چي د پنجاب سیمه تصفیه کي دستي ئې پر کندهار یرغل وکی او همایون ئې ونیو، ړوند ئې کی او له هغه ځایه د

سندهـ د تالپور د میرانو د سرکوټلو له پاره د بولان تر درې تېر سو او د فتح علي تالپور سره ئې د درې لکو طلاوو په اخیستلو روغه وکړه او بېرته د خپل بل وروړ محمود مقابل ته چي له هراته ئې لښکر را ایستی وو ورغی او هغه ئې په فراه کي مات کی او د محمود د مور په شفاعت ئې هغه بېرته د هرات حکمران وټاکه او تر هغه وروسته ئې بلخ هم د بخارا له اوزبکو پاچهانو څخه ونیو او په (۱۲۱۰هـ = ۱۷۹۵م) کال د خپل لښکر سره تر اټک پوریووت او په حسن ابدال کي ئې د سکانو لښکر سره ومروړل او د دېرش زره تنه لښکر سره ئې لاهور بیا ونیو. څنګه چي محمود وروړ ئې په هرات کي بیا سر اخیستی او یاغي سوی وو، بېرته کابل او کندهار ته وګرځېد او محمود له هراته ایران ته وتښتېد او زمانشاه هرات خپل زوی شهزاده قیصر ته وسپاره (۱۲۱۲هـ = ۱۷۹۷م). زمانشاه یو لوړ همته او ادعا طلبه سړی وو او په کابل کي ئې د یوه لوی لښکر په تهیه لاس پوري کی چي پر هند یرغل وکي او د احمدشاه شهنشاهي بیا نوې کي او هم د انګرېزانو د متجاوزو قواوو په مقابل کي د هند د مسلمانانو سره مرسته وکي په دې وخت کي ناپلیون هم مصر ته رسېدلی وو او د زمانشاه دربار ته ئې یو پیغام راواستاوه چي په هند کي د انګرېزانو د متجاوزو او بریالیو قواوو مخه ونیسي او د فرانسې امپراطور ته د دوستۍ او همکارۍ له لاري ور وړاندي سي، ځکه نو زمانشاه هم په هند کي د انګرېزانو د استعماري قواوو د مخنیوي له پاره ملا وتړله او د هند د نیولو په غرض د خورا درانه قوت سره پېښور ته رهي سو (د ۱۷۹۸م د اکتوبر ۲۵ = ۱۲۱۳هـ) ده په لاهور کي د رنجیت سنګهـ سره سیاسي خبري اتري وکړې او هغه ئې خپل اطاعت منلو ته واداره کی او پر ډهلي باندي د یرغل له پاره ئې خپل لښکر سمبالاوه.

د انګرېزانو سیاست پوهانو چي په هند کي تر اوسه خپل مخ ته داسي دروند خنډ نه وو لیدلی او له بلي خوا ئې د زمانشاه په مقابل کي لښکري قوت هم نه سو راایستلای، نو په سیاسي فعالیت ئې لاس پوري کی او لارډ ولزلي د هند ګورنر جنرال د برتانیا د دولت یو سفیر کپتان جان مالکم د ایران دربار ته واستاوه او د (۱۸۰۱م کال د جنورۍ د لسمي نېټې) تړون ئې د ایران سره لاسلیک کی، چي د هند په اثر د ایران پاچا تعهد وکی چي که افغان پاچا پر برتانوي هند حمله وکي، د قاجار لښکر به پر افغانستان تجاوز وکي او که افغان پاچا یا فرانسه پر ایران یرغل وکي او د ایران په بحري سواحلو کي مداخله وکي د انګرېز دولت به خپل فوجونه د ایران مرستي ته

واستوي. پر دې تدافعي او حربي تړون سربېره د برتانيا سفير جان مالکم لا پخوا د آقا محمد قاجار پر ځای ناست فتح عليشاه پر خراسان او هرات باندي لښکرکښئ ته پارولی وو، څو چي په دې وسيله زمانشاه د جبهې شاته د خطر سره مخامخ کي او هغه پر هند باندي له يرغل څخه منصرف کي (۱۲۱۴هـ = ۱۷۹۹م) ځکه چي د زمانشاه دې لښکرکښيو په هند کي لوی انقلاب اچولی وو او نژدې وو، چي د احمد شاه د فتوحاتو تاريخ بيا تکرار سوی وای.

د ولزلي دا سياسي فعاليت چي د ايران په دربار کي ئې د ملکم په واسطه کړی وو، بريالی سو او څنګه چي د قاجار لښکر د انګرېز په تحريک او پارونه پر خراسان يرغل وکی شاه زمان مجبور سو، چي د پېښور او کندهار له لاري خپل ځان هرات ته ورسوي، فتح عليشاه چي په خپل مقصد چي د هند د نيولو څخه د شاه زمان را ګرځېدل وه، بريالی سو، نو خپل لښکر ئې له خراسانه بيرته وغوښت.

خو د زمان شاه له مغزو د هند د نيولو فکر و نه ووت، او بيا ئې له افغاني قواوو څخه يو لوی لښکر جوړ کی او په پېښور کي ئې په قوي تجهيزاتو لاس پوري کی، انګرېزي استعمار غوښتونکو چي دی په هند کي د ځان خورا غښتلی او قوي رقيب باله نو د ده له پاره ئې اساسي چاره وسنجوله او وې غوښتل چي د ده د ورونو له رقابت او د افغاني داخلي نفاق (يعني زموږ د ملي تباه کوونکي ناروغۍ) څخه کار واخلي، او خپل دا خطرناک رقيب بېخي له منځه يوسي. دا وار د انګرېزي سياست پوهانو نظر په ايران کي د زمان شاه پر فراري ورور شهزاده محمود باندي ولوېد، چي هغه وخت ئې د سردار فتح خان بارکزي سره په ايران کي د فرار شپې ورځي تېرولې او څنګه چي سردار پاينده خان د فتح خان پلار د شاه زمان په امر وژلی سوی وو ځکه نو فتح خان هم د شاه زمان له مخالفو څخه ګڼل کېده.

بايد وويل سي چي فتح خان په هغه وخت کي يو غښتلی، هوښيار او متنفذ شخصيت وو، چي په درانيو قبيلو کي له فراه تر کندهاره يوازنی مرد ميدان او د ملي قوت خاوند ګڼل کېده. ده ډېر فعاله او غښتلي ورونه درلودل، او د ده کهول تر شاهي کهول وروسته د افغاني قوت يوازينۍ چينه وه.

د قاجار په دربار کي د انګرېز کاردارانو شاه محمود د شاه زمان د رقيب په حيث وپېژاند، چي په ترټلي او پرېشانه حالت له هيواده وتلی او د ايران خاوري ته ئې پناه وړې

وه، ځکه ئې نو دا وار محمود د قاجار د پاچا په وسیله وپاراوه او د سردار فتح خان په ملګري د سیستان او فراه له لاري د افغانستان خاوري ته راننه ووت، دوی د درانو او بارکزو قبیلو په مرسته چي د ایران له وېشه تر کندهاره پرتې وې سیستان او فراه او کندهار ونیول، او بیا چي ئې یو لوی او قوي لښکر مجهزه او تیار کی نو د سردار فتح خان په مشري ئې د کابل خوا ته مخه وکړه، شاه زمان چي په پېښور کي د هند د نیولو په نیت لښکر جوړ او د دې خبر په اورېدو کابل ته راغی او د خپل ورور او سردار فتح خان د مخنیوي په غرض تر غزني تېر سو، د دواړو ورونو لښکر د غزني او مقر تر منځ په تازي کي سره وجنګېدل او په نتیجه کي زمان شاه مات سو او د خپل ورور په لاس کښېوتی او دستي ئې ړوند کی او انګرېزانو په دې لویه پېښه خپل خطر ناکه رقیب له منځه یووی او هم ئې په افغانستان کي د کور په کور جنګېدو اور بل کی، چي تر هغه وروسته هیچا د هند د نیولو فکر و نه کی، دا وه د کور په کور جنګېدو او داخلي نفاق بده نتیجه چي تل ئې د افغان کور وران کړی دئ.

محمود دستي د کابل پر تخت کښېنوست (۱۲۱۵هـ =۱۸۰۰م) او سردار فتح خان محمدزی ئې د ځان وزیر کی او دا وخت وو، چي افغانستان د وزیر فتح خان د ورونو په لاس ورغی او محمود تش په نامه پاچا وو.

شجاع الملک د زمان شاه سکني ورور چي له لیري دا ویرجني پېښي لیدلې، په پېښور کي ئې لښکر جوړ کی او د محمود مقابلې ته را ووت، د شاه محمود لښکر چي درې زره تنه له کابله راغلي ول، په اشپان نومي ځای کي ئې د شجاع الملک د لښکر سره جنګ وکی او شجاع الملک د خیبر غرو ته پر شا کی (۱۲۱۶هـ = ۱۸۰۲م)، خو داخلي جنګو شاه محمود هم پر آرامه پرې نه ښووه او په (۱۲۱۷هـ = ۱۸۰۲م) کال کي د غلجیانو سره او هم په پېښور کي د شجاع او اپریدو سره او د هیواد په شمالي سیمو کي د اوزبکو د حکمرانانو سره چي له جیحونه ئې تېری کړی وو، لوی جنګونه پېښ سول او د اېران قاجاري دولت هم د نادري کهول پایڅوړ چي په خراسان او مشهد کي ئې د افغاني پاچهانو تر سلطې لاندي حکومت کاوه، له بیخه ویوست او مشهد ئې ونیو او له بلي خوا د بلوڅو امیرانو ته هم د خپلواکۍ فکر پیدا سو، د دې ټولو فتنو باوجود شاه محمود چي عیاش او تن پروره سړی وو، په خپله ئې کار نه کاوه او د هیواد چاري ئې ټولي وزیر فتح خان او د هغه ورونو ته سپارلي وې، څو چي خلکو بلوا وکړه او د شاه

ولي خان باميزي زوی مختارالدوله شېرمحمد خان چي د ده پېشکار وو شجاع الملک ته د کابل د پاچهۍ دپاره بلنه ورکړه، شجاع هم په (۱۲۱۸هـ = ۱۸۰۳م) کال له پېښوره کابل ته راغی او د پاچهۍ پر تخت کېښنوست او شاه محمود ئې خلع کی او وې باخښه، څنګه چي د محمود زوی شهزاده کامران او وزیر فتح خان په کندهار کي ول، ځکه نو شاه شجاع د شاه زمان زوی شهزاده قیصر د هغو د مخنیوي له پاره واستاوه، او هغه کندهار بې جنګه ونیو او کامران ئې فراه ته پر شا وشاړه او وزیر فتح خان خپل ځان شاه شجاع ته تسلیم کی او د ګرشک جنوبي خوا ته د بارکزو د ناوې د ادې په کلا کي ظاهراً منزوي سو، خو په باطن کي ئې د سیاست په چارو کي له مداخلې څخه توجه نه وه اوښتې او په (۱۲۱۹هـ = ۱۸۰۴م) کال چي شاه شجاع په پېښور کي د ړش زره تنه لښکر غونډ کړ او د کشمېر او پنجاب او سند د تصفیې له پاره رهي کېده، په کندهار کي شهزاده قیصر د خپل اکا پر خلا ف شورش جوړ کی، خو شاه شجاع د خپل وراره غوږونه تاو کړل او بیرته ئې د کندهار حکمران کی او په خپله ئې روغه ورسره وکړه، خو داخلي اوضاع ناارامه او ښورېدلې وه، او د پاچا ناپوهو ورېرو کامران او قیصر تل په مخالفت ګوتي وهلې، څنګه چي شاه شجاع د کشمیر او پېښور په جګړو کي اخته وو او د داخلي مخالفانو د مقابلې له پاره ئې فرصت نه درلود، نو ځکه د افغانستان اوضاع بحراني، تیت پرکه او پرېشانه وه په دې وخت کي د انګرېز متجاوزو قواوو هندوستان تر لودهیانې پوري ونیو او څنګه چي د ایران په دربار کي د فرانسې، د ورځ په ورځ زیاتېدونکي اغیزې څخه بېرېدل او غوښته ئې چي د هند په فتوحاتو کي خپل اروپایي رقیبان بیخي له منځه یوسي او د هند پر لویه مځکه یوازي خپټه واچوي، ځکه نو د برتانوي هند د حکومت له خوا یو ایلچي (الفنستون) د مسټرلسترچي سره د (۱۸۰۹م کال د مارچ پر ۵) په پېښور کي شاه شجاع ته راغله، دی ئې پر افغانستان باندي د ایران له احتمالي حملې څخه وبېراوه، او په نتیجه کي د شاه شجاع او برتانوي هند تر منځ د دوستۍ لومړی تړون وتاړه سو، چي هغه بیا د (۱۸۰۹م کال د جون په ۱۷، ۱۲۲۴هـ) د هند ګورنر جنرال لاردمنتو تصدیق کی، دې تړون دفاعي بڼه درلوده، ځکه چي په لومړۍ او دوهمه ماده کي ئې ویل سوي چي که فرانسه او ایران د افغان پاچا پر متصرفاتو تېری وکي، د برتانوي هند دولت د کابل د پاچا سره کومک کوي او نه پرېږدي چي پر افغانستان تېری وسي او دریمه ماده ئې د دواړو خواوو دوستانه روابطو او یووالي او دوستۍ ته اشاره

کوي چې افغان پاچا به خپل هیواد ته هیڅ یو فرانسوی نه پرېږدي او دواړي خواوي به یو د بل په هیواد کي مداخله نه کوي، تل به د دوستۍ د مراتبو مراعات کوي.

دا ترون د شاه شجاع په درد و نه خوړ، بلکي دی ئې د خلکو په نزد منفور کی او شاه محمود بیا د وزیر فتح خان په مرسته دی دوه کاله په هیواد کي دننه په جګړو او فتنو اخته وساته، ځو چې په پای کي ئې ماته وکړه او په هندوستان کي ئې برتانوي دولت ته پناه یوړه (۱۲۲۶ه = ۱۸۱۱م). خو دوهمه پلا بیا د انګرېزانو په ملاتړ پر تخت کښېنوست یعني دی په هند کي د برتانوي هند دولت د دې له پاره وساته چې په راتلونکي وخت کي په افغانستان کي د دوی د کار وسیله وي.

خو شاه محمود چې دوهمه پلا پر تخت کښېنوست د هیواد د چارو واګي اصلاً د وزیر فتح خان په لاس کي وې، چې دې زړور وزیر بلوچستان او سند او کشمیر د ځان تابع کړه او د شاه محمود په نامه ئې پر هیواد حکم کاوه او افغانستان ئې خپلو وروڼو ته سپارلی وو، څنګه چې په دې وخت کي رنجیت سنګ د اټک کلا ونیوله نو فتح خان په ضلع هزاره کي تر یوې سختي جګړې وروسته هغه مات کی او کشمیر ئې هم خپل ورور سردار محمد عظیم خان ته ورکی (۱۲۳۰ه = ۱۸۱۴م). دا وخت هرات د محمود د ورور حاجي فېروزالدین په لاس کي وو، په (۱۲۳۲ه =۱۸۱۶م) کال فتح علي شاه قاجار د هرات د نیولو اراده وکړه ځکه نو فتح خان د کابل له لښکر سره هرات ته ولاړ، لومړی ئې حاجي فېروزالدین ونیو کابل ته ئې واستاوه او بیا ئې د هرات لمر لوېدو ته د کهسان په جګړه کي د قاجاریانو د لښکر لس زره تنه ووژل او له هراته ئې وشړل او په خپله د هرات د چارو په سمون او تنظیم بوخت سو، خو په دې وخت کي یوه بد مرغه پېښه وسوه او هغه دا چې سردار دوست محمد خان د وزیر ورور په هرات کي د حاجي فیروزالدین کور ته ورننه ووت، د ښځو ګېڼې او پسول او جواهر او دانه نښانه قیمتي ملابند چې د (تاریخ احمدشاه دراني د مؤلف) شېرازي په قول پنځوس زره تومنه قیمت ئې درلود د نورو نفایسو سره واخیستل او کشمیر ته ولاړ او دې پېښي پر شاه محمود او کامران ډېره ناوړه اغېزه وکړه او د دوی او وزیر فتح خان د کهاله تر منځ بدوردي او کینه پیدا سوه او همدا د کرکي او بدبینۍ احساس وو، چې په فجیع توګه د وزیر فتح خان د وژلو د سدوزو و بارکزو د کهاله تر منځ د دښمنۍ سبب سو.

شاه محمود خپل ناپوه او کینه ناک زوی کامران هرات ته واستاوه او کامران د

وزیر فتح خان د ورور د اعمالو د کسات اخیستلو په غرض وزیر فتح خان ونیو او د هغه پوه وزیر په سترګو ئې سیخ ومانډه، ړوند ئې کی (۱۲۳۳هـ = ۱۸۱۷م). د شهزاده کامران دا کار په ظاهره د فتنې د ارامولو سبب وګاڼه سو، خو ړانده وزیر ډېر غښتلي او فعاله وروڼه درلوده، هغو چې د خپل مشر ورور ړندول واورېده په ټول هیواد کي له کشمیره تر هراته فتنې وخوټېدلې او د قهر او غضب د اور لمبې پورته سوې، سردار دوست محمد خان له کشمیره راوګرځېد کابل ئې ونیو او شاه محمود ئې غزني ته وشاړه.

له ها خوا کامران د ۱۲ زرو لښکریانو سره په غزني کي د پلار کومک ته راورسېد او له بلي خوا سردار محمدعظیم خان له کشمیره د سردار دوست محمد خان مرستي ته راغی او د کابل او غزني په منځ کي سره وجنګېدل، خو محمود او کامران ماته وکړه، او په همدې وخت کي ئې ړوند وزیر فتح خان هم دوردګو په سیدآباد کي د کسات له مخي په ډېر بد عذاب وواژه او بند پر بند ئې پرې کئ (۱۲۳۴هـ = ۱۸۱۸م) او دوی په خپله هرات ته ولاړل او هلته د حکومت پر سر د محمود او حاجي فیروزالدین تر منځ شخړه پیدا سوه او کامران پر دواړو بریالی سو او دوی ئې ووژل (۱۲۴۵هـ = ۱۸۲۹م) او په خپله کامران تر (۱۲۵۸هـ = ۱۸۴۲م) کال پوري پر هرات حکومت وکی.

دا وخت چي پر ټول هیواد د نفاق اور بل وو، د ایران قاجاري دولت بیا په (۱۸۳۲م) کال دېرش زره تنه لښکر د تزاري روسیې په پارونه او تحریک د عباس میرزا په قوماندانۍ د هرات د نیولو له پاره را واستول، خو څنګه چي انګرېزانو قاجاریان له هغي لښکرکښۍ څخه منع کړل او هم په خپله هراتیان خپل هیواد افغانستان ته وفاداره ول او قاجاري لښکر یان ئې پرې نه ښوول، ځکه نو هرات د پخوا په شان د افغاني سلطنت په مرکز پوري مربوط پاته سو.

## سدوزي پاچهان:

۱- *احمد شاه بابا ابدالي د زمان خان زوی (۱۱۶۰هـ = ۱۱۸۶هـ)

۲- سلیمان د احمد شاه زوی (۱۱۸۶هـ)

۳- *تېمور شاه د احمد شاه زوی (۱۱۸۶هـ = ۱۲۰۷هـ)

۴- *زمان شاه د تیمور شاه زوی (۱۲۰۷هـ = ۱۲۱۵هـ)

۵- *شاه محمود د تیمور شاه زوی (۱۲۱۵هـ = ۱۲۴۵هـ)

۶- *شاه شجاع د تیمور شاه زوی (۱۲۱۸هـ = ۱۲۵۸هـ)
۷- فیروزالدین د تیمور شاه زوی (په هرات کي د. ۱۲۳۰هـشا وخوا)
۸- *کامران د شاه محمود زوی (په هرات کي ۱۲۳۴هـ = ۱۲۴۵هـ)

**مأخذونه:**

حیات افغانی - سراج التواریخ - تحفه الحبیب - تاریخ سلطانی - خورشید جهان - سیرالمتاخرین، د سرجان ملکم تاریخ - تاج التواریخ - احمد شاه بابا - لوی احمد شاه بابا - مجمل التواریخ بعد نادریه - د فروغي تاریخ ایران - د عباس اقبال تاریخ عمومي - جهانکشاي نادری - دایرة المعارف اسلامي - صولت افغاني - تاریخ احمدي (قلمي) رهنمای افغانستان - مجمع التواریخ - ریاض المحبة - خصایل السعادة - خلاصة الانساب (قلمي) رهنمای افغانستان - مجمع التواریخ - ریاض المحبة - خصایل السعادة - خلاصة الانساب (قلمي) - نادر نامه (قلمي) - مکتوبات سیاسي شاولي الله - مکتوبات شاه فقیر الله - د رنجیت ظفر نامه - حیات حافظ رحمت خان - تاریخ نظامي اېران - تاریخ پښتون - شوکت افغاني - تاریخ پشاور - جریدهٔ شمس النهار کابل - جریدهٔ سراج الاخبار - تاریخ افغانستان د ملیسون - احمد شاه درانی د گنداسنگ په انگرېزي - تاریخ احمدشاه درانی د سید حسین شیرازي - عماد السعاده د سید غلام علي خان - راجگان پنجاب د گریفن په انگرېزي - تاریخ بلوچستان - خزانۀ عامره - تاریخ سندهـ د مولانا مهر - تاریخ سند په انگرېزي - گزیتیر سندهـ - تاریخ کلهوره په انگرېزي[۲] - تحفة الکرام.

---

[۲] وروستنۍ وقایع او تاریخي حوادث به په دوهم ټوک کي ولیکل سي.

اوومه برخه:

# محمدزیان*

له (۱۲۱۶هـ) تر (۱۳۳۸هـ)

محمدزي د کندهار د بارکزیو درانیو یوه ښېنه ده. د دوی پخوانی نیکه (محمد) د کندهار د ابدالیو د قبیلو د حکمران ملک سدو هم مهالی وو، چې د (۱۰۰۰هـ - ۱۵۹۱م) په شاوخوا کې ئې د کندهار د جنوب ختیځ خوا ته په ارغسان کې له خپلي کوچنۍ قبیلې سره ژوند کاوه.

محمد د عمر زوی د دارو او بارک په تېر پوري چې د سړبن ابدالي پښتنو یوه ځانګه ده اړه لري. د محمد نیکه مزار اوس هم د کندهار په ارغسان کې دئ. د محمد اولادې د بارکزیو قبیلو په منځ کې د ریاست مقام لاره، مرکزئې د بارکزیو ناوه ګرشک وو چې د هلمند پر غاړه پروت دئ. تر اوسه هلته د ادې کلا سته دا د دغه کهاله پخوانی ځای دئ.

لکه مخکې چې مو ولوستل د شېرسرخ په جرګه کې چې د پادشاه د ټاکلو له پاره جوړه سوې وه د دغي قبیلې مشر حاجي جمال خان د حاجي یوسف زوی د یارو لمسي د محمد کړوسي هم ګډون کړی وو، هغه وروسته د احمدشاه په دربار کې مشاور ګڼل کېده چې په (۱۱۸۴هـ) مړ او د کندهار په جنوبي سیمه (ذاکر کلي) کې ښخ سو. تر ده وروسته ئې زوی سردار پاینده خان د کندهار په جنوب کې له ارغسانه د هلمند د بارکزیو تر ناوې پوري د بارکزیو قبیلو د مشر په توګه وپېژندل سو. تېمورشاه ده ته مهم منصبونه ورکړل. ده د کشمیر د آزادخان او د عبدالخالق سدوزي د پاڅون په ټکولو او د مومندو لالپورې ته د تېمور د زوی شهزاده عباس په شړلو کې تېمورشاه ته غوره

* د ارواښاد استاد عبدالرؤف بېنوا په ترجمه کړې نسخه کې د محمدزایانو برخه نه ده راغلې، حاضر متن مو د ښاغلي عبدالودود کرزي له ترجمې څخه د کتاب د تکمیل په موخه ور اضافه کړ (م. روهیال).

خدمتونه وکړل چې له همدغه امله د سرفراز خان په لقب وویاړل سو.

خو د تېمورشاه تر مړیني وروسته زمانشاه د ده پر ځای رحمت الله خان سدوزي ته د وفادارخان په لقب وزارت ورکړ او سردار پاینده خان د هلمند غاړي ادي کلا ته وشړل سو. خو دا چې نوموړی ځای د خلکو د ورتګ ځای وو، نو زمان شاه دی له ځینو همکارانو سره په کندهار کي وواژه (د روژې ۱۳ مه ۱۲۱۴هـ - ۱۷۹۹م). سردار پاینده خان شل تکړه او مېړني زامن لرل چې د پلار تر وژل کېدو وروسته په افغانستان کي خواره سول، د سردار پاینده خان مشر زوی سردار فتح خان له کندهاره د زمانشاه ورور شاه محمود ته چې په ایران کي اوسېده پناه ورووړه، هماغسي چې د سدوزیو په اړه مو وویل: دا مهال زمانشاه پر هند د یرغل له پاره سل زره لښکر جوړ کړی وو، انګرېز سیاسي استازو د دغه لښکر د ناکامېدو له پاره هري خوا ته لاس او پښې وهلې، ډېر ډارېدل چې ناپلیون د زمانشاه له دربار سره له سیاسي خبرو او اړیکو څخه ګټه وا نه خلي، ځکه ئې د ایران د قاجاریه حکومت په مرسته شاه محمود ولمساوه او افغانستان ته ئې د زمانشاه پر خلاف راواستاوه. سردار فتح خان هم د سیستان او فراه له لاري هیواد ته راستون سو. د محمود د ځواکونو په مشرۍ ئې پر کندهار یرغل وکړ، د (تازي) په جګړه کي ئې شاه زمان مات او د محمود په حکم ئې هغه ړوند کړ. دوی کابل هم ونیو او د شاه زمان وزیر رحمت الله خان سدوزی ئې وواژه.

همدا چې شاه محمود د کابل پر تخت کښېناست، سردار فتح خان ئې د (شاه دوست) په لقب خپل وزیر وټاکه، ټول هیواد ئې هغه او د هغه ورونو ته وروسپارل (۱۲۱۶هـ - ۱۸۰۱م). د سردار پاینده خان محمدزي زامن له همدغه مهاله د افغانستان حکمرانان سول، فتح خان چې هراړخیز واک ئې لاره خپل ټول ورونه ئې د افغانستان پر ولایتونو حکمرانان کړل. یوازي یو ورور سردار دوست محمد خان ئې له ځانه سره په مرکز کي وساته، محمد عظیم خان او بیا وروسته عبدالجبار خان ته ئې کشمیر ورکړ. پېښور ئې تر اټکه یارمحمد خان او سلطان محمد خان ته وسپاره. سند او ښکارپور ئې رحمدل خان، غزني ئې شېردل خان، بامیان ئې کهندل خان، کندهار او د هغه خواوشا له کلاته تر بولان درې او فراه پوري مهردل خان او پردل خان ته او دېره جات تر پنجاب او د پېښور تر غرنیو سیمو پوري نواب عبدالصمد خان او د هغه زوی نواب زمان خان ته ورکړه سول. په دغه کشمکش کي هیواد د جګړو او وینو بهولو ډګر سو خو په هرات کي وزیر فتح

خان د شهزاده کامران د وزیر عطامحمد خان په لاس ړوند کړای سو (۱۲۳۴هـ – ۱۸۱۸م).

دغي پيښي بارکزي ورونه غچ اخيستو ته اړ کړل او سخت اړدوړ پيل سو. وروسته تر هغې چي د سدوزو د کهاله وروستی ټغر ئې ټول کړ، د وزیر فتح خان د ورو نو تر منځ هم د پادشاهۍ پر سر شخړي راوزيږېدې. تر هغه چي سردار دوست محمد خان په کابل عیدګاه جومات کي خپل امارت اعلان کړ او د کابل د امیر په توګه ئې په نامه خطبه ولوستل سوه (۱۲۵۴هـ – ۱۸۳۸م).

امیر بې له ځنډه په افغانستان کي خپل ټول زامن پر خپلو سیمو وټاکل خو رنجیت سنګهـ د افغانستان له کورنیو شخړو څخه ګټه واخیسته او ګرد پنجاب ئې تر پېښوره ونیو. سردار سلطان محمد خان هم د بالاکوټ په جګړه کي د میر احمدخان بریلوي او مولوي اسماعیل په مشرۍ د مجاهدینو په شهادت او د پېښور په صوبه کي د یارمحمد خان او د هغه د ورور په مړینه، کمزوری سوی وو. دا بېره هم وه چي رنجیت سنګهـ به پر خیبر یرغل وکړي، ځکه نو امیر دوست محمد خان د یوه لیک له لاري د هند له ګورنر جنرال لاردبنتک څخه د پېښور د بیرته نیولو په چار کي مرسته وغوښته او د باسول له لاري ئې له شپېته زریز لښکر سره د پېښور پر لوري حرکت وکړ. خو سردار سلطان محمد خان د امیر لښکر تار په تار او امیر بیرته ناکام له پېښوره خیبر او جلال آباد ته راستون سو. په دې توګه اشنغر تر کوهاټ او ټله د امیر ورور سلطان محمد خان ته پاته سو (۱۲۴۵هـ – ۱۸۳۸م).

امیر دوست محمد خان د رنجیت سنګهـ د ماتولو په تکل د لیکونو له لاري له انګلیس، ایران او زاري روس دولتو څخه مرسته وغوښته. د هند وایسرای لارد آکلینډ په (۱۸۳٦ – ۳۷م) د برتانوي هند له خوا سرالکساندر برنس، میجر لیچ، لفټننټ او دومستر لارډ د لومړني سیاسي او اقتصادي هیئت په توګه کابل ته ولېږل.

په عین وخت کي د روسیې یو نفر نماینده ویتکویچ[۳] هم کابل ته رسېدلی وو چي د کابل دربار او د کندهار حکمرانان ئې په سند او پنجاب کي د انګلیس د پرمختګ پر خلاف هڅول. امیر دوست محمد خان له الکساندر برنس سره په دې شرط مفاهمه

---

(۳) Vithievitck په ۱۳۳۸کي کابل ته راغی، خو دا سفیر په غیر رسمي ډول د روسیې د وزیر مختار له خوا په تهران کي کابل ته رالیږل سوی وو (اریانا –ټ ۲، ګ ۱).

وکړه، چې که د انګلیس دولت دوه زره ټوپک ورکړي او د سند دریاب د لوېدیځ مځکې هم ده ته پرېږدي نو دی به تل د انګلیسانو دوست او همکار وي.

مګر د هند برتانوي دولت د روس له احتمالي حملو څخه د هند د ساتلو له پاره پر شاه شجاع سدوزي چې له سلطنت څخه خلع او په لودهیانه کې فراري وو نظر درلود. پر دې اساس لارډ آکلینډ د اکتوبر په لومړۍ (۱۸۳۸م) د افغان او انګلیس لومړی جنګ پیل کړ او د امیر دوست محمد خان د خلع او ریښې کښلو له پاره ئې ملا وتړله.

شاه شجاع چې په دغه وخت کې د خپل تخت و تاج د لاس ته راوړلو له پاره هر ډول پستۍ ته حاضر وو، د مارچ پر ۱۲مه (۱۸۳۴م) ئې خپل لومړی تړون چې ۱۴ مادې ئې لرلې له مهاراجه رنجیت سره وتاړه که څه هم مخلوع پاچا په دغه وخت کې هیڅ ډول حقوقي او رسمي حیثت نه لاره، خو په معاهده کې ئې ټول کشمیر، پنجاب او د اټک، پېښور مځکې تر خیبر او سند پوري رنجیت ته پرېښوولې، دواړو خواوو (د ۱۱ – ۱۳ – ۱۴) مادو پر بنسټ د خطر په وخت کې د یوه بل لښکري مرسته قبوله کړه، د تجارت د جریان په هکله ئې هم ځیني مواد په دغه تړون کي ځای کړل، خو څرنګه چې دغه تړون یوازې د شاه شجاع او رنجیت تر منځ وو او انګلیسانو په هغې کي ګټه نه درلوده د هند برتانوي دولت هغه و نه منله په هغه پسې د لاهور تړون د (جون ۲٦ – ۱۸۳۸م) د برتانوي ګورنر، جنرال مهاراجه رنجیت سنګهـ او شاه شجاع الملک تر منځ په شمله کې د جولای پر ۲۵مه ۱۸۳۸م وتړل سو (دا هغه کال دئ چې روسي نماینده ویتکوویچ کابل ته راغلی وو) په دغه معاهده کې چې ګورنر او رنجیت سنګهـ حقوقي شخصیتونه ول او اختیارات ئې درلودل دریم شخص شجاع الملک په هیڅ ډول د خپل هیواد د استازي صلاحیت نه لاره، په دغه وخت کې دی یو فراري او له ملي حقوقو ناقد سړی وو.

په هر حال د لاهور تړون د مسټر ډبلیو ایچ مکناټن په ذریعه چې د لارډ آکلینډ د هند د نائب السلطنه له لوري ئې استازیتوب لاره، په (۱۸) مادو کي لاسلیک سو، شاه شجاع د افغانستان د تاج و تخت د بیا نیولو د وعدې په مقابل کي د افغانستان له ټولو مځکو چې په ماوراء بولان او خیبر کي وې لاس واخیست او په کال کي ئې دوه لکه روپۍ باج له پنځه زریز لښکر سره ومانه چې د تاج و تخت تر لاس ته راوړو وروسته ئې رنجیت ته ورکي او له بل هیڅ دولت سره چې د انګلیس او مهاراجه د دولت مخالف وي د دوستۍ او سیاسي اړیکو تړون و نه کړي. په هرات کي به هم خپل وراره حکمران وپېژني

او د هرات په امورو کي به مداخله نه کوي.

اتلسمه ماده د پوځي يووالي د تضمينولو تړون وو چي که له تړون کوونکو څخه يو (انګليس، رنجيت او شاه شجاع) د کوم طرف تر خطر لاندي راسي نور به له ده سره د خطر په دفع کولو کي لښکري مرسته کوي، په دغه عجيبه تړون کي چي د دوو حکومتو او يوه فراري له خوا لاسليک سو انګليس لښکريانو د سرجان کين په قوماندانۍ شاه شجاع د (۱۸۳۹م فبروري ۱۲۵۴ھ) د سند او بولان له لارو راوست او پر کندهار ئې حمله وکړه. د اپريل پر ۲۰ – ۱۸۳۹م = ۱۲۵۵هجري ئې د کندهار ښار ونيو او د امير ورونه ايران ته وتښتېدل. شاه شجاع د کندهار پر پاچهي تخت باندي کښېناست (د صفر ۲۳ – ۱۲۵۵هجري). په کندهار کي مکناټن له شاه شجاع څخه ژمنه واخيسته چي د انګليس عسکر به له يوه نفر سياسي نماينده سره د تل له پاره په افغانستان کي پرېږدي او په دغه ډول د برتانيې عسکر د شاه شجاع په ملګرتيا د غزني له لاري او همدارنګه (کپتان ويډ) د شهزاده تېمور د شاه شجاع له زوی سره د خيبر او جلال آباد له لاري پر کابل باندي حمله وکړه (د اګست پر ۱۷ – ۱۸۳۹م = غره جمادی الاخر ۱۲۵۵ هجري). شاه شجاع ئې په کابل کي پر پاچهۍ کښېناوه. امير دوست محمد خان له خپلو زامنو سره بخارا ته ولاړ خو په هغه ځای کي د بخارا پاچا دی بندي کی. د هند ګورنر جنرال لارډ آکلينډ د کابل د فتح او د امير دوست محمد خان د ايستلو له کبله د لندن دربار له خوا د ارل Earl په لقب وياړل سو (۱۸۳۹م).

دغه مهال چي د حکومت مشران او امير له هيواد څخه ولاړل او وطن ئې دښمن ته پرېښوو ی، افغان ملت د انګليس متجاوز لښکر ته د غزا اعلان وکی او له هر لوري پر انګليسي لښکرو د افغاني ډلګيو له خوا حملې پيل سوې، يو کال وروسته امير دوست محمد خان له خپل زوی محمد افضل خان سره له بخارا څخه راغی، له آمو څخه راتېر سو مګر په ايبک کي ئې د انګليس له لښکر څخه ماته وخوړه او تاشقرغان ته ولاړ (۲۸ ستمبر ۱۸۴۰م – ۱۲۵۶هجري). تر دې وروسته امير خپل ځان انګليس ته تسليم او کلکتې ته ولېږل سو (نوامبر ۱۸۴۰). خو ملي مجاهدينو د کابل په شمال کي د مسجدي خان، سلطان محمد نجرابي او نورو په مشرۍ د فرنګي متجاوزانو په مقابل کي په غزا لاس پوري کی، عبدالله خان اڅکزي، امين الله خان لوګري او نورو هم د ۱۲۵۸هجري د مني په سر کي د کابل په شاوخوا کي د خلکو په اتفاق پر شاه شجاع او فرنګيانو راپورته

سول، سردار محمد اکبر خان د امیر دوست محمد خان زوی هم د شمال له لوري له دوی سره یو ځای سو او پر انګلیسانو باندي ئې کار تنګ کی، په دغه کش و ګیر کي مکناټن Sir. W. Macnaghter د ستمبر په ۲۳ مه نېټه ۱۸۴۱م د سردار محمد اکبر خان په لاس په کابل کي ووژل سو او الکساندر برنس هم د نومبر پر دوهمه نېټه ۱۸۴۱م د غازیانو له خوا وژل سوی وو. وروسته په خپله شاه شجاع هم په کابل کي د غازیانو په لاس ووژل سو (د صفر ۲ – ۱۲۵۸هجري د اپریل ۳ – ۱۸۴۲م) (وګورئ ۸۴ نومره عکس). څرنګه چي د انګلیس عسکر د دغه کال په ژمي له کابل څخه د جلال آباد پر لوري ولاړل په لار کي د افغاني غازیانو په لاس ټول ووژل سول.

انګلیسانو په دغه جنګ کي ډېر زیانونه ولیدل یعني (۳۰) زره تنه ئې ووژل سول او (۲۱) کروړه هندی روپی ئې مصرف سوې، په پای کي د خپل ځان له ساتلو څخه هم عاجز سول او د افغاني غازیانو له لاسه له یو تن پرته چي ډاکټر برېډون[۴] نومېد یو هم ژوندی پاته نه سو. بیرته ئې امیر دوست محمد خان له هند څخه راووست، امیر د خپل مجاهد زوی وزیر اکبر خان په همت د کابل پر تخت بیا کښېناست، ورونه ئې له ایران څخه راغلل پر کندهار باندي حکمرانان سول او هرات د یارمحمد خان الکوزي د شهزاده کامران د وزیر په لاس کي پاته سو.

امیر دوست محمد خان د خپل امارت په دوهمه دوره کي د لومړي جنګ مشهور مشران چي د هیواد د ساتلو په لاره کي ئې قربانۍ ورکړې وې لکه نایب امین الله خان لوګری، سردار سلطان احمد خان سرکار، محمد شاه خان بابکرخېل، نواب محمد زمان خان او زوی ئې شجاع الدوله خان، محمد عثمان خان او نواب جبارخان، مسجدي خان او نور تر باور لاندي را نه وستل او د هیواد په چارو کي ئې شامل نه کړل، برعکس ټول هیواد ئې د خپلو زامنو تر واک لاندي وساتی، پر دې اساس سردار سلطان احمد خان د امیر وراره او زوم چي له ده څخه مایوس سوی وو کندهار ته ولاړ او له هغه ځایه ئې له پنځه زرو کندهاري لښکرو سره پر کابل حمله وکړه، خو امیر ده ته په مقر کي ماته ورکړه تر هغه وروسته سلطان احمد خان ایران ته فرار سو او د امیر نامتو مجاهد زوی

---

[۴] William Brydon ولیم برېډون (۱۸۱۱ – ۱۸۷۸م) د انګلیسي لښکرو ډاکټر چي له دیارلس زریز لښکر څخه یوازي دی ژوندی پاته سو او جلال آباد ته ورسېد. د جنوری ۱۳ مه – ۱۸۴۲ (انډین بیوګرافي ۵۸).

وزیر اکبر خان هم په مزار شریف کي له دې دنیا ولاړ (۱۲۶۳هجري = ۱۸۴۶م) (وګورئ: ۸۵ نومره عکس).

سردار محمد اکرم خان د امیر زوی په شمالي ولایاتو کي ایشان اوراق د میر بلخ، ایشان صدور د اقچي، میر حکیم خان د شبرغان والي، میر بابا بیګ د ایبک رئیس، غضنفرخان د اندخوی سالار، ګنج علي د خلم مهتر، محمودخان د سرپل داور او شاه مراد د قطغن بریدساتی مطیع کړل، تر آمو پر مخ ولاړ او د هیواد شمالي برید ئې وساته (۱۲۶۵هجري ۱۸۴۸م). په دې ډول یوازي کندهار او هرات د امیر له امارت څخه دباندي پاته سول. څو کاله وروسته کندهاري سرداران د امیر ورونه (کهندل، پردل، مهردل) مړه سول او رحمدل پاته سو، ده له خپلو وراړونو سره جنګ وکړ. په (۱۲۷۱هجري = ۱۸۵۵م) د رجب ۱۱مه امیر دوست محمد خان خپل ولیعهد سردار غلام حیدرخان جمرود ته ولېږه چي د سرجان لارنس د پنجاب چیف کمشنر د اندریو مارکویس د هند له ګورنر جنرال استازي سره ئې وکتل او د پېښور تړون چي د مارچ پر ۳۰مه ۱۸۵۵م سوی وو او دري مادې ئې لرلې د هند له برتانوي دولت سره وکړ.

دغه تړون د دوستۍ د مراسمو او د یو او بل د هیواد په چارو کي د طرفینو د نه ګوتوهني مضمن وو. دریمي مادې ویل چي تړون کوونکي به یو د بل دوست – دوست او دښمن به دښمن بولي.

په دغه تړون سره امیر له ختیځ لوري مطمئن سو، ضمناً ئې د کندهار په نیولو کي برتانوي هند دولت پلوي هم ترلاسه کړه، تر هغه وروسته ئې له کابل څخه لښکر ویوست کندهار ئې ونیو او خپل زوی غلام حیدر خان ته ئې وسپاره. په دې ډول کندهار مستقیماً د کابل په امارت پوري اړه پیدا کړه.

خو په هرات کي د سدوزو د کورنۍ پایڅوړ د یارمحمد خان الکوزي د کامران د وزیر په لاس له منځه ولاړ، یارمحمد خان الکوزی هم په (۱۲۶۷هـ – ۱۸۵۹م) کال وفات سو او نالایق زوی ئې چي سیدمحمد خان نومېده د ده پر ځای کښېناست، خپل مسکوکات ئې د ناصرالدین شاه قاجار په نامه ووهل، خو د هرات خلکو دغه وضع خوښه نه کړه هغه ئې وواژه او شهزاده یوسف د حاجي فیروزالدین لمسی چي د سدوزیانو له پاته شونو څخه وو د هرات په پاچهۍ وټاکه (محرم ۱۲۷۲هـ = ۱۸۵۵م). تر هغه چي ناصرالدین شاه هرات ته لښکري راولېږلې او هغه ښار ئې ونیو (۱۲۷۳هـ).



وزیر اکبرخان غازي

۸۵–لمبر عکس

افغاني مشرانو هرات د افغانستان پخوانۍ نه بېلېدونکې برخه گڼله او نه ئې غوښتل چې پردي هیوادونه دې په هغه کې لاس ولري، په دې اساس امیر دوست محمد خان له مرکز سره د هرات راساً یو ځای کېدل غوښتل. په دغه وخت کې امیر دوست محمد خان انگلیسانو جمرود ته دعوت کړ او د سرجان لارنس په ذریعه ئې د پېښور تړون په (جنوري ۲۶ – ۱۸۵۷م = ۲۹ د جمادی الاول ۱۲۷۳هـ) کال له ده سره وتاړه، دغه تړون چې د (۱۲) مادو درلودونکی وو د هند د گورنر جنرال جان وایکونت کیننگ له لوري د جان لارنس چیف د پنجاب کمشنر او لفټننټ کرنل ایچ لي ایدواردس، د پېښور کمشنر په وسیله له امیر سره وتړل سو.

تړون وايي: دا چې د ایران پاچا تړون مات او پر هرات ئې قبضه وکړه او په افغانستان کي مداخله کوي، نو د هند انگلیسي حکومت به امیر دوست محمد خان ته مرسته ورکړي او د ده د مځکو په ساتلو کي به د قاجاریانو پر خلاف زیار وباسي، تر هغه وخته پوري چې له قاجاري دولت سره جنگ جاري وي د میاشتي یو لک روپۍ به امیر ته ورکوي په دې شرط چې: امیر خپل سواره او توپخانه لښکر له (۱۸) زره پلیو سره ډېر ښه وساتي او تل (۱۳) زره روزل سوي لښکر ولري. په کابل، کندهار، بلخ او یا په هر ځای کي چې له قاجاریانو سره جنگ ونښلي، د انگلیس نمایندگان به له هندي عملې سره مقرر وي څو د مرستي پیسې د دوی تر نظارت لاندي په لښکري چارو کي ولگول سي، خو په کورنیو چارو کي به گوتي نه وهي او یوازي به له جنگي پېښو څخه خبر اخلي.

امیر دي خپل یو نماینده په پېښور کي مقرر کړي او سربېره به پر میاشتنۍ مرستي پنځه لکه روپۍ نقدي ده ته ورکوي. په مقابل کي امیر نه سي کولای په پټه یا ښکاره له بل دولت سره په سیاسي مفاهماتو لاس پوري کړي، څلور زره ټوپک ئې هم د دغه تړون پر اساس امیر ته په تڼل کي وسپارل.

سربېره پر دې انگلیس دولت پر قاجاري دولت هم سیاسي فشار راووست چې هرات چې د افغانستان د مځکي پخوانۍ برخه ده ژر خوشي کړي همدارنگه ئې په نومبر ۱۸۵۷م = ۱۲۷۳هجري یو لښکر له جنگي کښتیو سره د عرب د بحیرې له لاري پر بوشهر باندي وروهڅاوه، هغه ښار ئې ونیو او د هغه پرېښوول ئې د هرات په پرېښوولو پوري اړ کړه.

دا چې د پردې تر شا یا د سیاست په فضا کې د هرات په باره کې په هند، لندن، تهران او کابل کې فعالیت کېده د تړون د نص او د انګلیس له بحري لښکرکښیو څخه ښکاره ده، خو د افغانستان او هرات خلک هم د قاجاریانو تر بار لاندې را نه غلل، هر طرف ته ملي حرکتونه ولیدل سول، سربښندویه خلک د آزادۍ په لار کې پر خوځښت راغلل او له هرات څخه ئې د متجاوزو لښکرو ایستل وغوښتل. پر دې اساس قاجاریه لښکر د جولای پر ۲۷ مه – ۱۸۵۷ = ۱۲۷۳هجري هرات تخلیه او مشهد ته ولاړل، خو په دغه وخت کې هماغه سردار سلطان احمد خان سرکار د امیر وراره هرات ته راغی او دی ئې د هغه ځای حکمران وپېژاند، په دغه ډول زړورو هراتیانو خپل ښار د پردیو له واکمنۍ خلاص کړ.

دغه سردار د انګلیس له مخالفو عناصرو څخه وو، چې په لومړي جنګ کې د ملي مجاهدینو له مشرانو څخه ګڼل کېده، پر دې اساس په هرات کې د ده سته والی د هند د دولت له پاره خاطرجمعي نه وه.

هرات ته د سردار له راتلو سره خلک پر ده باندې راټول سول او سیاسي فعالیت هم شروع سو، د برتانیا حکومت یو سیاسي هیئت د میجر تیلر په مشرتابه له بغداد څخه هرات ته ولېږه، په دې توګه د روس دولت یو هیئت د خانیکوف په ریاست د سردار دربار ته راولېږه، سلطان احمد خان د انګلیس لېږلي په ناکامۍ له هراته وایستل (۱۲۷۴هجري) او په آزادۍ سره ئې حکم چلاوه.

د هغه بل لوري امیر دوست محمد خان چې له مرکز سره د هرات په یو ځای والي د خلکو هیله ولیده په خپل لښکر باندې ګوتي ووهلې او پر هرات ئې حمله وروړه، د صفري پر لسمه ۱۲۷۸ھ ۱۸٦۱م ئې خپل وراره او زوم سلطان احمد خان په هرات کې کلابند کړ.

کلابندي ۱۸ میاشتي اوږده سوه، سلطان احمد خان له نرۍ سترګي پټي کړې، زوی ئې شهنواز خان هم تر دوو میاشتو پوري مقاومت ته دوام ورکړ، خو تر دوو میاشتو وروسته د امیر په لاس ورغی (د ذیحجې اتمه ۱۲۷۸ھ ۱۸٦۱م). خو امیر په خپله څو ورځي وروسته د سالنډۍ په مرض د ۷۷ کالو په عمر له دې دنیا څخه ولاړ او په هرات کې د خواجه عبدالله انصاري د مزار تر څنګ په ګازرګاه کې ښخ سو (د ذیحجې ۲۱ – ۱۲۷۸ھ = ۱۸٦۱م). هغه ګټور کار چې امیر د خپل عمر په پای کې د هیواد د

یووالي په خاطر وکړ، په افغاني مرکزي دولت پوري د هرات تړل وو چي سیاسي وحدت او د هیواد پښتوني حدود ئې تامین کړل (وګورئ ۸۶ نومره عکس).

امیر دوست محمد خان د محمدزو کورنۍ، امیر او په (امیر کبیر) مشهور دئ چي د سپینو زرو د روپیو پر سکه باندي ئې دغه بیت لیکل سوی وو:

سیم و طلا شمس و قمر مید هد نوید
وقت رواج سکهٔ پاینده خــان رسید

دی یو جاه طلب، نرم خویه او عشرت دوست سړی، خو زړه ور او مدبر وو، چي ۱۴ منکوحه ښځي او په سلهاوو سرارۍ او (۵۲) اولاده ئې درلودل. (۲۹) تنه اولاد ئې د ده تر مرګ وروسته په افغانستان کي د بېروونکو کورنیو جنګو لامل وګرځېدل.

په لومړي امارت کي چي امیر دوست محمد خان کابل ونیو د خپلو وروڼو جرګه ئې جوړه کړه او د ۱۲۴۲هجري کال د ربیع الثاني د میاشتي د تړون له مخي چي اصل ئې د کابل په موزیم کي موجود دئ، هیواد ئې په خپل منځ کي ووېشه د دغي جرګې ریاست نواب عبدالصمد خان کاوه چي تر ټولو مشر وو او دغه لاندنی تړون ئې د ده په ضمانت سره وکی:

۱. کوهاټ و هنګو او د هغه توابع چي پخوا بنګښ ورته ویل کېده نواب عبدالصمد خان ته.
۲. پېښور سردار یارمحمد خان، سلطان محمد خان، پیرمحمد خان او سیدمحمد خان ته. اشنغر او د هغه توابع، له یو لکو روپیو سره د کابل له عایداتو چي امیر دوست محمد خان ورکولې.
۳. د حصارک غلجایي سیمه د کابل ختیځ خوا نواب عبدالجبار خان ته.
۴. کابل، کوهدامن، لوګر او د هغه توابع تر بامیان پوري امیر دوست محمد خان او سردار امیرمحمد خان د ده سکه ورور ته.
۵. نواب محمد زمان خان او د ده سکه وروڼو ته (د نواب اسد خان زامن د پاینده خان لمسي) د کابل د ختیځ خوا، لغمان، جلال آباد، تر خیبر او د هغه تر توابعو پوري.
۶. سردار حبیب الله خان او سردار محمداکرم خان (د سردار محمدعظیم خان د امیر د مړه ورور زامن) ته لوګر، بتخاک، څرخ، میدان او غوربند.

۷. کندهاریو سردارانو پنځو ورونړو (پردل، کهندل، شېردل، رحمدل، مهردل) ته کندهار له شاه جوی څخه تر فراه پوري.

د هیواد په دغو اوو برخو کي پورتنیو اشخاصو حکم چلاوه، نواب اسد خان ډېره جات په خپل واک کي لاره او رحمدل خان د بولان پر درې تر ښکارپوره پوري حکمراني کوله.

د بارگزیو ورونړو د هڅو دغه نتیجه وه چي سدوزیو د سلطنت له ضعف څخه وروسته هیواد په خپل منځ کي ووېشی. د احمدشاه بابا د شاهنشاهۍ قوي مرکزیت له منځه ولاړ پر دې اساس قوي او نیرومند هیواد موقتاً په ناتوانۍ او تجزیې محکوم سو.

د موهن لال په قول چي د سید حسین د کابل مستوفي او د مستوفیت د غړو دېوان میتها او دیوان بیربا او له (یارام) څخه ئې اورېدلي دي د ده د امارت په لومړۍ دوره کي د امیر د قلمرو ټول عواید (۲۵۰۹۲۳۸) کابلۍ روپۍ وې، چي د کابل او د هغه له شمالي سمت څخه له غوربند، میدان وردگ، غزني، بهسود، بامیان، زرمت، گردېز، هزاره، کورم، خوست، جلال آباد او لغمان څخه لاس ته راتلې.

د کندهار تر یووالي او د کندهاري سردارانو د خپلواکۍ تر پای ته رسېدو وروسته د امارت عایداتو د فراه له شاوخوا څخه تر کندهار او شاه جوی د کابل په مرکز پوري اړه پیدا کړه، د فیض محمد هزاره په وینا امیر له دغو عوایدو څخه (۱۵) لکه روپۍ تنخوا د کندهار پاته سردارانو ته چي د ده وربرونه ول مقرره کړه.

خو د پېښور، اشنغر او د هغه توابع حکمرانانو سردارانو عایدات د کاله (٦٩٢) زره روپیو په شاوخوا کي ول، چي هره روپۍ (لس شاهي) له لسو آنو سره برابره وه او پر دې سربېره د خوراکه بابو د مالیې، د هندوانو د جزیې او له نورو متفرقاتو څخه هم د (٦٢) زره روپیو په شاوخوا کي عاید وو چي ټول (۷۵۴) زره روپۍ سي (د پېښور تاریخ).

په دغه ډول که موږ د کابل، کندهار او پېښور پر عایداتو او مالیاتو سربېره د شمالي ولایاتو عایدات یعني قطغن، بنگښ او ختیځه خوا لغمان او دېره جات ټول په جلا ډول سره د (۵۰) لکو روپیو په شاوخوا کي اټکل کړو نو د بارکزو ورونړو (امیر دوست محمد خان او ورونړه ئې) ټول د لس ملیونو روپیو په شاوخوا کي کېدې.

په دغه وخت کي د افغانستان له لاري د هند او بخارا تجارت روان وو، له امرتسر

او ښکارپور څخه تجارتي قافلې کابل، کندهار، بخارا او مشهد ته تللې، په ځانګړي ډول د کشمیر د شالو او نفیسه پارچو تجارت کېده. څرنګه چي د ۱۸٦۲ په تجارتي راپور کي راغلي دي چي د افغانستان او هند ټول تجارت ۹۳۹۱۱۸ پونډه وو او ګمرکي محصول هم په سلو کي دوه نیمي روپۍ اخیستل کېده. د کوچیانو په وسیله هم د یو میلیون او درې لکو روپیو مالونه له افغانستان څخه هند ته وړل کېده او د یو میلیون او شپږ لکو روپیو مالونه واردېدل. په کابل کي ملا رحیم شاه، غلام قادر او ښکارپوري ګوپالداس او په کندهار کي ملا جلال اڅکزی او ملا نسو لوی تاجران ول. د کابل ګمرک د څلورو لکو روپیو په شاوخوا کي تجارتي محصول درلود. په کابل کي سید حسین خان او رووسته عبدالرزاق خان او میرزا عبدالسمیع خان مستوفي الممالک (د مالیې وزیر) وو، میرزا محمد حسن خان د سلطنت دبیر (سرمنشي)، شاغاسي شېردل خان بارکزی د کورنیو چارو او دربار وزیر، غلام محمد خان پوپلزی لښکري مشاور، قاضي عبدالرحمن خانعلوم بارکزی د عدلیې وزیر او قاضي القضاة میر حاجي د میر واعظ زوی د دیني امورو مشاور او فراموز خان نورستانی سرلښکر او د امیر د دربار سپه سالار وو.

خو د امیر لښکر د مستر کیمپل انګلیسي (چي په لومړي جنګ کي مسلمان سوی او نوم ئې شېرمحمد ایښودل سوی وو) او امریکایي ډاکټر هارلان چي د رنجیت سنګهـ له دربار څخه کابل ته راغلی وو تر اداري او تعلیم لاندي وو او نایب عبدالصمد هندی وو، چي د هغو شمېر د سلطنت په لومړۍ دوره کي (۱۲) زره سوعاره، درې نیم زره پیاده ټوپک لرونکي، (۵۰) لوی توپونه او (۲۰۰) کچرو په منځ کي توپونه ول، سوارانو یو تن (۱۲۰) روپۍ او پلي یو تن (۸۴) روپۍ د کاله تنخوا درلوده، خو د امیر دوست محمد خان د امارت په پای کي د ده عسکري تشکیلات داسي ول:

۱. په کابل کي دوه پلي غنډونه له (۱۸) صحرایي توپو سره دوه درانه توپونه یو مورتر او یو زنبورک.
۲. په بلخ کي درې پلي غنډونه او دوه سواره غنډونه له ۱٦ صحرایي توپو سره.
۳. په بامیان کي یو پلي غنډ له دوو جبل توپو سره.
۴. په کوهستان کي یو پلي غنډ له دوو صحرایي توپو او دوو جبل توپو سره.
۵. په فراه کي یو پلي غنډ او څلور صحرایي توپونه.

٦. په گرشک کي یو پلي غنډ او څلور صحرایي توپونه.
٧. په غزني کي یو پلي غنډ او څلور صحرایي توپونه.
٨. په آقچه کي یو پلي غنډ او دوه صحرایي توپونه.
٩. په غلزیي کلات کي یو پلي غنډ د درو جبل توپو او یو صحرایي توپ سره.
١٠. په کندهار کي درې پلي غنډونه او یو سپور غنډ له دوو ثقیلو، دوو جبل او دوولس صحرایي توپو سره.
١١. په زمینداور کي یو پلی غنډ له څلورو صحرایي توپو سره.

په دغه ډول د امیر تر اداري لاندي مځکو کي یوولس عسکري مرکزونه ول او هر غنډ ٨٠٠ تنه چي په ورځنیو تمریناتو کي ٦٠٠ نفر حاضرېدای سول، خو هر غنډ سواره عبارت وو له (٣٠٠) تنو څخه چي ټول منظم عسکر ئې عبارت ول له:

١٦ پلي غنډونه، هر غنډ ٨٠٠ تنه – ټول ١٢٨٠٠ تنه.

٣ سواره غونډونه ٣٠٠ تنه – ټول ٩٠٠ تنه.

٦٧ صحرایي توپونه – ٦ جبل توپونه – ۴ ثقیل توپونه، یو مورتر چي ټول منظم عسکر، ١٣٧٠٠ تنه له ٨١ توپو سره ول، پر دې سربېره د ایله جاري لښکرو شمېر د ضرورت په وخت کي په کابل کي ٣١ زره، په کندهار کي ١٨ زره، په هرات کي ٢٢ زره، په بلخ کي ٢٩ زره وو (افغانستان د لندن طبع: ١٩٠٦م). مگر کورنی امنیت د کوتوال او د کوتوالۍ د پولیس په ذریعه اداره کېده، شرعي محاکمو عدلیه امور اداره کول، چي قاضي د خانعلوم په ذریعه د امیر له حضوره ټاکل کېده. د امیر د حکمدارۍ اوله دوره یو ډول مشترک امارت وو چي افغانستان د ده د وروڼو تر منځ د پخواني تړون له مخي وېشل سوی وو، هر ورور په خپله حکومتداري سیمه کي خپلواکي درلوده، په دوهمه دوره کي د هیواد مرکزیت قوي سو او د امیر د وروڼو نفوذ له منځه ولاړ، د ده د امارت توابع د امیر د زامنو تر منځ ووېشل سول، مگر دوی د پلار په اجازه سره حکم چلاوه او د خپلو سیمو له عوایدو څخه ئې یوه برخه د خپلو مصارفو له پاره گرځوله او پاته ئې د کابل په خزانه کي تحویلوله، د پلار له اجازې څخه پرته ئې ټول کارونه سر ته نه سول رسولای، په دوهمه دوره کي د امیر زامنو په دغو سیمو کي حکم چلاوه:

سردار شېرعلي خان د بنگښ په کورم کي (د پېښور جنوبي خوا).

سردار محمد افضل خان په زرمت د کابل په جنوب کي چي وروسته د بلخ په نیولو

او حکمرانۍ باندي مامور سو.

ولیعهد سردار غلام حیدر خان په غزني او کندهار کي چي وروسته په جلال آباد کي حکمران او د ده پر ځای سردار شمس الدین د امیر سکه وراره چي په کوهستان کي حاکم وو په غزني کي وټاکل سو.

سردار محمد اعظم خان پره لوګر د کابل په جنوب کي.

سردار محمد شریف خان په بامیان د کابل شمال لوېدیځ او وروسته په کلات او فراه کي.

سردار محمد امین خان په کوهستان د کابل په شمال کي.

سردار محمد اکرم خان په هزاره جات د کابل په لوېدیځ کي چي وروسته شمالي ولایتو او قطغن ته وګومارل سو.

سردار محمد اکبر خان په لغمان او جلال آباد کي د کابل ختیځه خوا.

د امیر تر مړیني وروسته په هرات کي د ده ولیعهد سردار شېرعلي خان د امارت اعلان وکړ (د ذیحجې ۱۲مه – ۱۲۷۸ هجري ۱۸۶۱م) او په دغه سجع ئې سکه ووهله:

جـــمال دولت پاینده قسمت ازلیست

وصی دوست محمد امیر شېرعلیست

یو له هغو مهمو سړیو څخه چي له امیرشېرعلي خان سره د تخت ناستي پر مهال په هرات کي وو سید جمال الدین افغان دئ چي ده ته ئې د کورني سمون پروګرام او د نوي مدنیت د اصولو طرح ورکړه، خو امیر د خپل لومړي امارت په دوره کي چي تر (۱۲۸۳هـ – ۱۸۶٦م) پوري پنځه کاله وه، له خپلو وروڼو سره په کورنیو جګړو بوخت وو، د هیواد د سمون له پاره ئې فرصت و نه موند، سید جمال الدین هم له هیواده ووت، د آسیا او اروپا هیوادو د ځوانانو اروا ئې راویښه کړه، د اسلامي یووالي بږغ ئې اوچت او د اروپایي ښکېلاک په وړاندي ئې ستره مبارزه پیل کړه.

مومندو قبیلو په (۱۲۸۰هـ – ۱۸٦۳م) کال د سعادت خان د زوی سلطان محمد خان په مشرتابه د انګرېز په وړاندي پاڅون وکړ.

امیر شېرعلي خان خپل زوی محمدعلي خان او وزیر محمدرفیق خان لودین، مومندو ته ولېږل چي له قبایلو سره خپل اړیکي وساتي، خو انګرېز د ده امارت په رسمیت و نه پېژاند، د امیر ورور محمد اعظم خان ئې د ده پر خلاف په پېښور کي وساته،

تر ده وروسته د امیر بل ورور محمدافضل خان هم سر غړاو سو او د هندوکش په (باجگاه دره) کي ئې د ده له لښکر سره جګړه وکړه، خو په پای کي ئې غاړه کښېښووه او بندي سو، زوی ئې سردار عبدالرحمن خان بخارا ته ولاړ.

تر دې وروسته ئې له خپل بل ورور محمدامین خان سره چي د کندهار حکمران وو د کلات د ترنک په کجباز کي جګړه وکړه، په نوموړي جګړه کي ئې ورور محمدامین او زوی محمدعلي دواړه ووژل سول (۱۲۸۲ هـ – ۱۸۶۵م). یو کال وروسته عبدالرحمن خان له بخارا راوګرځېد او د محمداعظم خان په مرسته ئې پر کابل یرغل وکړ او وئې نیو. د امیر شېرعلي خان مشر ورور محمدافضل خان ئې پر پلاز (تخت) کښېناوه (۱۲۸۳هـ – ۱۸۶٦م) او امیر شېرعلي خان کندهار ته ولاړ.

امیر محمدافضل خان د کورنیو جګړو پر مهال تر یوه کال امارت وروسته مړ سو (۱۲۸۴هـ) او د ده بل ورور امیر محمداعظم خان د کابل پر تخت کښېناست، وراره ئې عبدالرحمن خان د هیواد شمالي ولایتونه ونیول او بیا ئې له کابل سره وتړل.

خو کندهار او هرات له امیر شېرعلي خان سره پاته سول. ده هلته نوی پوځ چمتو کړ او د کندهار له لاري ئې پر کابل ورودانګل. هغه ئې ونیو او امیر محمداعظم خان او عبدالرحمن خان ایران ته ولاړل، محمداعظم خان همهلته مړ سو او روسي حکمران (جنرال کوفمن) په ترکستان کي د عبدالرحمن خان هرکلی وکړ او په سمرقند و تاشکند کي ئې مېشت کړ.

امیرشېرعلي خان دوهم ځل د ټول افغانستان امیر وګڼل سو (۱۲۸۵هـ – ۱۸٦۸م).

امیر دا ځل په کابل کي په نویو اصولو لښکر جوړ کړ، نوي ښوونځي ئې پرانیستل، د (شمس النهار) په نامه ئې د افغانستان لومړنی اخبار چاپ او خپور کړ، په کابل کي ئې نوې چاپخونه جوړه کړه او په هغې کي ئې ځیني کتابونه، له هغې ډلي (پوځي قواعد) له انګرېزي څخه په پښتو او دري وژباړل او چاپ ئې کړل.

امیرشېرعلي خان سید نورمحمد شاه کندهاری د وزیر (صدراعظم) په توګه وټاکه او د وزیرانو لومړنۍ کابینه ئې منځته راوسته چي عصمت الله خان د کورنیو چارو، ارسلا خان د بهرنیو چارو، حبیب الله خان وردګ د مالیې، حسین علي خان د دفاع او احمدعلي خان د زېرمو (خزانو) وزیران او محمدحسن خان د دربار منشي وو. نوموړې کابینه د افغانستان له استوګنو قامونو څخه پرته له ژبنیو او قامي توپیرونو

جوړه سوې وه، چې د شاهي کورنۍ او د امير له خپلوانو څخه هيڅوک هم پکښې نه ول. دغه کار دا راښيي چې امير په سياسي چارو کې په پراخه سينه او اسانۍ چلند کاوه او د هيوادوالو ترمنځ ئې عدل په پام کې ساته.

د امير له يادوني وړ کارو څخه يو هم د نوي، چمتو او سمبال پوځ جوړول دي، سره له دې چې دغه پوځ هيواد او امير ته د اړتيا او گواښ پر مهال مرستندوی نه سو، خو بيا هم د دغې دورې په تاريخ کې د يادوني وړ ښکاري.

دغه پوځ په اتو پوځي هډو: کابل، جلال آباد، شېرآباد، کندهار، کورم، هرات، ميمنه او بلخ کې په لاندني شمېر درې ټولگيه وو:

۱. ٦٢ پلي غنډونه، هر غنډ ٦٠٠ جنگيالي - ټول ۳۷۲۰۰ جنگيالي
۲. ١٦ سپاره غنډونه، هر غنډ ٦٠٠ جنگيالي - ټول ۹٦۰۰ جنگيالي.
۳. د پيلانو، آسونو، غويانو او کچرو د توپخانو ټول ۵۱۹۰ جنگيالي.

په دې گڼه د ټولو وسله والو چمتو پوځيانو شمېر په ۱۸۷۲م کال (۵۱۹۹۰) وو، سربېره پر دې (۸۰۰۰) پلي او (٦۰۰۰) سواره ايله جاري (پوځي ډوله) هم ول.

د وسلو ډولونه ئې (۴۰۸۲۵) انگرېزي او افغاني ټوپک او (۳٦۹) انگرېزي توپونه ول. برتانوي هند دولت د ۱۸۷۷م تر مارچه پوري امير شېرعلي خان ته نه ويشت زره ټوپک بخښلي ول (افغانستان - هملتون).

امير د توپونو د جوړولو له پاره په کابل او هرات کې کارخانې جوړې کړې چې په هغو کې ئې ارابه لرونکي دراندہ توپونه جوړول، همدا راز ئې د ټوپک جوړولو کارخانې هم لرلې چې تر اوسه هم په هماغو کارخانو کې جوړ سوي توپونه سته.

د برتانوي هند دولت چې د افغانستان اوضاع ډاډمنه او سمه وليده د نوامبر د (۲مي) نېټې (۱۸٦۸م - ۱۲۸۵هـ، شوال) ليک له لارې ئې د امير شېرعلي خان سلطنت په رسميت وپېژاند، دوولس زره ټوپک او شپږ سوه زره روپۍ ئې ورته راولېږلې.

امير د اړيکو د لا ټينگښت له پاره د هند د وايسرای په بلنه په (۱۲۸٦هـ - ۱۸٦۹م) امبالې ته ولاړی. د هند گورنر جنرال د سياسي کنفرانسونو په ترڅ کې د امير ټولې غوښتني و نه منلې، د افغانستان په چارو کې ئې د امير په ښېگڼه د نه لاسوهني څرگندونه وکړه او (۱۲۰۰۰) ټوپک ئې له درې سوو زرو روپيو سره امير ته ډالۍ کړې.

امير چې کابل ته راستون سو، خپل کشر زوی (عبدالله) ئې خپل ځای ناستی

وټاکه او مشر زوی ئې (محمديعقوب) له کابله وتښتېد او په هرات کې ئې اړدوړ پيل کړ، خو امير دی د هرات حکمران وټاکه او د ناخوالو مخه ئې ونيوله.

امير ځينو سياسي پوښتنو ته پام واړاوه، له تزاري روسيې سره ئې د افغانستان د شمالي بريدونو په ټاکلو لاس پوري کړ، له ايران سره ئې د انګرېز په منځګړتابه د هلمند د اوبو وېش پيل کړ او صدراعظم سيدنورمحمد شاه ئې تهران ته واستاوه، وروسته بيا نوموړوي صدراعظم د برتانوي هند له دولت سره د شملې (۱۸۷۳م) او پېښور (د جنوري ۳۰ مه ۱۸۷۷م) په کنفرانسونو کې ورګډ سو، خو څه هوکړه و نه سوه. دغه ديپلوماتيکي ويناوي کېدې چې د روسيې دولت پر (خيوا) يرغل راوړ، هغه ئې ونيوله او هند ته ګواښ لا پسې کلک سو (ربيع الاول – ۱۲۹۰ه).

څرنګه چې د پېښور په کنفرانس کې د صدراعظم نورمحمدشاه دريځ کوم ځای و نه نيو او دی هماغلته ناروغ او مړ سو، دا مهال د برتانوي هند دولت د افغانستان پر بريدونو خپل څرګند سياست (فارورډ پاليسي) تر کار لاندي ونيوله او د هند د ساتني له پاره ئې تېری يوازينی لار وګڼله.

د روسيې دولت چې خپل استازی (جنرال ستوليتوف)[۵] کابل ته رالېږلی وو د ده راتګ د هند سياست چاري انديښمن کړل، تر هغې چې د افغان – انګرېز دوهمه جګړه ئې پيل کړه او د افغانستان پر خاوره ئې تېری وکړ.

د انګرېز سمبال جګړه مار د (۱۸۷۸م د نومبر پر ۲۰ مه) د خيبر، کورمي او بولان له لاري پر مخ تلل، امير شېرعلي خان د روس د مرستي په هيله په خورا ګډوډۍ کي کابل پرېښوو او مزار شريف ته ولاړ او هلته د ماتي په درشکل کي د ۱۲۹۶ه ۱۸۷۹م کال د صفري پر ۲۹ مه د (نقرس) په ناروغۍ مړ سو (وګورئ: ۸۷ نومره عکس).

---

[۵] د دغه سياسي پلاوي د هرکلي څرنګوالی چې د روسي مختار وزير Stoletoff په مشرتابه راغلی وو د ګولوس Golos جريدې د ۱۸۷۸م کال د نومبر مياشتي په ګڼه کي چې په سنتپترزبورګ کي خپرېده راغلی او ژباړه ئې د اريانا مجلې د دوهم کال په لومړۍ ګڼه کي چاپ سوې ده.

له جنرال ستوليتوف سره ۲۲ قزاقان، ۱۵ قرغيزان او ۴ چوپړي ملګري ول، دی د جون پر ۱۴مه له سمرقنده راوخوځېد او د ۱۸۷۸م کال د اګست پر ۱۱مه د کابل بالاحصار په شاهي ودانۍ کي امير ته راورسېد.

د امیر تر تګ وروسته په کابل کې ناوړې پېښې منځته راغلې، وګړي بې مشرتابه پاته ول او دښمنان پر مخ راتلل.

دا مهال ځینو مشرانو شهزاده یعقوب خان تر اته کالو بند وروسته له زندانه راوایست او د ۱۲۹۶هـ کال په ربیع الاول کې ئې په پاچهي وټاکه.

انګرېز جګړه مارو په خونړې ځواک افغانستان ونیو او د امیر ناپوه زوی ئې خپلې پوځي هډې (ګندمک) ته بوت. ګندمک د کابل – جلال آباد تر منځ یو ځای دئ چې د افغان غازیانو د لومړۍ جګړې پر مهال انګرېز لښکر تر پایه هلته سټ سوی وو، خو اوس د امیر دغه ناپوه زوی دغلته راکښل سو او د ګندمک کرغېړن تړون ئې چې د افغانستان په تاریخ کې یو تور ټکی دئ او د دغه هیواد مځکنۍ بشپړتیا ئې دړې وړې کړه لاسلیک کړ. د ۱۲۹۶هـ د جمادی الثاني ۴ = ۱۸۷۹م د می ۲۶ مه.

د ګندمک تړون چې لاسلیک سو، په ټول هیواد کې کلک اړودوړ پېښ وو. یعقوب خان هم په کابل کې د پردیو تر سیوري لاندې اوسېده، دی هیڅکله هم د ټول افغانستان د پاچا په توګه و نه پېژندل سو او تر څو میاشتو وروسته له افغانستانه هند ته وتښتېد او د برتانوي هند په غېږ کې ولوېد، ځکه نو دغه تړون حقوقي ارزښت نه لري. د نوموړې تړون له مخې خیبر، پښین او کورمه له افغانستانه بېل او برتانوي هند په خاوره پورې وګڼل سول. سرلویس کیوناري Sir Piere louis Napoleon Cava Gnari[٦] چې د ګندمک په تړون کې د انګرېزانو استازی وو د انګرېزي استازي په توګه د (۱۹۷۹م کال د جولای په میاشت) په کابل بالاحصار کې استوګن سو. خو څو میاشتې وروسته په افغانستان کې ملي غورځنګ پیل سو او افغان غازیانو د پرنګیانو په وژلو لاس پورې کړ. د کابل بالاحصار پوځیانو هم پاڅون وکړ او د مجاهدینو ملګري سول، تر ټولو لومړۍ ئې په بالاحصار کې انګرېز استازی د هغه له همکارانو سره وواژه (د ۱۲۹۶هـ د روژې ۱٦ مه = ۱۹۷۹د ستمبر ۳مه).

د افغان انګرېز دوهمه جګړه ډېره توده پر مخ تله، ستر ملي مجاهدین د جنرال

---

[٦] د جنرال ادولف زوی په ۱۸۵۷م کال د ایست انډیا کمپنۍ په لښکر کې شامل سو، وروسته ئې په هند او نورو سرحدي سیمو کې لوړې دندې ومونډلې او تر ۱۸۷۷ کال پورې د کوهاټ او پېښور واکمن وو. په ۱۸۸۷م کال د سرچمبرلین د کابل پلاوي غړی وو، چې افغاني مامورینو د دغه پلاوي د راتګ مخه ونیوله (انډین بیوګرافي ۷٦).

چمبرلین[۷] Sir N Chamberlain چې د خیبر درې له لارې ئې پیاوړې انګرېزي ځواک سره یرغل کړی وو، جنرال رابرټس Sir E. Robert چې د کورمې له لارې پر مخ راتلی او جنرال سټیوارټ J. Stewart چې د بولان درې له لارې ئې یرغل کړی وو په وړاندې په مېړانه ودرېدل.

د انګرېز دغه بشپړ سمبال پوځونه تر پنځوسو زرو لږ نه ول. خو غازیانو ستره مېړانه وښوده، د مجاهدینو مشران لکه: محمدجان خان وردګ، ملا مشک عالم اندړ، صاحبخان تره کي، سردار ایوب خان او محمد عثمان خان ساپي او نورو په بېلابېلو ځایو کې له یرغلګرو سره جګړې وکړې. له دغو ټاکونکو جګړو څخه یوه هم چې انګرېزان ئې وځپل د میوند د ډګر جګړه وه. په نوموړې جګړه کې له هرات او کندهار د امیر شېرعلي خان د زوی سردار محمدایوب خان، جرنیل تاج محمد خان سلیمانخېل په مشرۍ او د مولوي عبدالرحیم کندهاری او د کندهار د نورو پوهانو په فتواء ملي ځواکونه راغونډ سول.

سردار ایوب خان له هرات او فراه څخه ګرشک ته راغلی وو او انګرېز پوځ د جنرال بروس Burrows په مشرتابه د میوند پر ډګر د هغه مخ ته ورغی، توده جګړه ونښته او د ۱۸۸۰م د جولای د ۲۷مې تر مازیګري پورې د غازیانو په بري او د پرنګیانو په ماته پای ته ورسېده، د انګرېز ژوندي پاته لښکر کندهار ته وتښتېد او په حصار کې دننه پټ سو. جنرال رابرټس تر دوه ویشتو ورځو وروسته ځان له کابله کندهار ته ورساوه (د ۱۸۸۰ د اګسټ له ۹ مې تر ۳۱ مې) او د سپټمبر پر لومړۍ ئې د سردار ایوب خان پوځونه ژوبل کړل، سردار له خپلو ملګرو سره هرات او له هغه ځایه ایران ته ولاړی. په ایران کې د برتانوي هند د دولت لاس ته ورغی او د ژوند تر پایه په راولپنډۍ او لاهور کې استوګن سو (۱۹۱۴ د اپریل ۱۷ مه).

د دغه غازي مزار د پېښور سهېل ته د سید حبیب په هدیره کې دئ. د امیر زوی

---

[۷] په ۱۸٦۵ کال زوکړی (د چارلس چمبرلین زوی) چې په ۱۸۷۳ کال د هند حکومت په لښکري خدمت کې شامل سو، په (۱۸۷۸ – ۸۰م) له رابرتس سره په افغان جګړه کې وو. تر دې وروسته په مدراس او کشمیر کې لښکري منصبدار وو. په ۱۸۹۰ کال د خیبر د قواوو قوماندان او تر دې وروسته په جنوبي افریقا کې د لارد رابرتس ځانګړی سکرتر وو. په ۱۹۰۰م کال د ایرلنډ د قواوو انسپکټر جنرال وو (انډین بیوګرافي ۷۷).

یعقوب خان هم د ۱۲۹۶ھ په ذیحجه ۱۸۷۹ کال له خپل کهاله او خپلوانو سره له کابله وتلی وو. انګرېزانو چي نېغ په نېغه و نه سو کړای چي په افغانستان کي پښې ټېنګي کړي، ځکه ئې د محمدافضل خان له زوی سردار عبدالرحمن خان سره چي تاشکند ته تښتېدلی وو اړیکي وموندلې. سردار په چټکۍ تر امو راواوښت او چاریکار ته راغی، د برتانوي هند له سیاسي استازي سرلیپل ګریفین Lepel Henry Griffin سره خبرواترو ته کښېناست، چاریکار ته له راتلو سره سم ئې خپل امارت اعلان کړ (د ۱۸۸۰ د جولای ۲۷ مه).

د انګرېز سیاست چارو، عبدالرحمن خان چي وسپنیز سړی وو ومانه او په بهرني سیاست کي د اطاعت منني په شرط ئې د مرستي ژمنه ورکړه. سردار د اړتیا له مخي ومنله او د ۱۲۹۶ھ د روژې پر پنځمه کابل ته راغی او پر تخت کښېناست.

امیر عبدالرحمن خان چي د ده د کتاب له مخي له کوچنیوالي د اداري په چارو پوه او د ژوندانه ډېري سړې تودې ئې لیدلي وې، ده د افغانستان د خلکو اروا ښه پېژندله او په دې پوهېده چي د خپلي پاچهۍ د ساتلو له پاره د هیواد د قبیلو له مشرانو سره څه ډول کلک چلند وکړي او له برتانوي هند سره په بهرني سیاست کي څومره پوست وي چي له هغوی څخه هم په خپله کار واخلي.

په دغه ډول نوي امیر پر کابل برلاسی سو او ژر ئې په دغه ښار کي امنیت ټېنګ کړ او بیا کندهار ته ولاړ.

خو مخکي تر ده جنرال رابرټس له لسو زرو جګړنو سره محمدایوب خان له کندهاره ایستلی او ایران ته شړلی وو.

همدا چي امیر کندهار ته ورسېد، انګرېزانو هغه ته وسپاره، جنرال رابرټس د کندهار او بولان درې له لاري او جنرال سټیوارټ د جلال آباد او خیبر له لاري له افغانستانه ووتل او افغان-انګرېز دوهمه جګړه پای سوه.

امیر عبدالرحمن خان په کندهار کي خپل مخالفین ووژل، هغه سیمي ئې ګرد سره اېل کړې، د افغانستان د نورو سیمو اېلولو ته ئې هم پام واړاوه، ډېر ژر ئې خپل مخالفان مړه، بندیان او یا بهر ته وشړل.

د برتانوي هند دولت هم امیر غښتلی کړ، په (۱۸۸۰م) کال ئې پنځه سوه زره روپۍ، څو سوه توپونه او څو زره ټوپک ورکړل، هر کال ئې ۱۸ زره پونډه مرسته ورسره

کوله، په دې توګه امير ژر پياوړی او پر تهول هيواد واکمن سو. په ۱۸۸۱ع کال ئې هرات او کندهار ونيول او په ۱۸۸۴ئې بدخشان او شغنان لاس ته راوړل. په واخان کې ئې عليمردان وپرځاوه او پر ځای ئې غفارخان تاتار د حاکم په توګه وټاکه.

تر هغه وروسته ئې د افغانستان شمالي ولايتونه تر ميمنې او اندخوی پورې په ۱۸۸۵ کال ونيول او خپل تره زوی محمداسحاق خان ته ئې وسپارل، خو نوموړی سردار په ۱۸۸۸ع هلته سرغړاو سو.

د ده پر مهال غلجيو له غزني تر کلاته پاڅون وکړ، خو امير هغوی پر سر وټکول او تر دې وروسته ئې د منځني افغانستان هزاره ګان هم اېل کړل (۱۳۱۱هـ - ۱۸۹۳ع).

د کونړ شمال ته کوهسار او بلورستان چې سپين کالي او تور کالي کافران پکښې اوسېدل او تل به د افغاني حکومت له واکمنۍ څخه بهر ول هم په (۱۳۱۳ = ۱۸۹۵) د امير له حکم سره سم د جنرال غلام حيدرخان څرخي تر بريد لاندې راغلل، ټول وګړي ئې اېل او مسلمان کړل او په (نورستان) ئې ونوماوه.

امير په کورنيو چارو کې زړه ور، جنګيالی او پياوړی واکمن وو، چې د مخالفانو په وژلو کې ئې ساری نه لاره، دی نوښتګر او په نړيوالو پېښو پوه سړی وو، څه نا څه ليک لوست ئې هم زده وو. په دري ژبه ئې (پندنامه) نومی کتاب هم ليکلی او (تاج التواريخ) ئې هم د ده په لارښوونه ليکلی او په ده پورې اړه لري.

ده د ډاډمنو سپه سالارانو په مشرۍ لکه: غلام حيدرخان څرخي، فرامرزخان، غلام حيدر خان لنډی پياوړی پوځ جوړ کړ، په ځانګړې توګه ئې د جاسوسۍ اغېزمنه کړۍ منځته راوسته، کارپوه حاکمان ئې هرې خوا ته ولېږل، په افغاني ولايتو او ښارو کې ئې د پوستې ځانګي پرانيستې، شرعي محکمې ئې بيا روغې کړې، دين پوهان ئې د کابل په شاهي مدرسه کې په ښوونه او روزنه بوخت کړل، چاپخونه ئې جوړه او د ټوپک جوړولو يوه کارخانه ئې هم ودانه کړه.

د پلازمېنې د مستوفي الممالک او د ولايتونو د مستوفيانو تر څارنې لاندې ئې د ماليې ځانګې سمې کړې، د کورنې تګ له پاره ئې د راهدارۍ پاڼې (لارپاڼې) دود کړې او غله، لار شکوونکي او ناړامي ئې تر کلک څار او ګواښ لاندې ونيول، ځکه نو امنيت ټينګ او سوداګري او صنعت وده وموندله او ټول هيواد د يوازينۍ ادارې خاوند سو.

## خو په بهرني سیاست کې:

امیر پوست سړی او ښه ډیپلوماټ وو، له انګلیس دولت سره ئې په سړه سینه چلند کاوه، تل به ئې د دوستۍ لار هواروله، مادي او معنوي مرستې ئې منلې. وروسته تر هغه چې د امارت په پیل کې ئې هیواد اېل کړ او په ۱۸۹۶ع ئې د (ضیاء الملة والدین) بلنوم واخیست او په نوموړي بلنامه خطبه وویل سوه، سکه ووهل سوه، نارامي او سرغړاوي ټول ووژل او پاته ئې وشړل. بیغمه د هند د ګورنر جنرال لارد دفرین د لیدو له پاره راولپنډۍ ته ولاړ او د دوستۍ مزي ئې لا پسې ټینګ کړل (۱۸۸۵م). څو کاله وروسته ئې خپل کشر زوی سردار نصرالله خان لندن او د انګرېز ملکې دربار ته هم واستاوه (۱۹۸۵-اپریل، ۱۳۱۲هـ).

## له ګاونډیو هیوادونو سره د امیر د مهال غوره سیاسي پېښې:

۱/ د تزاري روسیې دولت د هرات پر شمالي سیمه (پنجده) یرغل وکړ (۱۳۰۳هـ - ۱۸۸۵ع). سره له دې چې د افغاني پوځونو قوماندان جنرال غوث الدین په مېړانه ساتنه کوله خو پنجده د روسانو لاس ته ورغله.

امیر عبدالرحمن خان په تاج التواریخ کې په دې اړه داسې لیکي:

"د ۱۸۸۴ع کال د جولای په میاشت کې د بریدونو د ټاکلو له پاره د انګرېزي کمیسیون مشر جنرال سرلمسدون او د روسي کمیسیون مشر جنرل یلتای غوره سوی وو، خو د کار تر پیل وړاندې روسانو پنجده ونیوه.

تر دې پېښې وروسته یو بل کمیسیون چې مشري ئې سرجوزف ویست رجوی Sir west Ridgeway د هند د بهرنۍ څانګې دوهم منشي کوله او غړي ئې کرل هیولدیچ، کرنیل ایت او قاضي اسلم خان ول، د هند حکومت له خوا د افغانستان او روس د برید ټاکنې له پاره وټاکل سو، نوموړي کمیسیون د ۱۸۸۶م کال د اکتوبر پر میاشت خپل کار پای کړ.

امیر د هغوی د خدمت او هڅو ستاینه وکړه او د سرو زرو نښانونه ئې ورکړل، په پای کې د ۱۸۸۷م په جولای کې د برید ټاکنې وروستۍ هوکړه په سنټپترزبورګ کې لاسلیک او پنجده په رسمي توګه له افغانستانه بېله سوه.

د رجوي په تړون کې د ذوالفقار له خولې تر خواجه سالاره پوري سیمې راغلې.

امیر له هند دولت څخه غوښتل چي هغه د پامیر تر کوهسار پوري په نخښنه کړي، خو داسي و نه سول تر دې وروسته په ۱۸۹۳ع کرنیل ایت د پخواني ترړون پاته ټکي هم حل کړل، په دې توګه امیر وکړای سول چي د دوو سترو امپراتوریو تر منځ حکمراني وکړي.

۲/ بل هغه سیاسي کار چي امیر د افغانستان د خلکو د جرګې له خوښي پرته وکړ او د هغه له کبله د افغانستان په تاریخ کي ستره ګرمه د ده پر غاړه ده، هغه د ډیورنډ ترړون دئ چي د برتانوي هند له دولت سره ئې د افغانستان ختیځ او جنوبي بریدونه وټاکل.

امیر وایي: ما له هندي وایسرایانو لارډرپن او لارډ سالیسبري څخه هیله وکړه چي د هند د بهرنیو چارو وزیر د برید ټاکني د کمیسیون د مشر په توګه راولېږي خو زما ناخوښي او د سردار اسحاق خان ناړامي هغه وځنډاوه.

لارډ لنسډون د سلطنت نایب لارډ رابرټس دغه کار ته غوره کړ، خو رابرټس چي په افغانستان کي ناوړه سابقه لرله او کېدای سوه چي خلک ورته راپورته سي، ما د هغه راتګ وځنډاوه چي په پای کي د ۱۸۹۳م د سپتمبر په وروستیو کي د هند د بهرنیو چارو وزیر سرهنري مارتیمر ډیورنډ [۸] Sir Moteimer Durand د برید ټاکني د کمیسیون په مشرتابه کابل ته راغی.

د دغه کمیسیون غړي کلنل الیس، کپټان مانریس اسمت، مستر کلارک، مستر وانلد او څو نور هندیان ول.

په کابل کي له امیر سره سیاسي مرکه پیل سوه او په پای کي ئې د ډیورنډ کرغېړن ترړون لاسلیک سو.

نوموړي ترړون اووه مادې لرلې چي د هغه له مخي د ډیورنډ برید له بلوچیستانه تر چترال او واخان پوري وټاکل سو.

د چمن، پښین، چغني، وزیرستان، بلند خېل، کورمه، پاړه چنار، اپریدي، باجوړ، سوات، بنیر، دیر، چیلاس او چترال چي د افغانستان مځکه وه، له افغانستانه بېله او په

---

[۸] د ۱۸۵۰م د فبرورۍ پر ۱۴مه زوکړی، د میجر جنرال سرایج زوی دئ. ایم ډیورنډ په ۱۸۷۳د بنګال هیوادني خدمت ته ونیول سو، په ۱۸۷۹ په کابل کي د رابرټس سیاسي سکرټر وو، له ۱۸۸۴ – ۹۴ م کالو پوري د هند حکومت د بهرنیو چارو سکرتر او وروسته په تهران کي د انګرېز سفیر وو (مادرید، واشنګټن هند بیوګرافي، ۱۲۸).

هند پوري وتړل سوه او د انګرېز له لوري امير ته د يو ميليون و دوو سوو روپيو پر ځای د کاله يو ميليون و اته سوه زره روپۍ وټاکل سوې همدا راز ئې د وسلو د مرستې ژمنه هم ورکړه.

په دغه ډول د ډيورنډ تړون د ګندمک کرغېړن تړون رښتيني کړ، خو امير زوی يعقوب خان په ببړني، ګډوډ حالت او د پرديو لښکرو د يرغل په ترڅ کې په زور د ګندمک تړون لاسليک کړی وو، همدا راز دی چې د خلکو استازي او د هيواد پاچا نه وو، ځکه نو هاغه تړون هم حقوقي ارزښت نه لاره.

امير عبدالرحمن خان د ملت د استازو او ولسي جرګې له منلو يا نه منلو پرته په ځانګړې توګه ډيورنډ تړون منلی وو.

په هر ډول د ډيورنډ کميسيون د ۱۸۹۳م د نوامبر پر ۱۴ مه له کابله ووت.

امير عبدالرحمن خان د خپل امارت په پيل کې د ۱۳۰۰ هشا وخوا ۵۸۷۴۰ پوځيان لرل، خو په کابل، هرات، کندهار، بلخ، جلال آباد، اسمار، امو غاړه او د ايران او هند په بريدونو کې ئې د امارت تر ټينګښت وروسته دغه چمتو او ايله جاري پوځيان لرل:

- (۸۰) پلي غنډونه هر غنډ (۷۰۰) سړي ټول (۵٦۰۰۰) سړي.
- (۴۰) سواره غنډونه هر غنډ (۴۰۰) سړي ټول (۱٦۰۰۰) سړي.
- (۱۰۰) د توپخانې بتريې هره يوه (۱۰۰) سړي له (٦) توپو سره، ټول (۱۰۰۰۰) سړي.
- شاهي ځانګړي پلي (۴) غنډه (۱۰۰۰) سړي ټول ۲۴۰۰ سړي.
- پوليس ځواک ټول (۲۰۰۰۰) سړي.
- سواره ايله جاري ټول (۱۰۰۰۰) سړي.

په دې توګه د ټول وسله وال پوځ شمېر ۱۴۸۴۰۰ ته رسېده، چې امير د هڅوی په مرسته وکړای سو چې په هيواد کې بېساري امنيت ټينګ او سرغړاوی وټکوي.

امير عبدالرحمن خان په کابل کې د سکې وهلو، د کارتوسو، ټوپکو، وسپنګرۍ، توپ جوړولو، عرق ايستلو، ځرمني، بوټ جوړولو، صابون، د ګنډني کارخانې، چاپخونه او صحافۍ جوړې کړې.

پوځي، کورني، عدليه، د ودانولو، روغتيا، کانو، سوداګرۍ، د پوستې ځانګې او ديني مدرسې ئې پرانيستې، څو ماڼۍ او کابل شاهي ارګ ئې ودان کړ او ټول هيواد

ئې تر يوازينۍ اداري لاندي راووست چي دغه هڅي ئې د منني وړ دي.

امير عبدالرحمن خان تر ۲۱ کالو امارت وروسته په کابل کي د (نقرس) په ناروغۍ مړسو (۱۹ جمادى الثاني ۱۳۱۹ = ۱۹۰۱م) (وگورئ: ۸۸ نومره عکس).

ده خپل زوى ته داسي اېل او له سرکښو تش هيواد پرېښوو چي خلک ئې د نامه په اورېدلو لړزېدل او تر مرگ وروسته ئې هم د ده مړينه نه باوروله.

تر ده وروسته ئې مشر زوى حبيب الله خان د (سراج الملة والدين) په بلنامه د کابل پر تخت کښېناست (د اکتوبر ٦مه ۱۹۰۱م) او په (۱۹۰۴م) ئې خپل مشر زوى عنايت الله د هند وايسراى لاردکرزن ليدو ته واستاوه، وروسته د هند د بهرنيو چارو سکرتر لويس وليم کابل ته راغى او له امير سره ئې (د مارچ پر ۲۱مه ۱۹۰۵م = ۱۴ محرم ۱۳۲۳ھ) تړون لاسليک کړ.

د امير حبيب الله خان د ۱۸ کلن سلطنت پر مهال پرته له يوه پاڅونه چي په جنوبي کي د جانداد احمدزي په مشرتابه سوى وو بله پېښه نه ده ليدل سوې، ځکه چي پلار ئې وړاندي هيواد د کار له سړو تش کړى وو، په دې توگه امير په وړ چاپېريال کي په سړه سينه ژوند کاوه.

په ۱۳۲۵کال ئې کندهار، هرات، ميمنه او بلخ وکتل او د ۱۹۰۷ په جنورۍ د سلطنت د مرستيال لاردمنتو په بلنه هند ته ولاړى او همدغه کال د مارچ پر اوومه د پېښور او خيبر له لاري بيرته راستون سو.

امير له وزگارتيا او کورني امنيت سره سره هم په هيواد کي کوم غوره کار و نه کړ، ده د نوي مدنيت څو کوچنۍ نخښي راوړې، له هغو څو وړو کارو څخه چي ده وکړل، د حبيبي په نامه د يوه ملکي ښوونځي پرانيستل، يو پوځي ښوونځى او په کابل کي څو نورلومړني ښوونځي دي. همدا راز ئې (سراج الاخبار افغانيه) خپور کړ او په کابل کي ئې دوې چاپخوني، څو ماڼۍ، باغونه، سړک او دمه ځايونه ودان کړل.

د لويي جگړې (۱۹۱٦م) پر مهال ئې ځان ناپيېلى وباله.

د امير کورنى سياست د پلار په توپير پوست وو او خلک ئې نه ازارول، په خپله

ئې ديني حكمونه (روژه، لمونځ) پر ځای کول، خو د اداري په ډول، تشكيل، ماليې غونډولو او نورو هيوادنيو چارو كي ئې د وخت له غوښتنو سره سم بدلون را نه وست او هماغه له پلاره پاته زوړ سيستم ئې پر ځای پاته سو.

امير حبيب الله خان د ۱۳۳۷ﻫ د جمادي الاولی پر اتلسمه د پنجشنبې په شپه (۱۹۱۹م) د لغمان د كله گوش په ښكارځي كي د توپنچې په گولۍ وويشتل سو او له نړۍ ئې سترگي پټې كړې (وگورئ: ۸۹ نومره عكس).

په جلال آباد كي ئې ورور د پاچهۍ بېرغ پورته كړ خو د افغانستان خلكو د خپلواكۍ او مځكنۍ بشپړتيا د گټلو له پاره د اتلولۍ غورځنگ پيل كړ، افغان خپلواكي غوښتونكو د (۱۲۹۷ل = ۱۳۳۷ق = ۱۹۱۹م) د مارچ پر لومړۍ د امير حبيب الله خان دوهم زوی سردار امان الله خان د پاچهۍ پر تخت كښېناوه او د خپلواكۍ جگړه پيل سوه[۹].

---

[۹] د نوي خپلواكۍ او نوي افغانستان تر جوړېدو را وروسته پېښې بېل تاريخ ليكلو ته اړتيا لري، ځكه نو دغه كتاب دلته پای سو.


نقشهٔ تخمینی سه امپراتوری افغانی
(۱) تیموریان هرات
(۲) هوتکیان قندهار و اصفهان
(۳) احمد شاه کبیر (قندهار)
افغانستان کنونی
این نقشه در تعیین حدود سیاسی مدار اعتبار نیست
بحیرهٔ ارال
خوارزم
بخارا
سمرقند
دوشنبه
مرو
عشق آباد
سرخس
مشهد
نیشاپور
ترشیز
هرات
کابل
غزنه
قندهار
کلات
پشاور
خیبر
کشمیر
امرتسر
لاهور
سرهند
ملتان
بهاولپور
دهلی
آگره
اجمیر
حیدر آباد
کرمان
سیستان
اصفهان
کاشان
تهران
قزوین
گیلان
رشت
استرآباد
گرگان
دامغان
همدان
طبس
تون
برجند
چترال
پامیر
ضمیمهٔ تاریخ مختصر افغانستان ج ۲

۹۰–لمبر نقشه

# فکري او اجتماعي اوضاع

د کندهار د هوتکي دولت تر سقوط او د نادر افشار تر موقتي سلطې وروسته چې لس کاله ئې دوام وکی، په (۱۱٦۰ه‌ق) کال د احمد شاه نهضت او د آزاد افغانستان نوي جوړښت د هغو پر له پسې پېښو نتیجه ده، چې پخوا د افغانستان په تاریخ کي پېښې سوي وې او د افغانستان د خاوري اجتماعي او اقتصادي اوضاع دا غوښته چې د روښان او خوشحال او میرویس د هڅو او جنبشو په نتیجه کي یو افغاني آزاد او غښتلی دولت منځ ته راسي.

د افغانستان خلکو د هرات د تېموریانو د دولت تر سقوط وروسته څو پېړۍ د فترت دورې د صفویانو او بابریانو د یرغلو په پېښو کي د سختۍ او تریخوالي او د کور په کور جنګېدو په حال کي تېري کړې او د خپل ملي مرکزیت له نه درلودلو څخه متحسس ول، څو چې د کندهار هوتکیانو او د هرات ابدالیانو د اېران د صفویانو پردۍ سلطه ئې پر شا وشړله او له منځه ئې یووړه او روښانیانو او خوشحال خټک او ایمل خان مومند او شېرین خان ترین او نورو د هند بابري پاچهانو د سلطې د پایڅوړ سره مقابلې وکړې او خپل اولس ئې د اسارت له جوغه وژغوره.

په دې هولناکه اخ و ډب کي خلک په سخته او کلکه مبارزه اخته ول، د علومو او ادبیاتو او فرهنګ پالني ته ئې هم فرصت نه درلود، خو بیا هم لیده کېږي، چې په کندهار کي د شاه حسین هوتک دربار د ادب او ادیبانو او پوهانو د پالني ځای وو او د دې دربار منشي محمد هوتک د پټې خزانې کتاب ولیکه، چې د (۱۱۴۰ه ق) د شاوخوا د فکري او ادبي حرکت یوازنی ښکارندوی دئ.

د احمد شاه دربار هم له فکري نظره روښانه معلومېږي، ځکه چې پخپله احمد شاه د ښې قریحې خاوند شاعر او تصوف خوښوونکی سړی وو، چې د پښتو شعر دېوان لري او د ده په کورنۍ کي تېمورشاه د دري او پښتو دېوان څښتن او شاه شجاع د دري شعر د دېوان درلودونکی وو او د شاه زمان زوی شهزاده عبدالرازق چې دري ئې تخلص

کاوه او د شاه شجاع زوی شهزاده نادر او نور ځو تنه شهزادګان باذوقه شاعران ول.

احمدشاه د خپل هیواد په ښاور کي علمي کورنۍ ورو زلي، چي د هغو پایښو ړ په وروستیو دورو کي د خورا لویو فکري، ادبي او سیاسي کارنامو مصدر وګرزېد، لکه د کندهار د بارکزیانو د خانعلوم کورنۍ چي د خپلوا کۍ تر ځګړي پوري د قاضي القضاة منصب په همدې کورنۍ کي پاته وو او دا منصب د اوس وخت د عدلیه وزیر د منصب سره سم وو او په دې کورنۍ کي د علمي تالیفاتو خاوندان هم تېر سوي دي او یا د دوی په تشویق نورو مؤلفانو د کتابو په تالیف لاس پوري کړی دئ، لکه ملا محمدسعید بارکزی چي د سدوزي شاه محمود په وختو کي قاضي القضات وو او د هغه زوی قاضي عبدالرحمٰن خان چي د نصیحة المومنین د رسالې مؤلف دئ او د عبدالقادر سلیمانخېل زوی امیرمحمد د امیر شېرعلي خان په وختو کي ئې د الدافعه رساله د خان ملا عبدالسلام د محمد سعید په تشویق لیکلې وه.

د الکوزي ملا اسمٰعیل کورنۍ هم د احمدشاه په وختو کي په کندهار کي وه، چي زوی ئې ملا احمد د معقول او منقول استاد او د احمدشاهي ښار قاضي او د بیان الوافیه لطوایف الصوفیه و تعلیم السلوک او د کاشفه او فارقه رسالو مؤلف وو، چي د ۱۲۳۳ھ کال د دوهمي خور (ربیع الثاني) پر ٦ مړ دئ. د ملا احمد ورور پیر محمد هم په کندهار کي د هغه عصر نامتو عالم وو، چي په ۱۲۳۳ھ کال ئې د عقیدة المشایخ والعلما کتاب په عربي ژبه لیکلی دئ.

قاضي غلام محمد هوتک هم د کندهار له نامتو عالمانو او د ښار قاضي وو، چي په ۱۲٦۴ھ کال ئې د ارشارالحق کتاب په عربي ژبه ولیکه او د هغه زوی عبدالاحد په کندهار کي د سید جمال الدین سره آشنایي درلوده او د توخي محمد حسن زوی محمد نور هم د جامع السکوک په نامه په عربي ژبه د ۱۲۳۰ ھ په شاوخوا کي کتاب لیکلی دئ او د میا فقیر الله جلال آبادي شاګرد وو.

د ملا بابړ موسیٰ خېل علمي کورنۍ د هوتکیانو له وختو په کندهار کي وه، چي زوی ئې مولوي فیض الله په احمدشاهي عصر کي د اشرف الوزراء شاه ولي خان د کورنۍ استاد او په منطق کي د تدریسي رسالې مؤلف وو او تر هغه وروسته د سدوزو د وختو په پای کي د فیض الله زوی مولوي حبیب الله مشهور په محقق قندهاري په کندهار کي ژوند کاوه (۱۲۱۳– ۱۲٦۳ھ) چي په عربي، دري او پښتو ژبو ئې په معقولو

او منقولو علومو کي ۳۳ ټوکه کتابه تالیف کړي دي او په ریاضي او منطق او اصول فقهه او نورو اسلامي مروجه علومو کي ئې تازه او بکر انتقادي آثار لیکلي دي او تر ده وروسته د ده زوی مولوي عبدالرحیم او نمسي ئې مولوي عبدالروف او د هغه زامن مولوي عبدالواسع او مولوي عبدالرب د را وروستو دورو نامتو عالمان ول، چي په صحافت او معارف او د عدلي قوانینو په ترتیب کي ئې د ستاینې وړ خدمتونه کړي دي.

د هرات د سلجوقیانو علمي کورنۍ د ملا محمد له اولادې څخه وه، چي په روز آباد کي ښخ دئ او احمدشاه بابا د هغه زوی علامه ملا میرزا هرات ته راووست او د پای حصار مدرسه ئې وروسپارله. له دې کورنۍ څخه ډېر عالمان او مدرسان پیدا سوي دي، چي د هغو له جملې څخه ملا عبدالاحد خلیفه او ملا محمد عمر د محمد ایوب زوی او د نورالدین نمسی او د ملا میرزا کړوسی وو، چي څو کتابه ئې تالیف کړي او یو له هغه څخه په اصول فقه کي الملهم نومی کتاب دئ (د ۱۲٦۰هـ شاوخوا) او هم د محمدصدیق زوی ملا محمدرفیق سلجوقي د رسالۀ نحو مؤلف او محمود مشرف او خلیفه محمد حسن خوش نویس د هغې کورنۍ پوهان او هنرمندان غړي ول.

یوه بله علمي او سیاسي کورنۍ په پېښور کي ډېره مشهوره وه چي ستر نیکه ئې د تاج خان زوی اخون تر کمان د کندهار له غوري مرغې څخه تللی او د پېښور د شمالي سیمي په امازي کي اوسېد او زوی ئې ملا محمدغوث د حاجي محمد سعید واعظ شاګرد په علم او عرفان مشهور او په پېښور کي د احمدشاه له خوا قاضي وو، چي په منطق کي ئې پر میرزا کلان حاشیه لیکلې وه او د احمدشاه په نامه ئې د ده د عرفاني وینا په شرح کي یو کتاب د شرح الشرح په نامه په دري ژبه هم تالیف کړی دئ او د ده نمسی د دادالله زوی قاضي عبدالکریم یو کتاب د نصاب التوحید په نامه ولیکه، خو د محمدغوث نمسي او د قاضي اکبر شاه زوی قاضي محمدحسن چي په خان علماء ملقب وو د سردار پاینده خان د کورنۍ استاد او د شاه شجاع وزیر وو، چي د ده له خوا ئې په ۱۸۳۸م کال د لاهور درې خواییز (مثلث) تړون لاسلیک کی. همدا راز قاضي طلا محمد د قاضي حسن زوی د علم او ادب خاوند د شعر دوه دېوانونه ئې په دري او عربي ژبو درلوده او د جواهر نغز او سلوة التقریر في ترجمه التحریر او نفحة المسک او تسلیه العقول او سلوة الکئیب مؤلف او د قصیده بائیه ویونکی وو او قاضي عبدالقادر د

فضل قادر زوی او د قاضي حسن نمسی د امیر شېر علي خان د دربار عسکري سرمنشي او له انگرېزي څخه په پښتو او دري د عسکري قواعدو د کتاب مترجم وو، چي دا کتاب د کابل د شمس النهار په مطبعه کي چاپ سوی دئ.

د هرات د برناباد د میرزایانو کورنۍ هم د فرهنگ او ادب پوهان خلک درلودل، چي د هغو له جملې څخه میرزا ارشد د خواجه محمد صلاح منشي خلف او متخلص په فایض د هرات د ابدالیانو او درانیانو منشي او خطاط وو، د اشعارو دېوان او ډېره خوږه مثنوي ئې درلوده (د یولسمي پېړۍ منځ) او بل میرزا ابو طالب د ده مشر وراره چي مایل ئې تخلص وو، هم د دري اشعارو دېوان درلود او د محمد کاظم زوی میرزا رضا د اشعارو مجموعه درلوده او د اربعین او برناباد د منثوري تذکرې خاوند په هرات کي د شاه محمود د دربار او وزیر فتح خان منشي وو او د سدوزو په همدې عصر کي میرزا محمد هادي متخلص په عشرت هروي په هرات کي د شهزاده تیمور منشي باشي وو، چي ملا عبدالله روزي او ملک سنجر د غور د ملکانو اولاد او باسهل و ملا مسکین (د هزاره لهجې شاعران) په هرات کي د ده معاصرین ول. د سدوزو په دوره کي او تر هغه وروسته د مجددیانو کورنۍ هم زیات روحاني شهرت درلود او ښه عالمان او د ښې قریحې شاعران پکښي پیدا سوي دي، چي په ټوله منځنۍ اسیا کي له خراسانه نیولې تر سرهند او ماوراء النهر او د چین د خاوري تر څنډو پوري د نقشبندي طریقت د تلقین مرجع ول او یو ډول خراساني اسلامي ثقافت ئې روزلی دئ، چي مدار ئې شریعت او تصوف وو، خو په نقشبندي طریقت کي ئې تصوف تل د خلکو په گټه او د اخلاقو د سمون له پاره بې له انزوا او رهبانیته استعمالاوه او څنگه چي نقشبندي مجددیانو د افغاني پاچهانو د دربارو سره رابطه درلوده ځکه ئې نو د سیاست او فرهنگ او ټولنه کي هم قوي لاس درلود.

دا فاروقي کورنۍ د شهاب الدین فرخشاه اولاده ده، چي د کابل شمال ته د پنجشېر د فرخشاه په دره کي ښخ دئ او امام رفیع الدین له همدې کورنۍ څخه له کابله سرهند ته ولاړی او د ده له اولادې څخه شیخ احمد مجدد الف ثاني د مولانا عبدالاحد زوی چي د نسب سلسله ئې په ۲۸ واسطه حضرت عمر فاروق ته رسېدله، د ۹۷۱هـ کال د شوال پر ۱۴ په سرهند کي وزېږېد او په طریقت کي ئې د خواجه محمد باقي کابلي (چي په ۱۰۱۲هـ کي مړ دئ) لاس ونیو او استفاضه ئې وکړه او په هند او افغانستان کي ئې

ستر علمي او روحاني شهرت درلود (د ۱۰۳۴ھ کال د صفري پر ۲۸ د سه شنبې په ورځ د ٦۳ کالو په عمر په سرهند کي وفات سو).

د سدوزو د شهنشاهۍ په وختو کي له دې کورنۍ ځخه شاه غلام محی الدین مجددي د غلام صادق زوی او د حضرت مجدد شپږم نمسی او د هغه زوی شاه نظام الدین متخلص په نظام د دري دېوان خاوند په ښکاپور کي روحاني شهرت او د کرهنې ډېري مځکي ئې درلودلې او د غلام صادق بل ورور شاه غلام محمد نومېد او د دوی د بل ورور شاه عزت الله اولاده په یارکند کي اوسېدله او شاه صفي الله متخلص په صفي د دري دېوان خاوند او ځلور نور کتابونه ئې هم تالیف کړي ول (۱۱۵٦ – ۱۲۱۲ھ) او د یمن په حدیده کي ښخ دئ او د ده اولاده په کابل او ننګرهار کي ول، چي د هغو له جملې ځخه شاه عبدالباقي متخلص په باقي (چي په ۱۲۸۷ھ کال په کابل کي مړ دئ) د دري اشعارو دېوان ئې درلود او د کابل د شور بازار د حضرتانو نیکه دئ او زوی ئې غلام عمر متخلص په عمر (د ۱۲۹۰ ھ په شاوخوا کي) او د هغه زوی ناصرالدین متلخص په جانان او شمس المشایخ فضل محمد متخلص په فضلي د دېوان خاوندان شاعران ول او شاه فضل الله د شاه غلام نبي زوی او د شاه غلام محمد نمسی (۱۱۸۴ – ۱۲۳۸ھ) د عمدة المقامات مؤلف او په دري شعر کي د دېوان خاوندان شاعران ول او د شاه زمان د دربار له لویو روحاني کسانو ځخه ول او هم محمد حسن د عبدالرحمٰن زوی او د شاه فضل الله دریم نمسی د انساب الانجاب او انیس المریدین او نورو مؤلف دئ. میر احمد متخلص په اظهر (۱۲۰٦ – ۱۲٦۹ھ) د پېښور او بدخشان له حضرتانو ځخه د هفت مجلس او اربعین او سبیل الرشاد او مناقبت الطاهرین مؤلف د غزلیاتو دېوان او شپږ مثنوي او ځو کتابونه نور لري.

د علي خان پوپلزي کندهاري د زوی وکیل الدوله عبدالله خان کورنۍ هم اداري او لښکري د فرهنګ او ادبي ذوق خانوندان درلودل. د هغه له جملې ځخه پخپله عبدالله (چي پلار ئې په ۱۲۰۱ھ کي مړ دئ) دري شعر وایه او د هغه زوی محمد علم خان وکیل الدوله متخلص په علم هم په دري ژبه شعر جوړاوه (دی په ۱۲۹۳ھ کي مړ دئ) او میر هوتک خان متخلص په افغان د زمان خان پوپلزي زوی (د ۱۲۱۸ھ په شاوخوا کي) له هنرمندو شاعرانو ځخه وو. په دري ژبه ئې دېوان درلود او بل ورور ئې الله یار خان راسخ هم شعر وایه او مولوي محمد ابراهیم بل ورور ئې د خپل وخت له عالمانو ځخه وو

او دې کورنۍ د هنر او ادب او فرهنګ په خپرونه کې لوی لاس درلود.

بله ادبي او روحاني کورنۍ د شیخ سعدالدین احمد انصاري د عبدالغفار د زوی کورنۍ ده، چې صوفي او ادیب سړی وو او د ده آثار د معدن وحدت او دېوان شور عشق او نور تر **۴۳** ټوکه پورې رسېږي. دی د کابل په ده یحیٰی کې په **۱۲۲۵**ه کال وفات سو او زوی ئې میر ظهورالدین ظهور د شعر دېوان لري او د طب د کتابو مؤلف وو. د ده بل زوی میر امام الدین متخلص په درویش د پښتو او دري ژبو شاعر او د احوال و آثار حاجي صاحب پای منار مؤلف وو او میر قطب الدین متخلص په فارغ د دري ژبې شاعر د مثنوي سمرقند مؤلف وو او میر حسام الدین احمد او میر نجم الدین احمد او میر نظام الدین احمد او میر فخر الدین مولوي او میر ناموس د سعدالدین شاعران زامن ول او هم میر سیف الدین عزیزي د میر مقام الدین زوی (د **۱۲۸۲**ه په شاوخوا کې) د دري شعر د قریحې خاوند وو.

د دې دورې شاعران او لیکونکي دا دي:

سید ابوالحسن متخلص په عنوان چې په **۱۱۲۳**ه کال د بدخشان په جرم کې زېږېدلی او په **۱۲۰٦**ه کال وژل سوی دئ او عبدالرحمٰن عارض بدخشي چې په **۱۲۲۳**ه کې مړ دئ او میرزا محمد واصل فروغي د شاه زمان معاصر او امیر سبحان قلي خان دروازي (د **۱۲۳۰**ه په شاوخوا کې) او لعل محمد عاجز د پیر محمد زوی ملقب په عبدالشافي په دري ژبه د اشعارو د دېوان خاوند چې په **۱۲۳۸**ه کال مړ دئ او د تیمور شاه د دربار طبیب وو او میر عصمت الله متخلص په کشوري د عبدالله زوی د بلخ د دهدادي د اشعارو د دېوان خاوند وو، چې په **۱۲۵۷** کې مړ دئ، او جنید الله حاذق د صوفي اسلام هروي زوی چې په **۱۲۵۹**ه کال په کندهار کې مړ دئ، د اشعارو دېوان او د یوسف او زلیخای حاذق په نامه ئې مثنوي درلود او شهاب ترشیزي هروي د تیمورشاه د وختو شاعر او د دېوان خاوند او میر محمد نبي احقر بدخشي چې په **۱۲٦۹**ه کال په رستاق کې مړ دئ، په عروضو کې د حدایق الحقایق د کتاب او د قوافي د رسالې او په فلسفه او حکمت او دینیاتو کې د هشت بهشت مؤلف او د لیلٰی او مجنون د حضرت امام حسین د شهادتنامې د مثنویاتو ناظم او د میرزا علي خان زوی میرزا محمد محسن دبیر (۱۲۲۷– ۱۲۸۲ه) د محمدزو پاچهانو د دربار منشي او د لعل محمد خان عاجز کابلي زوی میرزا عبدالواسع (۱۲۰۸ – ۱۲۸۳ه) د اشعارو د دېوان خاوند او علي تقي

متخلص په وصفي (د ۱۲۰۰ھ پا شاوخوا کي) د اشعارو د دېوان څښتن او فرحت هروي د اشعارو د دېوان لرونکی او ولي طواف کابلی د محمد علي زوی (د ۱۲۸۸ ھ په شاوخا کي) د دري ژبي ناخوانه شاعر او د محمد نبي خلمي زوی ملا عبدالقیوم صوفي مشربه شاعر چي په ۱۲٦۵ھ کي زېږېدلی د اشعارو د دېوان او د تنبیه المرایي او قیامت نامې د مثنوي او د دري او ترکي د مجمع الاشعار او درة الشهزاد د مثنوي خاوند او محمد غلام غلامي د ملا تیمور زوی د انګرېز او افغان د لومړۍ جګړې د پیښو په باب کي د جنګ نامې په نامه د منظومې ویونکی او د میر واعظ د کورنۍ (د ۱۲۵٦ھ شاوخوا) میر محترم حافظ چي د دري اشعارو د دېوان خاوند او د مرتضٰی کابلي زوی میر مجتبٰی متخلص په الفت (چي په ۱۲۲۴ھ کي زېږېدلی) د اشعارو د دېوان څښتن او د مراد محمد بدخشي زوی ملا عبدالله چي د خپلو اشعارو دېوان ئې په ۱۲۹۸ھ کال ترتیب کړی دئ او د میرزا محمود سالک بالاحصاري (د۱۲٦۰ھ په شاوخوا کي) د اشعارو د دېوان خاوند او د وزیر فتح خان منشي شرر کابلی د اشعارو د دېوان خاوند او په بخارا کي ګل محمد عثمان د عجایب الاخبار او ګلشن اسرار او بزم طرب او نزهة المشتاق او ګلچین بساتین او مشرق انوار او نورو کتابو مؤلف (د ۱۳۰۰ھ په شاوخواکي) او د نذر علي زوی قربان متخلص په کاتب د ناظم الوقایه او مفاتیح الاعجاز ناظم او د اشعارو د دېوان لرونکی او میر عنایت الله بدخشي د اصول المعیشت ناظم او اشعارو د دېوان خاوند (چي په ۱۲۹۰ھ کي مړ دئ) او د میر یوسف علي بدخشي زوی برهان الدین لاغر د جام جم او روضۀ نور ناظم او د اشعارو د دېوان خاوند (د ۱۲۹۱ھ په شاوخوا کي) او د میر احمدشاه بدخشي زوی میر محمود شاه د اشعارو د دېوان خاوند (چي په ۱۲۹۵ھ کي مړ دئ) او د عبدالصمد رستاقي زوی سید جعفر د ګلشن عشق او چمن عشق ناظم او د اشعارو د دېوان لرونکی (چي په ۱۲۸۴ھ کي مړ دئ) او نعمت الله محوي میمنوي د اشعارو د دېوان خاوند او د سکندر هروي زوی احمد قلي د آتش فشان په نامه د شاعرانو د تذکرې لیکونکی (د ۱۲۹۰ھ په شاوخوا کي) او محمد رسول شهید مارملي بلخي شاعر د دېوان خاوند (د ۱۲۷۰ھ په شاوخواکي) او د یعقوب علي بارکزي لور عایشه د دري ژبي شاعره او د تیمورشاه په وختو کي د دېوان مېرمن او د سکندر خان لور محجوبه هروي د دري ژبي شاعره (د ۱۲٦۴ھ په شاوخوا کي) او د سید محمد عظیم لور مستورۀ غوري د غور د پرچمن

اوسېدونکې (د ۱۲۴۵هـ په شاوخواکي) د اشعارو د دېوان مېرمن او د سيد عبدالله کرخي هروي لور مريم د دري ژبې شاعره او د دېوان ميرمن (۱۲۵۷- ۱۳۰۸هـ) او د مير حسين زوی سيد حسين بالاحصاري کابلی متخلص په شامل (۱۲۳۸ - ۱۳۰۵هـ) په دري ژبه د دوو دېوانو خاوند او د محمد هاشم ملقب په دبيرالملک زوی ميرزا محمد نبي واصل (۱۲۴۴ - ۱۳۰۹هـ) د امير شېرعلي خان او امير عبدالرحمٰن خان د دربار سرمنشي په دري ژبه د دېوان خاوند او د محمدامان دروازي زوی شمس الدين شاهين د بدايع الصنايع مؤلف او د ليلی او مجنون او تحفة دوستان ناظم او احمد علي شاه کندهاری په دري ژبه د دېوان خاوند (چي په ۱۳۱۱هـ کي مړ دئ) او سيد مير مشواهی هروي (۱۲۸۰ – ۱۳۳۳هـ) په دري ژبه د دېوان خاوند او هم رسام او خطاط چي ډېر متين اشعار ئې درلودل او سيد فخر الدين مجنون شاه کابلی (۱۲۴۲- ۱۳۰۵) د دبستان خيال مؤلف او رحمت بدخشي د ميرزا اسمٰعيل زوی (د ۱۳۰۰هـ په شاخوا کي) او عبد الغفور نديم کابلی (۱۲۹۶ – ۱۳۳۴هـ) په دري ژبه د دېوان خاوند او د رحمت الله زوی نديم بلخي (۱۲۵۰ –۱۳۳٦هـ) د شعر د دېوان لرونکی او محمد ابراهيم حسرت کابلی ( ۱۲۵۰– ۱۳۳۸هـ) د شعر د دېوان خاوند او د مخمس د پنځو کتابو او د تحفة شهنشاهي ناظم او د شهاب الدين زوی سيد احمد مشهور په اديب پشاوري (۱۲٦۰– ۱۳۴۹هـ) د پخو او متينو اشعارو د دېوان خاوند وو او د عربي قصيدو او قيصرنامې ويونکی.

**له پښتو شاعرانو څخه:**

عبدالرحيم هوتک د دېوان خاوند، عبدالحميد مومند (۱۱۰۰ – ۱۱۵۰هـ) د در و مرجان په نامه دېوان او د شاه و گدای په نامه د مثنوي خاوند، همدا شان نيرنگ عشق او شرعة الاسلام په پنځلسو زرو بيتو کي د ده آثار دي (۱۱۴۸هـ) او پير محمد کاکړ چي د اشعارو دېوان ئې په ۱۱۹٦هـ کال بشپړ سوی او هم ئې د پښتو گرامر کوچنی کتاب د معرفة الافغاني په نامه په ۱۲۳۸هـ کال ليکلی دئ او شمس الدين کاکړ کندهاری چي په ۱۲۳۸هـ د شعر دېوان او د سراج الموتي په نامه کتاب او نور منظوم کتابونه ئې درلودل او شاه حسين هوتک او د عبدالله زوی مسعود د آدم خان او درخو د نکل ناظم (د ۱۲۰۰هـ په شاوخوا کي) او ملا پير محمد هوتک د سرور زوی د ۱۱۴۰هـ شاوخوا کي د افضل الطريق ناظم او د داود خان کندهاري زوی محمد هوتک د پټې خزانې او خلاصة الفصاحة مؤلف (د ۱۱۴۲هـ په شاوخوا کي) او د حسين زوی عبدالرشيد (په ۱۱٦۹هـ

کال) په فقهه کي د رشيدالبيان مؤلف او نورمحمد کندهاری د شاه محمود هوتک د حالاتو په باب د محمود نامې ناظم (د ۱۱۶۰هـ په شاوخوا کي) او شېر محمد هوتک (۱۰۹۲ –۱۱۷۵هـ) د اسرار العارفين او تجويد افغاني مؤلف او اخوند گدا د نافع المسلمين مؤلف او د اشعارو د دېوان خاوند (د ۱۱۶۰هـ په شاوخوا کي) او محمدي صاحبزاده د پېښور په ۱۱۸۰هـ کال د اشعارو د دېوان لرونکی او حافظ مرغزی په ۱۱۱۶هـ کال د احمد شاهي شهنامې ناظم او محمد مظفر د اسماعيل زوی د ۱۱۲۶هـ په شاوخوا کي د اعثم کوفي د تاريخ مترجم او د حافظ رحمت بړېڅ زوی نواب الله يارخان د ۱۲۲۸هـ کال په شاوخوا کي د عجايب اللغات پښتو مؤلف او عبدالکريم کاکړ کندهاری په ۱۳۳۴هـ کال د زين العلم ناظم چي له عربي عين العلم څخه ئې ترجمه کړې وو او حافظ الپوري (په ۱۲۰۰هـ کال) د دېوان خاوند او قاسم علي اپريدی د څو کتابو مؤلف او عبدالعظيم سواتی د اشعارو د دېوان لرونکی (۱۱۶۷ – ۱۲۵۳هـ) او ملا محمد حسن تلوکاني کندهاری د اشعارو د دېوان خاوند چي په ۱۲۴۵هـ کال مړ دئ، رحمت داوی کندهاری د اشعارو د دېوان او د ليلیٰ او مجنون د مثنوي خاوند د (۱۲۱۰هـ په شاوخوا کي) او ميا نعيم متې زی په ۱۲۳۰هـ کال د شعر د دېوان خاوند او معين الدين پشاوری په ۱۲۵۶هـ کال د وامق او عذرا ناظم او عبدالرسول کندهاری د اشعارو د دېوان او د سفرنامې او آزادنامې څښتن (۱۲۹۰هـ) او ملا جمعه بارکزی کندهاری شاعر چي په ۱۲۵۹هـ کي مړ دئ او عزيز خان رڼاخېل د ۱۲۵۰هـ په شاوخوا کي د هرات د جنگنامې ناظم او د عبدالرحمٰن زوی مراد علي کاموي په ۱۲۸۲هـ کال د تفسير يسير مؤلف، دوست محمد خټک کندهاری په ۱۲۹۰هـ کي د بدر منير او بحرالعلوم او اخلاق احمد مؤلف او معزالله مومند په ۱۲۰۰هـ کي د شعر د دېوان خاوند او ميرزا حنان کندهاری او صديق اخوندزاده او گل محمد هلمندی د اشعارو د دېوان خاوند.

## د پښتو شاعراني:

نازو توخې د سلطان ملخي لور او د حاجي مير ويس خان هوتک مور په ۱۰۶۱هـ کي زېږېدلې ده او د ميرويس خان لور زينبه هوتکي (په ۱۱۲۷هـ کي مړه ده) او سپينه هروي (د ۱۲۵۵هـ په شاوخوا کي).

له عالمانو څخه مولوي محمد اعظم اندړ د غزني د شلگر اوسېدونکی او مولوي عبدالله غزنوي او ملا عبدالحق د کندهار د خرقې شريفې متولي او صوفي محمد رسول

ساکزی (په ۱۲۸۷هـ په کندهار کې مړ دئ) او ملا مشک عالم اندړ غزنوي او ملا سکندر (چې د امیر شېر علي خان د لښکر قاضي وو) او ملامحمود او ملا عبدالله د انار درې قاضي او ملا عبدالفتاح او ملا ابوالحسن (د ۱۲۷۰هـ په شاوخوا کې د هرات عالمان) او محمد حسین د مداح الکوزي کندهاري زوی چې د میر زاهد هروي د تصور او تصدیق پر حاشیې باندې د شرح انکشافیه مؤلف او مسعودگل د قاضي عبدالرحمٰن پېښوري زوی په ۱۲۲۶هـ کې د عجایب الاخبار مؤلف او عبدالحلیم کاکړ کندهاری په ۱۲۳۴هـ کې د ردحلیمیه علي مطاعن احمدیه مؤلف او ملا عبدالحق د عبدالغفور خروټي زوی د پښتو د یاقوت السیر ناظم او د شرح اربعین مؤلف او ملا قطب توخی چې په کندهار کې ئې پر ډېرو ادبي کتابو شرح لیکلي دي او مولانا عبداللطیف د تیمور شاه د دربار صدر العلماء (چې په ۱۱۹۴هـ کې مړ دئ) او مولوي محمد عمر ساکزی چې د تجوید په علم کې ئې په پښتو یو کتاب تالیف کړی او په ۱۲۰۵هـ کې مړ دئ او سعدالله خروټی چې پر جلالین او پر مولوي عبدالغفور ئې شرح لیکلې او په ۱۲۰۹هـ کې مړ دئ. سره له دې چې په دې عصر کې علمي او ادبي هڅه بیخي پر ځای ولاړه نه وه او لکه چې ومو لیدل د هیواد په هر گوټ کې پوهان ول، خو که په انتقادي او مقایسوي نظر ئې وگورو دا دوره نسبت پخوا ته د علم او ادب د زلمیتوب او فعالیت دوره گڼلای نه سو، بلکه دا د تقلید او انتحال دوره ده، ځکه نو په دې دوره کې علمي او فکري بکر آثار لږ لیده کېږي.

د درې ژبې ادبیاتو هم د دې عصر په نثر او نظم کې د انحطاط دوره وهلې ده او کم ابتکار پکښې نه لیده کېږي او باید وویل سي، چې حضرت نورالدین عبدالرحمٰن جامي د درې ژبې خاتم شعرا وو، خو بالعکس د پښتو ژبې ادب ښه وده وکړه او د پیرمحمد کاکړ کندهاري او حمید مومند او نورو غوندي د ابتکار او ښې قریحې خاوندان شاعران پکښې پیدا سول او په تېره بیا حمید او کاظم خان خټک متخلص په شیدا د هندي سبک چاشني په پښتو گډ کړه.

د سدوزو د وختو په درې ادبیاتو کې داسې شاعران لرو چې د حافظ او جامي او د خراسان او عراق د سبک پیروان دي، خو تر ۱۲۵۰هـ وروسته په درې ادب کې یوه هڅه او حرکت ومو مو، چې زموږ شاعران د هند د سبک پېښې (تقلید) کوي، او دا هغه اغېزه ده، چې د میرزا عبدالقادر بېدل د اشعارو د کلیات بشپړ مقبولیت په نتیجه کې منځ ته

راغلې ده او په غزل کې د دې سبک لومړی پیرو سردار مهردل خان د سردار پاینده خان زوی دئ، چې مشرقي ئې تخلص وو. تر هغه وروسته سردار غلام محمد خان طرزي او زوی ئې محمدامین عندلیب هم د دې سبک ډېره پیروي کوي، حال دا چې په همدې کورنۍ کې د سردار پاینده خان ورور سردار هارون خان او سردار غلام حیدر خان او سردار احمد خان د امیر دوست محمد خان زامن دري سره شاعران او په دري ژبه دېوانونه لري، سردار شهنواز خان د سردار سلطان احمد خان سرکار زوی او خوشیدل خان د مشرقي زوی او سردار محمد حسن خان سیاه د تیمور قلي خان زوی او د وزیر فتح خان ورور (د ۱۳۰۰هـ شاوخوا) او سردار محمد عزیز د سردار شمس الدین خان زوی (د ۱۳۱۰هـ شاوخوا) او سردار عباس خان د سردار سلطان محمد خان زوی شاعر او د گل عباسي او جواهر خمسه او عناصر اربعه مؤلف او د تفسیر کلام الله مفسر (۱۲۵۲ – ۱۳۴۳هـ) هم په دري ژبه شعر ویلی دئ، خو د دوی په کلام کې د هند د سبک د پیروي اغېزه او د هغه سبک شاعرانه تلازمات او د تخیل طرز لړلیده کېږي.

د احمد شاه بابا له وختو بیا د امیر عبدالرحمٰن خان د دورې تر پایه (د ۱۳۲۰هـ شاوخوا پورې) دري شعر د پخوانیو شاعرانو په تېره بیا د هند د سبک د فکري او عروضي تقلید په قالب کې پاته سو او هغه شاعران چې په دې دوو پېړیو کې منځ ته راغله، ټول د تېرو دورو د شاعرانو مقلدان ول، خو د افغان او انگرېز تر لومړۍ او دوهمي جگړې وروسته چې د هند او شمال له خوا د اروپایي نوي مدنیت اغېزې افغانستان ته راورسېدلې، د دې ځای پر ادب ئې هم اغېزه وکړه او همدا د (۱۳۲۰هـ ق شاوخوا) د افغانستان په نویو ادبیاتو کې د نوي فکر ځرک ښکارېږي.

هغه بدلون چې د اروپا د صنعت او مدنیت اغېزه د دې وخت په ادب کې راووست هغه فکري بدلون دئ، چې د شعر پر ظاهري سبک او قالب باندي ئې اثر و نه کی او زموږ شاعرانو همهغه پخواني عروضي قالبونه معتبر وبلل، خو لږ تر لږه زموږ پر ملي ادب د نوي فکر اغېزه ولوېدله او وینو چې مولوي محمدسرور واصف کندهاري د جهان اوضاع ته د ځیر کېدلو او نوي مدنیت ته د ترغیب او تشویق په باب کې یوه قصیده ویلې ده او د ۱۲۹۰هـ په شاوخوا کې د امیر شېرعلي خان په وختو کې لومړی وار د (شمس النهار) په نامه یوه جریده د کابل له بالاحصاره خپره سوه او تر هغه وروسته په ۱۳۲۳هـ کال د سراج الاخبار افغانستان لومړۍ گڼه د مولوي عبدالروف خان کندهاري

په مدیریت د پوهانو د یوې ټولنې له خوا چاپ سوه او د معارف د خپرېدو او د ښوونځیو او مطبوعاتو د تاسیس او د ادبي نویو عصري آثارو د تالیف او ترجمې هڅه هم شروع سوه او د دې نوي فکري او ادبي هڅې مخکښ او پېشوا د سردار غلام محمد خان طرزي کندهاري زوی محمود طرزي وو، چې په ۱۲۸۴هـ کال په غزني کې زېږېدلی او د ۱۹۳۳م کال د نومبر پر ۲۲ په استانبول کې مړ سوی دئ. ده په ۱۳۲۹هـ ق کال سراج الاخبار افغانیهٔ چې په ۱۳۲۳هـ ق کال ئې یوازې یوه ګڼه خپره سوې وه، بیا راژوندی کی او هغه ئې تر اتو کالو پورې د یوې پنځلس ورځنۍ موقوتې جریدې په توګه خپره کړه، چې د افغانستان د خلکو د ویښتوب او خپلواکۍ غوښتنې محرک سو او د درې ژبې په نثر او نظم کې ئې نوی فکر او نوې انشاء وروزله او شل کتابه ئې له ترکي څخه په درې ژبه ترجمه او یا تالیف کړل او دی لومړی سړی دئ، چې د افغانستان د صحافت او لیکنې په جهان کې ئې د فکري او ادبي نوي مکتب اساس کېښېښوو.

دا وخت دئ، چې د پښتو او درې ژبو نورو لیکونکو او شاعرانو هم افغاني ادب ته نوی فکر ننه ایست او د عبدالعلي مستغني (۱۲۹۳ – ۱۳۵۲هـ ق) او قاري عبدالله (۱۲۸۸هـ ق – ۱۳۲۲هـ ش) او عبدالغفور ندیم او عبدالهادي داوي او مولوي صالح محمد هوتک او مولوي غلام محی الدین افغان او مولوي عبدالرب کندهاري او د نورو لیکونکو او شاعرانو په شان منځ ته راغلل او سره له دې چې د دوی لیکنې په زړو کلاسیکي قالبو کې وې خو څه نه څه ئې نوي افکار او مفاهیم چې شلمې پېړۍ زېږولي ول هم وروزل.

د ۱۹ پېړۍ په لومړۍ نیمایي کې د انګرېز استعمار او تسلط چې د نوي تمدن او صنعتي بدلون مبادي ورسره ول پر ټول هندوستان د سند د سیند تر غاړو خپور سو او زموږ د هیواد د لمر ختیزو طبعي سرحدو سره ونښت او افغان او انګرېز لومړۍ جګړه چې په ۱۹۳۹م کال د سند د لښکر (اندس ارمي) له خوا شروع سوې وه تر پنځو کالو وروسته د افغان ملي قوت په بري او د متجاوزو لښکرو په قطعي ماته پای ته ورسېدله او تر هغه وروسته د هند د وسپني لاره هم دې خوا ته را اوږده سوه او د تګ او راتګ لاره ئې وسپړله او د بمبیي او کراچي بحري بندرو هم افغاني سرحدو ته د بحري انتقال لاره خلاصه کړه، حال دا چې د هیواد لمر لوېدو خوا ته یعني په قاجاري ایران او د شمال پلو ته په تزاري روسیې کې هم د نوي مدنیت مبادیو او نوي فکر وده موندله او دې ټولو

اغېزناکو عواملو د افغانستان د خلکو پر ژوند او فکر او سیاست او اداره باندي هم اغېزه کوله.

د دې فکري هڅي او حرکت له ممثلانو څخه يو هم سيد جمال الدين د کونړ د سيد صفدر زوی وو (۱۲۵۴ – ۱۳۱۴هـ ق) چي خپل جهاد ئې له افغانستانه د شرق د بدمرغۍ او بدبختۍ د درو عاملو (استعمار، استبداد او خرافاتو) پر ضد شروع کی او په هند، اېران، عثماني ترکيه او مصر کي ئې فکري او اصلاحي نوی نهضت راووست او بين المللي شهرت ئې وموند او ده ته د افغانستان او د شرق د هيوادو د وينښتوب او نوي فکر لومړی روزونکی ويل کېدای سي، خو د استعمار دسيسو او په افغانستان کي د شهزادګانو کورنيو جنګو او په هيواد کي د مرکزي دولت نستوالي پرې نه ښوده، چي دا فکري هڅه او حرکت خپل طبيعي تګ ته دوام ورکي، ځو چي امير شېرعلي خان د خپلي پاچهۍ په دوهمه دوره کي وکولای سوه، لومړۍ افغاني کابينه د سيد نور محمد شاه کندهاري صدراعظم په مشري تاسيس او د شمس النهار جريده او منظم لښکر او يوه برخه عصري تشکيلات منځ ته راولي او په سياست کي ئې هم آزاد خط مشي تعقيب کړل. خو د افغان او انګرېز د دوهمي جګړې شروع (۱۲۹۵ – ۱۲۹۷هـ ق) دا سلسله پرېکړه او د امير عبدالرحمٰن خان دوره (۱۲۹۷ – ۱۳۱۹هـ ق) د استبداد تر فشار لاندي په يو ډول فکري جمود کي تېره سوه، ځو چي ۱۳۲۳هـ ق کال په کابل کي د سراج الاخبار ټولنه تاسيس او په نوي فکري هڅه ئې بيا لاس پوري کئ او مولوي عبدالرؤف کندهاري سراج الاخبار نشر کی او په کابل کي دارالعلوم حبيبيه هم تاسيس سو، چي دا نو د ساينس او نويو مضمونو د تدريس شروع وه.

دې فکري هڅي سره له دې چي خارجي او داخلي خنډونه او موانع ئې درلودل، په ۱۳۲۹هـ ق کال د سراج الاخبار افغانيه د بيا راژوندي کولو په واسطه د محمود طرزي له خوا ادامه وموندله او د اخوان افغان په نامه په کابل کي لومړی افغاني سياسي حزب تاسيس سو، چي مرام ئې مشروطيت، خپلواکي او داخلي اصلاحات ول، خو د دې حزب غړي په ۱۳۲۵هـ ق کال يا ووژل سول او يا بنديان سول او تر ۱۳۲۹هـ ق چي سراج الاخبار د محمود طرزي په واسطه بيا خپور سو، همدا د اخوان افغان حزب هم بيا راژوندی سو او تر ۱۳۳۷هـ ق پوري ئې د افغاني روشن فکرانو په تنظيم او د معارف په خپرونه کي ئې زيار ويوست او د هيواد د بشپړي سياسي آزادۍ ګټلو او خپلواکۍ د جهاد له پاره د

اولس په عمومي قيام او د افکارو په تنوير کي د دې ټولني زيار ګټور وو او چي په ۱۹۱۹م کال کي افغان اولس خپله خپلواکي بېرته وګټله ټولو روشن فکرانو دنيا ته د نوي آزاد افغانستان د ورپېژندلو او د ادارې د نوي تشکيل او د مدني چارو په ترتيب او د معارف د تعميم او د ښوونځيو د تاسيس او د مطبوعاتو د پراختيا په لاره کي زيار ويوست چي دا ګټور زيار تر اوسه جاري دئ.

# مأخذونه او مراجع

هغه کتابونه چې د دې کتاب په ليکلو کې له هغو څخه استفاده سوې ده:


۱. د سيد جمال الدين افغان (تتمة البيان) د قاهرې چاپ، ۱۹۰۱م.

۲. د افغان او فارس جګړه، له لاتيني څخه په انګرېزي د جارج نيون هامفورد ايزک ترجمه، د لندن چاپ.

۳. زندګاني نادرشاه، د نورالله لارودي ليکنه، تهران، ۱۹۳۹م.

۴. روضة الصفای ناصري، ۸ ټوک د رضا قلي هدايت ليکنه، تهران، ۱۳۰۲ه ق.

۵. پټه خزانه او پايښورئې د حبيبي په قلم، کابل ۱۹۴۴م.

۶. آئين اکبري، د ابوالفضل ليکنه، لکنهو، ۱۳۱۰هـق.

۷. تاريخ افاغنه (اردو) د سيد ظهور الحسن موسوي ليکنه، د هند چاپ، ۱۳۳۰هـق.

۸. تاريخ نظامي ايران، لومړی ټوک، تهران ۱۳۱۵هـش.

۹. نادرنامه (خطي) د حبيبي د کتب خانې نسخه، مؤلف ئې معلوم نه دئ.

۱۰. سيرالمتأخرين، د غلام حسين ليکنه، د لکنهو د نولکشور چاپ.

۱۱. درهٔ نادره، د ميرزوا مهدي استرآبادي ليکنه، بمبئي ۱۳۰۹ هـق.

۱۲. آريانا مجله، د تاريخ ټولني له خپرونو څخه.

۱۳. د کاوه مجله، ۲ کال، د برلين چاپ ۱۳۰۳هـش.

۱۴. تاريخ ايران، د سرجان مالکم، بمبئي ۱۸٦۸م.

۱۵. تاريخ افغانستان، د مليسون تاليف، د لندن دوهم چاپ، ۱۸۷۸م.

۱٦. تاريخ سلطاني، د سلطان محمد خالص کندهاري تاليف، بمبئي ۱۲۹۸م.

۱۷. خورشيد جهان، د شيرمحمد ليکنه، ګنداپور، لاهور ۱۸۹۴م.

۱۸. منتخب اللباب، د خافي خان، ايشاټک سوسايټي، کلکته ۱۸۹٦م.

۱۹. حیات افغاني، د محمد حیات خان، لاهور ۱۸۶۷م.
۲۰. میرویس نیکه، د بېنوا لیکنه، کابل ۱۳۲۵هـش.
۲۱. مجمع التواریخ، د میرزا محمد خلیل مرعشي صفوي، تهران، ۱۲۲۸هـش.
۲۲. عباسنامه، د محمد طاهر وحید قزویني، تهران، ۱۳۲۹هـش.
۲۳. خلاصة الانساب ابدالي (قلي)
۲۴. مشاهیر ابدالیان، د حبیبي، کابل ۱۳۲۵هـق.
۲۵. رهنمای افغانستان، کابل ۱۳۲۸هـش.
۲۶. لوی احمد شاه بابا، د حبیبي، کابل، ۱۳۱۹هـش.
۲۷. دول اسلامیه، دخلیل ادهم، استانبول، ۱۹۲۷م
۲۸. مخزن افغانیو دنعمت الله هروي، (قلمي)
۲۹. تذکرة الابرار والشرار، د اخون درویزه، پېښور د هندو پریس چاپ، ۱۳۰۸هـ ق.
۳۰. صولت افغاني، د محمد زردار خان افغان، د لکنهو د نولکشور چاپ، ۱۸۷۶م.
۳۱. تاریخ افغانستان، لومړی او دوهم ټوک، د کهزاد، کابل ۱۹۴۶م.
۳۲. افغانستان در قرن نزدهم، د سید قاسم رښتیا، دکابل چاپ ۱۳۲۹هـش.
۳۳. اکبرنامه، منظومه، د حمید کشمیري، کابل ۱۳۳۰هـش.
۳۴. در زوای تاریخ افغانستان، د احمد علي کهزاد، کابل ۱۹۵۲م.
۳۵. مشاهیر الشرق، د جرجي زیدان، لومړی ټوک، قاهر، ۱۹۱۰م.
۳۶. المسالک و الممالک، د بن خرداذبه، لیدن، ۱۳۰۶هـق.
۳۷. دائرة امعارف اسلامي، لیدن، ۱۹۲۷م.
۳۸. ایرانشهر، د مارکوارت، د برلین چاپ، ۱۹۰۱م.
۳۹. د کرستن سین د (ساسانیانو په وخت کي ایران)، ترجمه، د ډهلي چاپ ۱۹۴۱م.
۴۰. فتوح البدان، د بلاذري، قاهره ۱۹۰۱م.
۴۱. مجمل التواریخ والقصص، د بهار چاپ، تهران ۱۹۳۸م.
۴۲. تاریخ سیستان، د بهار چاپ، د تهران ۱۹۳۴م.

۴۳. تاریخ طبري، د بلعمي ترجمه، لکنهو ۱۹۱٦م.
۴۴. چچنامه، د علي حامد کوفي سندي، د اودپونه چاپ، ډهلي، ۱۹۳۹م.
۴۵. د امان افغان جریده، د کابل چاپ ۱۹۱۹م.
۴٦. د پښتنو تاریخ، د قاضي عطاء الله، د پېښور چاپ، ۱۹۴۷م.
۴۷. د ابن الندیم الفهرست، قاهره، ۱۳۴۸هـق.
۴۸. د پېښور د موزیم کتیبې، د عبدالشکور، پېښور ۱۹۴۸م.
۴۹. تاریخ التمدن الاسلامي، د جرجي زیدان، قاهر ۱۹۰۲م.
۵۰. تاریخ ادبیات فارسي، د براون، لندن، ۱۹۰۲ – ۱۹۲۴م.
۵۱. کتاب انخراج، د قدامه بن جعفر، لیدن ۱۸۹۲م.
۵۲. تاریخ روابط سیاسي ایران، د نجف قلي معزي، تهران، ۱۹۴۷م.
۵۳. تاریخ هند، د دولافوز، تهران، ۱۹۳٦م.
۵۴. اقبال نامه جهانګیري، د معتمد خان بخشي، کلکته، ۱۸۸۵م.
۵۵. تزک جهانګیري، د فیروز هادي، چاپ لکنهو، ۱۳۲۷هـق
۵٦. ماثر رحیمي، د عبدالباقي، کلکته، ۱۹۲۵م.
۵۷. تزک بابر، د عبدالرحیم خان خانان ترجمه، بمبئ ۱۳۰۸هـق.
۵۸. رقعات عالمګیر، د دارالمصنفین اعظم ګدهـ چاپ، ۱۹۴۵م.
۵۹. منتخب التواریخ، د عبدالقادر بدایوني، د کلکتې چاپ.
٦۰. اکبر نامه، د ابو الفضل، کلکته، ۱۸۸٦م.
٦۱. عالمګیرنامه، د محمد کاظم، ۱۸٦۸م.
٦۲. طبقات اکبري، د نظام الدین هروي، کلکته، ۱۹۳۱م.
٦۳. ماثر الامراء، د صمصام الدوله، کلکته، ۱۳۰۹م.
٦۴. بابر، د فرانسوي فرنارد ګروناد، د پاریس چاپ، ۱۹۲٦م.
٦۵. فارس نامه، د ابن البلخي، د کمبرج چاپ، ۱۹۲۱م.
٦٦. افغانستان در عصر تیموریان هند، د حبیبي، د کابل چاپ، ۱۳۴۱.
٦۷. تاریخ فرشته، د محمد قاسم، د لکنهو چاپ، ۱۳۲۱هـق.
٦۸. زینت الزمان في تاریخ هندوستان، د ملک الکتاب شیرازي، بمبئ ۱۳۱۰هـ ق.

۶۹. تاریخ مختصر هند، د ابو ظفر ندوي، د اعظم گدهـ چاپ، ۱۳۵۵هـ ق.

۷۰. مجمع السلاطین، د نواب محمد غوث خان، بمبئي ۱۲۷۹هـ ق.

۷۱. تاریخ ایران، د عبدالله رازي، تهران، ۱۹۳۶م.

۷۲. کیمبرج هستري آف انډیا، ۴ ټوک، لندن.

۷۳. مطلع سعدین، د عبدالرزاق سمرقندي (خطي، کابل)

۷۴. روضة الصفا، د میر خواند، لکنهو.

۷۵. تاریخ سند، د سید معصوم، بمبئي ۱۹۳۸م.

۷۶. مفتاح التواریخ، د جان ولیم بیل، لکنهو.

۷۷. لب التواریخ، د یحیٰی قزویني، تهران ۱۹۳۵م.

۷۸. پر بابر نامه باندي د بیورج تعلقات، لندن، ۱۹۲۲م.

۷۹. تاریخ هند، د ارسکن، لندن، ۱۸۵۴م.

۸۰. تاریخ گزیده، د حمدالله مستوفي، لندن، ۱۹۱۹م.

۸۱. مخزن الاسلام، پښتو، د اخوند درويزه (خطي)

۸۲. سلوک الغزات، پښتو، د ملامست زمند (خطي)

۸۳. تاریخ مرصع، د افضل خان خټک، هرتفورد، ۱۸۶۰م.

۸۴. د خوشحال خان د کلیاتو مقدمه، د حبیبي، کندهار، ۱۹۴۰م.

۸۵. پښتانه شعرا، ۱، ۲ ټوک، د حبیبي، کابل ۱۹۴۰م.

۸۶. تاریخ افغاني، د شیخ امام الدین خلیل (خطي، کابل)

۸۷. الکامل، د ابن الاثیر، د مصر د بولاق چاپ، ۱۲۹۰هـ ق.

۸۸. زین الاخبار، د عبدالحي گردېزي، تهران، ۱۹۳۵هـ ق.

۸۹. طبقات ناصري، د منهاج السراج، د حبیبي چاپ، په کابل کي، دوه ټوکه، ۱۳۴۲هـ ق.

۹۰. تذکرة الاولیاء پښتو، د سلیمان ماکو، د پښتانه شعراء په لومړي ټوک کي، کابل ۱۹۴۰م.

۹۱. تاریخ بیهقي، د ابوالفضل بیهقي، ۳ ټوک، تهران ۱۹۴۷م.

۹۲. تاریخ یمیني، د ابو النصر العتبي، قاهره، ۱۲۹۰هـ ق.

۹۳. تاریخ بخارا، د محمد فرشخي، تهران ۱۹۳۷م.

۹۴. حدود العالم، مؤلف ئې معلوم نه دئ، تهران ۱۳۴۰هـ ش.
۹۵. پادشاهان متأخر افغانستان، د یعقوب علي خوافي، کابل ۱۹۵۳م.
۹۶. قابوس نامه، د تهران چاپ، ۱۹۴۰م.
۹۷. جغرافیای تاریخي ایران، د بارتوند، تهران ۱۹۲۸م.
۹۸. مسالک الممالک، د اصطخري، لیدن ۱۸۷۷م.
۹۹. احسن التقاسیم، د المقدسي، لیدن ۱۸۷۷م.
۱۰۰. چهار مقالهٔ عروضي او د محمد قزویني تعلقات، لیدن ۱۹۰۹م.
۱۰۱. جوامع الحکایات، د عوفي (خطي، کابل)
۱۰۲. لباب الالباب –د عوفي، لیدن، ۱۳۲۱ هـ ق.
۱۰۳. منتخبات آداب الحرب و الشجاعة، د فخر مدبر، لاهور.
۱۰۴. طبقات سلاطین اسلام، د لن پول، تهران، ۱۳۱۹هـ ش.
۱۰۵. تاریخ مختصر ایران د پاول هورن، تهران ۱۹۳۴م.
۱۰۶. تاریخ ادبیات ایران، د دکتور شفق، تهران، ۱۹۴۲م.
۱۰۷. اخبار الدولة السلوقیة د صدر الدین علي، تهران ۱۹۳۷م.
۱۰۸. ذیل جامع التواریخ، د حافظ ابرو، تهران ۱۹۳۷م.
۱۰۹. جهانکشای جویني، تهران ۱۳۱۵هـ ش.
۱۱۰. تاریخ مفصل ایران، د عباس اقبال، تهران، ۱۹۳۲م.
۱۱۱. حبیب السیر، د خواند میر، بمبئي ۱۲۷۳هـ ق.
۱۱۲. سیرة جلال الدین، د محمد نسوي، تهران ۱۳۴۴هـ.
۱۱۳. تاریخ هرات، د سیفي هروي، کلکته، ۱۹۴۳م.
۱۱۴. ظفرنامه د شرف الدین علي یزدي، د کلکته چاپ.
۱۱۵. د تعدیل نسب نامه آل کرت مقاله، د حبیبي په قلم، د آریانا مجله ۶۸ گڼه، کابل ۱۹۴۸م.
۱۱۶. ریاض الانشاء، د محمود گاوان، حیدر آباد، دکن.
۱۱۷. نسب نامهٔ افغنه، د محمد عبد السلام خان عمر خېل، هند، ۱۹۱۴م.
۱۱۸. عمل صالح، د محمد صالح لاهوري، کلکته، ۱۹۳۹م.
۱۱۹. تزک افغاني، د محمد عباس خان رفعت، د هند چاپ، ۱۲۹۹هـ ش.

۱۲۰. فرهنگ اوستا، بمبئي چاپ.
۱۲۱. خوشحال خان ختک، د دوست محمد کامل، پېښور ۱۹۵۱م.
۱۲۲. تاریخ افغانستان، د علي قلي میرزا، تهران.
۱۲۳. تاریخ ایران، د فروغي، تهران ۱۳۱۸هش.
۱۲۴. تحفة الحبیب، د فیض محمد هزاره (خطي)
۱۲۵. تاج التواریخ، د امیر عبدالرحمٰن، بمبئ، ۱۳۲۳هق.
۱۲۶. مجمل التواریخ بعد نادریه، د ابن محمد امین، تهران ۱۹۴۰م.
۱۲۷. احمد شاه بابا، د میر غلام محمد غبار، کابل، ۱۹۴۴م.
۱۲۸. ریاض المحبة، د نواب محبت خان، (قلمي)
۱۲۹. د شاه ولي الله دهلوي سیاسي مکتوبات، د خلیق احمد نظامي چاپ، علي گدھ، ۱۹۵۰م.
۱۳۰. د شاه فقیر الله علوي مکتوبات، لاهور.
۱۳۱. ظفر نامهٔ رنجیت، د امرنات، لاهور، ۱۹۲۸م.
۱۳۲. حیات حافظ رحمت خان، د سید الطاف علي بدایون، ۱۹۳۳م.
۱۳۳. سراج التورایخ، ۲ ټوک، د فیض محمد هزاره، د کابل چاپ، ۱۳۳۱هق.
۱۳۴. د امیر دوست محمد خان ژوند، د موهن لال، کلکته، ۱۸۳۲م.
۱۳۵. د بارکزو عروج، د لایسیس، لندن.
۱۳۶. د کابل پاچهي، د الفنستن، لندن ۱۸۵۱م.
۱۳۷. د هند د غرب شمال سرحد، د سر ونیم بارتن، لندن.
۱۳۸. د افغان جګړه، د دیورنډ، لندن..
۱۳۹. د غزني او کابل سیاحت، د واین اثر، لندن.
۱۴۰. د سنداردو، د هوک اثر، لندن.
۱۴۱. د هند شمال ته سفر، د کونولي، لندن
۱۴۲. افغانستان، د سر مکموهن، لندن، ۱۹۲۹م.
۱۴۳. د افغانستان بربار دي، د جنرال سیل، لندن.
۱۴۴. د هند سرحدونه، د هولدیچ، لندن.
۱۴۵. افغانتسان، د کپتان ګري، لندن.

۱۴۶. بلوچستان، د پوټنچر، لندن.
۱۴۷. تاریخ افغانستان، د سرپرسي سایکس، لندن.
۱۴۸. د پښتو ادبیاو تاریخ، ۱، ۲ ټوک د حبیبي، کابل ۱۹۵۰م.
۱۴۹. مؤرخان گمنام افغان، د حبیبي، کابل ۱۹۴۶م.
۱۵۰. محاربهٔ کابل، د قاسم علي، آگره، ۱۲۷۲هق.
۱۵۱. فتوح السلاطین، منظوم د حسامي، آگره، ۱۹۳۸م.
۱۵۲. تاریخ احمدي، د منشي عبدالکریم، نولکشور، ۱۲٦٦م.
۱۵۳. نوای معارک، د عطا محمد، د حبیبي چاپ په کراچي کي، ۱۹۵۹م.
۱۵۴. د پښتنو گرامر مقدمه، راورتي، کلکته، ۱۸۵٦م.
۱۵۵. الاصابه في تمیز الصحابه، د ابن حجر عسقلاني، مصر، ۱۳۲۳هق.
۱۵٦. کتاب البلدان، د یعقوبي، لیدن، ۱۸۹۲م.
۱۵۷. سیاست نامه، د خواجه نظام الملکو تهران چاپ.
۱۵۸. ریسز آف افغانستان، د دبلیو بلیو، کلکته.
۱۵۹. فتوحات عرب در آسیای میانه، د گب، د لندن چاپ، ۱۹۲۳م.
۱٦۰. خلافت، د ولیم تمبل میور، لندن، ۱۹۲۴م.
۱٦۱. تاریخ الاسلام السیاسي و الدیني و الثقافتي و الاجتماعي، د حسن ابراهیم، درې ټوکه، د قاهرې چاپ ۱۹۴۸م.
۱٦۲. تاریخ مبارکشاهي، د یحیٰی بند احمد سهرندوی، کلکته، ۱۹۳۱م.
۱٦۳. قانون همایوني، د خواند میر، کلکته، ۱۹۴۰م.
۱٦۴. تذکرهٔ همایون و اکبر، د بایزید بیات، کلکته، ۱۹۴۱م.
۱٦۵. خصایل السعاده، د محمد سعادت خان ترین لکنهو، ۱۸۵۵م.
۱٦٦. تاریخ عمومي، د عباس اقبال، دوهم چاپ، تهران ۱۳۰۵هش.
۱٦۷. مرآة الاشباه، د محمد حسن، د اوده چاپ.
۱٦۸. د کابل کالنۍ، له ۱۹۳۰څخه تر ۱۹۵۳م پوري، د کابل چاپ.
۱٦۹. د کابل مجله، ۱، ۲ ټوک د میر غلام محمد غبار د (افغانستان ونگاهي بتاریخ آن) مضمون ۱۹۳۱– ۱۹۳۲م.
۱۷۰. حدیقة الاقالیم، د مرتضٰی حسین بلگرامي لکنهو، ۱۲۹٦ه.

۱۷۱. مسکوکات افغانستان در عصر اسلام، د احمد علي کهزاد، کابل ۱۹۳۹م.
۱۷۲. منجم العمران، د سید محمد امین خانجي، مصر، ۱۳۲۵هـق.
۱۷۳. فصلي از خلاصة الاخبار، د خواند میر، د گویا اعتمادي چاپ، کابل، ۱۹۴٦م.
۱۷۴. آثار هرات، ۳ ټوکه، د خلیل الله افغان، هرات ۱۹۲۹م.
۱۷۵. خراسان، د میر غلام محمد غبار، کابل ۱۹۴۷م.
۱۷٦. واقعات شاه شجاع، د شاه شجاع سدوزي، کابل، ۱۹۵۳م.
۱۷۷. وفیات الاعیان، د ابن خلکان، د مصر بولاق، ۱۲۹۹هـق.
۱۷۸. مروج الذهب، د مسعودي، پاریس، ۱۸٦۱م.
۱۷۹. تاریخ عرب، د فلیپ هتي، لندن، ۱۹۳۴م.
۱۸۰. تجارب الامم، د ابن مسکویه، لیدن، ۱۹۰۹م.
۱۸۱. شوکت افغاني، د محمد عبدالحکیم خان لودي، آگره، ۱۳۲۵هـق.
۱۸۲. دول الاسلام، د شمس الدین ذهبي، حیدرآباد، دکن ۱۳۳۳هـق.
۱۸۳. تاریخ محمد شاهي، د فیض الله بنیاني (خطي، پېښور)
۱۸۴. تزک تیموري، بمبئ، ۱۳۲٦هـق.
۱۸۵. سبحة المرجان في آثار هندوستان، د سید غلام علي بگرامي، د بمبئي، چاپ، ۱۳۰۳هـق.
۱۸٦. تذکرهٔ نصرآبادي، تهران ۱۳۱۵هـش.
۱۸۷. مجالس النفایس، د میر علي شیر نوایي، تهران ۱۹۴۴م.
۱۸۸. تذکرهٔ علمای هند، د رحمان علي، لکنهو ۱۲۹۲هـق.
۱۸۹. د پښتونخوا د شعر هار و بهار، د فرانسوي جم دارمستتر. پاریس، ۱۸۸۸م.
۱۹۰. د افغان د ۱۷ پېړۍ اشعار، د بیدولف، د هرتفورد چاپ، ۱۸۹۰م.
۱۹۱. هفت اقلیم، د امین احمد رازي، کلکته، ۱۹۱۸م.
۱۹۲. شمع انجمن، د سید صدیق حسن بهوپال، ۱۲۹۲هـق.
۱۹۳. شکرستان افغاني، د میر احمد شاه رضواني، لاهور، ۱۳۰۵هـق.
۱۹۴. بهارستان افغاني، د میر احمد شاه رضواني، لاهور، ۱۳۰۵هـق.
۱۹۵. سکینة الفضلا، د عبدالحکیم رستاقي، ډهلي، ۱۳۵۰هـق.

۱۹۶. قاموس الاعلام، د شمس الدين سامي، استانبول، ۱۳۰۸هـ ق.
۱۹۷. مذکر احباب، د حسن خواجه بخاري (خطي، برلين)
۱۹۸. حجة الاورنگ شاهيه، د تاش محمد القندزي (خطي، کابل)
۱۹۹. آتشکدۀ آذر، د لطف علي آذر، د بمبئ چاپ، ۱۳۰۹هـ ق.
۲۰۰. گلشن روه، د راورتي، هرتفورد، ۱۸۶۰م.
۲۰۱. چراغ انجمن، د عبدالحکيم رستاقي، ډهلي ۱۹۲۹م.
۲۰۲. تذکرۀ حسيني، د محمد حسين سنبهلي، لکنهو، ۱۲۹۲هـ ق.
۲۰۳. کليد افغاني، د هيوز، لاهور، ۱۸۹۳م.
۲۰۴. جامي، د علي اصغر حکمت، تهران ۱۹۴۰م.
۲۰۵. خزانۀ عامره، د غلام علي آزاد، د هند چاپ.
۲۰۶. تاريخچۀ شعر پښتو، د عبدالحي حبيبي، د کندهار چاپ، ۱۹۳۵م.
۲۰۷. رياض الشعرا، د واله داغستاني، (خطي، کابل)
۲۰۸. مرآة الخيال، د امير شيرعلي لودي، د هند چاپ.
۲۰۹. تذکرة الخوانين، د عبدالباري آسي، د لکنهو چاپ
۲۱۰. خزينة الاصفياء، د مفتي غلام سرور لاهوريو لکنهو، ۱۹۱۴م.
۲۱۱. د عبدالقادرخان خټک د دېوان مقدمه، د عبدالحي حبيبي، د کندهار چاپ، ۱۹۳۷م.
۲۱۲. فوايد الشريعة، پښتو، د اخون قاسم پاپين خېل، د لاهور چاپ.
۲۱۳. تاريخ روساى پنجاب، د سر ليپل گريفن، لاهور.
۲۱۴. د پېښور تاريخ، د راى گوپال داس، لاهور، ۱۸۷۰م.
۲۱۵. البرامکه، د محمد عبدالرزاق، د هند چاپ.
۲۱۶. د گندهار پخوانۍ جغرافيا، د موسيو فوشه، کلکته، ۱۹۱۵م.
۲۱۷. اخبار برامکه، د عبدالعظيم گرگاني، تهران، ۱۲۱۱هـ ش.
۲۱۸. تاريخ تمدن ايران ساساني، د سعيد نفيسي، د تهران چاپ، ۱۳۳۱هـ ش.
۲۱۹. تهذيب و تمدن اسلامي، لومړی او دوهم ټوک، د رشيد اختر بدوي، د لاهور چاپ، ۱۹۵۲م.
۲۲۰. نقود الاسلاميه، د مقريزي (خطي نسخه، دمشق، د تهذيب او تمدن

اسلامي په ذريعه)
۲۲۱. تاریخ طبرستان، د بهاوالدین محمد بن حسن بن اسفندیار، په ٦١٣ه ق کي د تهران چاپ، ۱۳۲۰هش.
۲۲۲. افغانستان بیک نظر، د میر غلام محمد غبار، د کابل په کالنۍ کي چاپ سوی.
۲۲۳. روضة السلاطین، د فخري هروي، د تبریز چاپ، ۱۳۴۵هش.
۲۲۴. تاریخ ادبیات فارسي، د ډاکتر براون، د لندن چاپ.
۲۲۵. تاریخ ادبیات در ایران، د ډاکتر صفا، د تهران چاپ، ۱۳۳۸هش.
۲۲٦. تاریخ الادب العربي، د بروکلمان (د عربي خطي نسخو فهرست) ۱۹٦۲م.
۲۲۷. د بهار سبک شناسي، درې ټوکه، د تهران چاپ، ۱۳۳۷هش.
۲۲۸. آریانا انتیکوا، د ویلسون، د لندن چاپ ۱۳۳۷هش
۲۲۹. طبایع الحیوان مروزي، د مینارسکي چاپ په لندن کي، ۱۹۴۲م.
۲۳۰. مجمل فصیحي، ۳ ټوکه، په مشهد کي د محمود فرخ چاپ، ۱۳۳۹هش.
۲۳۱. کتاب الهند، د البیروني، د حیدرآباد دکن چاپ ۱۹۵۸م.
۲۳۲. آثار الباقیه، د البیروني، د حیدر آباد د کن چاپ، ۱۹۵۸م.
۲۳۳. معجم الانساب، د زامباور، د قاهرې چاپ، ۱۹۵۱م.
۲۳۴. فضایل بلخ، د عبدالحي حبیبي په تصحیح، تهران ۱۳۵۰هش.
۲۳۵. جغرافیای خلافت شرقي، د جي، لي سترینج اردو ترجمه، د حیدر آباد دکن چاپ، ۱۹۳۰م.
۲۳٦. الاعلام، د خیرالدین زرکلي، د قاهرې چاپ، ۱۹۵۹م.
۲۳۷. راحة الصدور راوندي، د تهران چاپ، ۱۳۳۳هش.
۲۳۸. احیاء الملوک در تاریخ سیستان، د ملک شاه حسین سیستاني، د تهران چاپ، ۱۳۴۴هش.
۲۳۹. مقالات الشعراء، د میر علي شیر قانع تتوي، د کراچي چاپ، ۱۹۵۷م.
۲۴۰. تکملهٔ مقالات الشعراء، د محمدابراهیم خلیل تتوي، د کراچي چاپ، ۱۹۵۸ع.



پای